قال الله تبارک وتعالی

بسم الله الرحمن الرحیم

﴿فَسْئَلُوٓا أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾

وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم

إِنَّمَا شِفَاءُ الْعِيِّ السُّؤَال (الحدیث)

# احسن الفتاوی

## دویم جلد

(له کتاب الصلوة څخه تر آخر د باب القراءة والتجوید ـ فاتحة الکلام - پورې)

تالیف: فقیه العصر مفتی اعظم حضرت مفتی رشید احمد صاحب رحمه الله تعالی

ناشرین

مولوی محمد ظفر ((حقانی)) مولوی امیر الله ((شیرانی))

د ملاویدو پته

مکتبه فریدیه محله جنگی قصه خوانی پیښور

د کتاب نوم : احسن الفتاوی (دویم جلد) (له کتاب الصلوة څخه تر آخر د باب القراءة والتجوید ـ فاتحة الکلام ـ پورې)
د مؤلف نوم : فقیه العصر مفتی اعظم حضرت مفتی رشید احمد صاحب رحمه الله تعالی
پښتو ترجمه او کمپوز : قاری عبدالقیوم (لوګری)
ډیزاین . اصلاح او نظر ثانی : حافظ محمد ولی (بغلانی)
د چاپ کال : ۲۰۱۲
د چاپ شمیر : ۱۰۰۰ ټوکه
**ناشرین** : مولوی محمد ظفر ((حقانی)) مولوی امیر الله ((شیرانی))
د ملاویدو پته : مکتبه فریدیه محله جنګی قصه خوانی پیښور
د مکتبې مسؤل : مولوی محمد ظفر ((حقانی)) صاحب

# كتاب الصلوٰة

## د مازديگر د مستحب وخت تحقيق

**سوال**: دلته يو مولوي صاحب د مازديگر لمونځ ډېر ناوخته خلكو ته وركوي او وايي چه د احنافو په نزد دومره تاخير چه ((مالم تتغير الشمس بأن لا تحار فيها الاعين)) مستحب دى. او د حوالې په اړه وايي چه په هدايه كښې دا ډول حديث دى. آيا دمولوي صاحب دا خبره صحيح ده او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په هدايه كښې خو د ماسپښني د وخت په اړه حديث شته ليكن د مازديگر په اړه هيڅ يو حديث نشته بلكه پخپل د هدايې عبارت دى. د مازديگر په وخت كښې امام صاحب رحمه الله د جمهور په خلاف دى. دري گوني امامان رحمهم الله بلكه پخپله صاحبين رحمهما الله تعالى په نزد هم له لومړي مثل (د هر شي د سوري يوچند) څخه وروسته د مازديگر وخت شروع كيږي او له امام صاحب څخه هم يو روايت همدا ډول دى. ليكن د امام صاحب د مشهور قول له مخې له دويم مثل (د هر شي د سوري دوه چند) څخه د مازديگر وخت شروع كيږي.

قال الحافظ العينى رحمه الله وعند ابى يوسف ومحمد اذا صار ظل كل شئ مثله يخرج وقت الظهر ويدخل وقت العصر وهى رواية الحسن بن زياد عنه وبه قال مالك والشافعى واحمد والثورى واسحٰق رحمهم الله تعالىٰ (الى ان قال) قال القرطبى خالف الناس كلهم ابو حنيفة فيما قاله حتى اصحابه الخ. (عمدة القارى ج ٢)

پس د مازديگر د تاخير په قول كښې د څو وجوهاتو احتمال شته.

١ - د فقهې په كتابونو كښې د مازديگر د تاخير له بيان څخه مقصد دا دى چه له دويم مثل څخه وروسته وشي چه له مخې ئې د درې گوني امامانو او صاحبينو په خلاف د امام صاحب قول ته ترجيح وركول دي. لنډه دا چه له تعجيل څخه مراد تر لومړي مثل وروسته او له تاخير څخه مراد تر دويم مثل څخه وروسته د مازديگر د لمانځه ادا كول دي.

قال العلامة العينى رحمه الله ويؤيد ما قاله ابو حنيفة حديث على بن شيبان رضي الله عنه قال قدمنا على رسول الله ﷺ المدينة فكان يؤخر العصر ما دامت الشمس بيضاء نقية. رواه ابو داؤد وابن ماجة. وهٰذا يدل على انه كان يصلى العصر عند صيرورة ظل كل شئ مثليه وهو حجة على خصمه وحديث جابر رضي الله عنه صلى بنا رسول الله ﷺ العصر حين صار ظل كل شئ مثليه قدر ما يسير الراكب الى ذى الحليفة العنق. رواه ابن ابى شيبة بسند لا بأس به. (عمدة القارى ج ٢)

د علامه بدر الدین له دې بیان څخه مقصد دا دی چه د امام صاحب په مذهب کښې د دویم مثل تر پایه پورې باید تاخیر وشي.

۲ - د فقهې په کتابونو کښې چه چیرته د مازدیگر د تاخیر یادونه شوې ده هلته ئې علت هم راغلی دی.

**قال فی الهدایة لما فیه من تکثیر النوافل لکراهتها بعده وفی العنایة وتکثیر النوافل افضل من المبادرة الی الاداء فی اوّل الوقت وفی شرح التنویر توسعةً للنوافل وفی الشامیة ای لکراهتها بعد صلوة العصر.**

هو! چه کله له مازدیگر څخه مخکښې نفل کوونکي خلک موجود نه وي نو په مازدیگر کښې تاخیر به هم بهتر نه وي.

۳ - د نوافلو د ډیر والي په غرض سره هم باید دومره تاخیر و نه شي چه د مازدیگر تر لمانځه وروسته په پښو تلونکی سړی د لمر تر ډوبیدو مخکښې شپږ میله مسافه مزل وکړی شي. د عرض البلد او میل الشمس له مخې دا اندازه مختلفه وي.

**روی الامام الطحاوی رحمه الله فی شرح معانی الأثار عن ابی اروی قال کنت اصلی مع النبی ﷺ العصر بالمدینة ثم اٰتی الشجرة ذا الحلیفة قبل ان تغرب الشمس وهی علی رأس فرسخین ففی هٰذا الحدیث انه کان یسیر بعد العصر فرسخین قبل ان تغیب الشمس فقد یجوز ان یکون سیراً علی الاقدام وقد یجوز ان یکون سیراً علی الابل والدواب فنظرنا فی ذٰلك (الی قوله) قال کنت اصلی العصر مع النبی ﷺ ثم امشی الی ذی الحلیفة فاٰتیهم قبل ان تغیب الشمس ففی هٰذا الحدیث انه کان یأتیها ماشیاً. وایضاً فیه عن ابی مسعود رضی الله عنه قال کان رسول الله ﷺ یصلی صلوة العصر والشمس بیضاء مرتفعة یسیر الرجل حین ینصرف منها الی ذی الحلیفة ستة امیال قبل غروب الشمس وایضا فیه عن ابی الابیض عن انس رضی الله عنه قال کان رسول الله ﷺ یصلّی صلوة العصر والشمس بیضاء محلقة (الی قوله) فذٰلك دلیل علی انه قد کان یؤخرها ثم یکون بین الوقت الذی کان یصلیها فیه وبین غروبها مقدار ما کان یسیر الرجل الی ذی الحلیفة الخ وایضاً فیه والاولی ینافی هٰذه الأثار لما جاءت هٰذا المجیء ان نحملها ونخرج وجوهها علی الاتفاق لا علی الخلاف والتضاد فنجعل التأخیر المکروه فیها هو ما بیّنه العلاء ان انس رضی الله عنه ونجعل الوقت المستحبّ من وقتها ان یصلّی فیه هو ما بینه ابو الابیض عن انس رضی الله عنه ووافقه علی ذٰلك ابو مسعود رضی الله عنه. (شرح معانی الأثار ج۱)**

امام طحاوي رحمه الله د حنفي فقهې لوړ پوړی امام او تر ټولو د امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله په مذهب زیات پوهیدونکی دی. د لویې درجې فقیه او محدث دی د هغه پورتنی تحقیق او څیړنه دا څرګندوي چه د امام ابو حنیفه رحمه الله په مذهب کښې د مازدیگر تاخیر تر هغه وخته پورې مستحب

دی چه تر لمانځه وروسته یو څوک شپږ میله سفر د لمر تر ډوبیدو مخکښې وکړی شي. د علامه عیني رحمه الله تحقیق هم د دې مطابق پورته تیر شو. رد المحتار نومي کتاب کوم چه په حنفي مذهب کښې د فتاواوو له ټولو کتابونو څخه فائق (ممتاز او د لوړې درجې) کتاب ګڼل کیږي بلکه د فتاواوو معیار او مدار دی. په هغه کښې هم د مازدیګر د تاخیر په اړه د امام طحاوي تحقیق غوره شوی دی.

**قال الامام الطحاوی بعد ذکره ماروی فی التأخیر و التعجیل لم نجد فی هٰذه الأثار مما صحت الا ما یدل علی تأخیر العصر ولم نجد ما یدل منها علی التعجیل الا ما عارضه غیره فاستحببنا التاخیر ولو خلینا النظر لکان تعجیل الصلوات کلها افضل ولکن اتباع ماروی عن رسول الله ﷺ مما تواترت به الاخبار اولیٰ وقد روی عن اصحابه مایدل علیه ثم ساق ذٰلك وتمامه فی الحلیة.(ردالمحتار ج۱)**

په نوموړي عبارت کښې امام طحاوي رحمه الله چه د کوم تاخیر په زړورو الفاظو سره دعوی کوي دا هغه تاخیر دی چه تر هغه وروسته یو څوک شپږ میله سفر وکړی شي. **((کما هو مفصل فی شرح معانی الآثار))** همدارنګه امام طحاوي له دې قول چه **((ولو خلینا النظر - الخ))** څخه ښکاره شوه چه د مازدیګر تاخیر د قیاس خلاف دی لهذا پخپل مورد باندې به منحصر پاتې کیږي. د امام طحاوي له ثابت شوي تاخیر څخه زیات تاخیر له نبي کریم ﷺ څخه هیڅکله هم نه ده ثابته. لهذا د قیاس په مقتضاء سره له دې زیات تاخیر کول به د استحبابو خلاف وي.

د فقهې په کتابونو کښې چه کوم شی **((مالم تتغیر الشمس بان لاتحار فیها الاعین))** لیکل شوی دی د دې مطلب دا نه دی چه لمونځ په دومره تاخیر سره وشي چه له لمانځه څخه تر فارغیدو فوراً وروسته لمر تغیر وخوري او له دې څخه مخکښې لوستل ئې د استحبابو خلاف دی. بلکه د دې مطلب دا دی چه د لمر له تغیر څخه تر مخکښې وخت پورې اجازه ده (اګر که مستحب وخت هغه دی کوم چه امام طحاوي صاحب ئې یادونه کړې ده) او تر تغیره پورې ئې تاخیر کول مکروه ذي. پس له دې څخه مقصد د کراهیت د پیل بیان دی نه د تاخیر د مستحب والي. **((کما یدل علیه ما نقلنا من عبارة الطحاوی فنجعل التاخیر المکروه - الخ))**.

دنبي کریم ﷺ د عمل نمونه او د صحابه کرامو رضی الله عنهم عمل او د حنفي امامانو رحمهم الله تعالی د مسلک مطابق یو اځې دومره تاخیر مستحب دی چه تر لمانځ وروسته او د لمر تر ډوبیدو مخکښې شپږ میله مزل وشي. کله کله د کتاب په عبارت په نه پوهیدو سره انسان په ګمراهي کښې ولویږي.

**وکم من عائب قولاً صحیحاً و آفته من الفهم السقیم**

د دې ليکنې خلاصه درې خبرې دي:

پخپله په حنفي مذهب کښې چونکه صاحبين رحمهما الله تعالى د دې قائل دي چه د مازديگر وخت له اول مثل څخه شروع کيږي او له امام صاحب څخه هم يو روايت د دې مطابق راغلى دى پس په حنفي مذهب کښې له مثل اول څخه وروسته د مازديگر لمونځ صحيح دى د دې لپاره حنفي فقهاء رحمهم الله وايي چه تر مثل ثاني وروسته د مازديگر د لمانځه ادا کول مستحب دي. يعنې د تاخير له استحباب څخه مراد ((تأخير الى انقضاء المثل الثانى))(يعنې د مثل ثاني تر تيريدو پورې تاخير) دى تر څو چه د امام صاحب د قول رعايت وشي او د اختلاف له شبهې څخه ځان ساتنه وشي.

۲- د مثل ثاني تر ختميدو وروسته زيات تاخير د دې لپاره مستحب دى چه نفلونه زيات پکښې ادا شي. ((فالحكم يكون دائراً مع علته)).

۳ - د نوافلو د ډيروالي په غرض سره د حنفيه وو په نزد دومره تاخير بايد وشي چه تر لمانځه وروسته او د لمر تر ډوبيدو مخکښې يو څوک په پښو شپږ ميله مزل وکړى شي. د عرض البلد او ميل الشمس د اختلاف له مخې دا اندازه مختلفه وي. فقط و الله تعالى اعلم و علمه اتم و احكم

۱۳ ربيع الآخر ۷٤ هجرى

## په اوږدو ورځو درلودونکو ځايونو کښې د لمانځه او روژې د وختونو حکم

**سوال**: د اروپا په ځينو ځايونو کښې په کال کښې شپږ مياشتې يوائې نيم ساعت ورځ او درويشت نيم ساعته شپه وي او پاتې شپږو مياشتو کښې بې د دې برعکس وي. په داسې ځايونو کښې دصبح صادق، نصف النهار، دلمانځه اوروژې د وختونو تعين به څرنگه کيږي؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ورځې لنډ والى[1] په لمانځه او روژې باندې کوم اثر نه اچوي. د ورځې د لويېدو په صورت کښې که چيرته په څلورويشتو ساعتونو کښې د ننه د لمر تر ډوبيدو وروسته د ضرورت په اندازه د څه خوړلو او چښلو وخت لاس ته راځي نو د لمر تر ډوبيدو پورې روژه فرض ده البته که چيرته ئې څوک برداشتولى نه شي نو په کوچنيو ورځو کښې دې بيا قضائي راوړي. او که چيرته تر غروب وروسته د ضرورت په اندازه د خوړلو چښلو وخت نه وي يا په څلورويشتو ساعتونو کښې با لکل غروب نه کيده نو په دې کښې مختلف قولونه دي. په دغو کښې په هر يوه باندې د عمل کولو اجازه شته.

۱- د شافعي رحمه الله د قول مطابق تر ټولو ور نژدې علاقه کښې چه چيرته د لمر تر ډوبيدو وروسته د ضرورت په اندازه خوراک او چښاک وخت په لاس ورځي د هغه مطابق دې عمل وشي.

---

۱ - په ډيرو زياتو لنډو ورځو کښې د ماسپښين او او مازديگر د لمانځه حکم د راتلونکي سوال په ځواب کښې دى.

۲- د هرو څلورويشتو ساعتونو تر پوره کېدو مخکښې يو اځې د دومره وخت لپاره روژه وخوړه شي چه په هغه کښې د ضرورت په اندازه څه خوړل کيدلی شي. د نتيجې له مخې په دغو دواړو قولونو کښې څه فرق نشته.

۳- په نورو لنډو ورځو کښې دې قضائي راوړي.

٤- په څلورويشتو ساعتونو کښې د ننه د لمر د غروب په ورځو کښې تر ټولو په آخري ورځ د مازديگر د وخت له پيل يا ابتداء څخه چه څومره وروسته لمر غروب شوی وو، له مازديگر څخه همدومره وروسته افطار وکړي. دا قول د استصحاب حال، حديث دجال او د شافعي قول ته د نژديکت برسيره تر ټولو آسانه هم دی.

قطبينو ته نژدې په ټول کال کښې هيڅکله هم د عام معمول مطابق څلورويشت ساعته شپه او ورځ پوره نه وي په دې ځای کښې په آخري دوو قولونو باندې عمل نه شي کيدلی. لهذا هلته لومړی يا دويم قول به د عمل لپاره متعين کيږي. که چيرته د دې تحمل نه وي نو د شافعي رحمه الله د قول په مقتضا سره تر ټولو ښارونو د ور نژدې ښار د لنډو ورځو د مقدار مطابق دې روژې ونيسي د لمونځونو حکم دا دی چه چيرته سپين مستطير (اوږد غزيدلی) شفق نه ډوبيږي يعنې لمر «۱۵°» درجې د اُفق لاندې لاړ نه شي هلته د سره شفق د ډوبيدو په صورت کښې د ماسخوتن لمونځ ادا کړي، په دې وخت کښې لمر «۱۲°» درجې د اُفق لاندې وي. او چيرته چه سور شفق هم نه ډوبيږي هلته د ماسخوتن لمونځ د ځينو علماوو په نزد معاف دی او د ځينو په نزد فرض دی. دويم قول ارجح او احوط دی.

**قال ابن عابدين رحمه الله بعد بحث طويل من الجانبين و الحاصل انهما قولان مصححان و يتأيد القول بالوجوب بأنه قال به امام مجتهد وهو الامام الشافعي رحمه الله كما نقله في الحلية عن المتولي عنه. (ردالمحتار ج۱، ص۳۳۸)**

دغو حضراتو دا تصريح نه ده کړې چه د ماسخوتن لمونځ کوم وخت بايد ادا شي، په اصولي توگه دا خبره ښکاره ده چه له نيمې شپې څخه مخکښې شفق په مغرب کښې داخل دی او تر دې وروسته په سهار کښې داخل دی. د دې اصول او د دجّال د حديث له مخې دا ثابتيږي چه په دې علاقې کښې چه په کومو ورځو کښې سور شفق غائبيږي په هغو کښې تر ټولو په آخره ورځ کښې چه د لمر تر ډوبيدو څومره ځنډ وروسته د ماسخوتن وخت شروع کيده اوس هم همدومره ځنډ وروسته د ماسخوتن د وخت پيل شمارل کيږي او د دې انتهاء په نيمې شپې باندې وي.

د سهار د پای او د فجر د ابتداء په اړه دا اصول په نظر کښې ونيسی چه په کومې علاقې کښې سپين پلن شفق «۱۵°» درجې د اُفق لاندې) په ډوبيدو سره بل سپين مستطيل شفق پيدا شي اگر

که دا مستطیل د غروب سپین والی نه وي هلته د بیا معترض بیاض یا پلن سپین والي د ښکاریدو وخت به د سهار انتهاء او د فجر ابتداء وي او چیرته چه معترض بیاض نه ډوبیږي هلته د لمر له غروب څخه ونیسه د لمر تر ختلو پورې وخت په دوه برخو تقسیمیږي. لومړنۍ نیمائي به ئې په شپه کښې داخله وي او دویمه نیمائي به ئې په صبح صادق کښې، چه په کوم ځای کښې سور شفق نه ډوبیږي د هغه هم همدا حکم دی.

که چیرته په څلورویشتو ساعتونو کښې لمر نه ډوبیده نو د ځینو په نزد شپه او ورځ که هر څومره اوږده وي تر دې پورې چه شپږ میاشتې ورځ او شپږ میاشتې شپه وي نو بیا په ټول کال کښې یواځې پنځه لمونځونه پخپلو اصل وختونو کښې فرض دي. لیکن په دې کښې ارجح او احوط قول دا دی چه په هرو څلورویشتو ساعتونو کښې د اندازې له مخې پنځه لمونځونه ادا شي. په تنویر الابصار کښې دا د وخت په تقدیر سره تعبیر شوی دی. علامه شامي رحمه الله د دې دوه مطلبونه بیان کړي دي یوه دا چه د شوافعو د قول مطابق د دې علاقې د وختونو تقدیر یعنې تعیین له داسې تر ټولو نژدې علاقې سره وشي چیرته چه په څلورویشتو ساعتونو کښې پنځه وختونه تر لاسه کیږي. علامه شامي رحمه الله دې مطلب لره د څو وجوهاتو له مخې په غلط ګڼلو سره دویم مطلب دا بیان کړی دی چه دلته تقدیر د فرض په معنٰی سره دی یعنې د لمانځه وخت اګر که په حقیقت کښې موجود نه دی لیکن په حکمي توګه فرض شمارل کیږي. بیا د دې هم دوه صورتونه کیدلی شي یوه دا چه په معتدلو (درمیانه) ورځو کښې په فرضي توګه د هغو له حسابه پنځه ګوني وختونه متعین شي. یعنې په معتدلو ورځو کښې د لمانځ د وختونو تر منځ چه څومره وخت دی د هغه لحاظ وشي او دویم صورت دا دی چه په دې علاقې کښې چه په کومو ورځو کښې پنځه ګوني وختونه پیدا کیږي په هغو کښې تر ټولو آخري ورځ معیار وګڼل شي او د هغه په مطابق وختونه وټاکل شي. د فقهاء کرامو رحمهم الله په عبارتونو کښې دا تصریح تر لاسه نه شو چه په دغو دواړو صورتونو کښې کوم صورت معتبر دی. البته له عبارتونو څخه په ظاهره د دویم صورت مفهوم تر سترګو کیږي. برسیره پر دې دا صورت د شافعي د قول، د استصحاب حال او د دجال له حدیث څخه ئې هم تائید کیږي. ځکه چه د دجال په ورځو کښې په ظاهره سره له هم هغو ورځو څخه د تقدیر حکم دی کوم چه د دجال تر اوږدې ورځې د مخه وو نه د معتدلو ورځو تقدیر.

په کومو ځایونو کښې چه هیڅکله هم په څلورویشتو ساعتونو کښې شپه او ورځ نه پیدا کیږي هلته د امام شافعي دقول مطابق د تر ټولو ور نژدې ښار حساب ټاکل کیږي. فقط و الله تعالی اعلم

۱۲ ذی القعدة ۸۱ هجری

**د وخت د تخریج، د قبلې د سمت قواعد او قبطینو ته د نژدې ځایونو د لمانځه د وختونو د تعین ضابطه**

**Department of Mathematical Sciences**

بسم الله

۸شوال المکرم ۱۳۹۷ هجری
۲۲ستمبر ۱۹۷۷ء

**Mathematical Sciences Department**
**Rensselaer Polytechnic Institute, Troy, New York ۱۲۱۸۱, USA**

په خدمت د مولانا مفتي رشید احمد صاحب لدهیانوي کښې
مهتمم دار الافتاء و الارشاد ناظم آباد کراچي، پاکستان
السلام علیکم و رحمة الله و برکاته ! تقریبا یو کال وشو چه دلته په آلبني (Albany,NewYork) کښې د اسلامي مرکز او جومات د نقشې د جوړیدو په وخت کښې د قبلې د سمت د تعین مسئله مخې ته راغله. په مونږ کښې چا ته په دې باندې د مسلمانو علماوو د تحقیق او څیړنې معلومات نه وو. د هیئت د علم د لږ او ډیر معلومات کوم چه ما ته حاصل وو. د هغه پر بناء ما کروي (دائروي) مثلث په حل کولو سره د قبلې سمت محسوب کړ ((**کوم چه وروسته په امریکه او کاناډا کښې د انجمن طلبۀ مسلمین له خوا څخه له خپاره شوي یوه چارټ سره په مقابله کولو باندې او بیا ستاسو د ورکړ شویو قواعدو په ذریعې سره د حساب لګولو باندې بحمد الله صحیح ثابته شوه**)) لیکن ما ته په دې وخت کښې څه اطمینان حاصل نه وو. په هر حال په دې موقع باندې زما شوق پیدا شو چه زه په دې مسئله کښې او نورو اړوندو مسائلو لکه د لمانځه د وختونو تخریج، رؤیت هلال، د هجري او عیسوي کلونو د مطابقت په باره کښې د شرعي احکامو، علم ریاضي او علم هیئت له مخې د هغو لپاره صحیح ضابطې یا قوانین څرګند کړم. زما د دې شوق تسلي تر ډیرې اندازې پورې زر وشوه څکه چې په تیر ژمي کښې پاکستان ته په تلو سره ما ته په ناڅاپي توګه د خپل والد صاحب (محمد عثمان ابدالي صاحب) خوا ته د ملک بشیر احمد بګوي صاحب کتاب ((**فن تخریج سمت قبله او اسلامي اوقات**" **لاس ته راغی او بیا مې په هغه کښې ستاسو د ګرامي نامه حواله ولیدله ما ستاسو کتابونه "صبح صادق" او "ارشاد العابد**)) هم واخیستل. دا کتابونه زما لپاره د بې اندازې معلوماتو خزانه ثابته شوه او په لاس ته راوړلو سره ئې دومره خوشحاله شوم چه بیان ئې له مبالغې ګڼل کیږي

تر راتلو. وروسته مې زړه غوښتل چه زه داسې کمپیوټر پروګرام ولیکم چه په هغه کښې د کوم کلي لپاره هم د غوښتنې مطابق د لمانځه د وختونو او سیوري په ذریعې سره د قبلې د سمت په تاکلو کښې د جدول کار ورکړی شي. د خدای جل جلاله شکر دی چه دا پروګرام مکمل شو او په ظاهره صحیح کار کوي. ((**د دغو پروګرامو د نتائجو څو نمونې ستاسو په خدمت کښې دي. دا نتائج ما ستاسو په کتاب "صبح صادق" کښې د ورکړ شویو وختونو له مقائسه کولو سره صحیح وموندل.** )) لږ زیات چه کوم فرق دی هغه د کمپیوټر د حساب په تقریبي غلطیو (**Approximation errors**) باندې محمول کیدلی شي. او بل په دې خبرې باندې چه په پروګرام کښې شمسي میل او داسې نور د هر وخت لپاره محسوبیږي د دې په ځای چه د ماسپښین د وخت قیمت استعمال شي. د دې فرق په تفصیل کښې زه وړاندې عرض کوم.

د دې پروګرام صادرات داسې معلومات وي : د ځای نوم، عرض بلد، طول بلد څه دي؟ د معیاري وخت طول البلد څه دي؟ آیا د کوم ځانګړي کال حساب په کار دې یا ((دائمي)) ((**د دې لپاره په اوس وخت کښې د ۱۹۷۸ زیږدیز کال استعمالیږي**)) آیا د ګرمي او ژمي د وخت فرق لحاظ کیږي؟ آیا یواځې د لمانځه د وختونو جدول غواړی یا یواځې له سیوري څخه د قبلې د ټاکلو جدول او که دواړه؟ ((**د مازدیګر وخت د سیورې د یوه چند کیدو باندې داخلیږي او که د دوه چنده؟**)) د پروګرام صادرات داسې نقشې دي چه د هغو نمونې ستاسو په خدمت کښې دي.

د دې پروګرام په لیکلو کښې یو خیال زما په ذهن کښې پاتې شو چه اګر که د لمانځه د وختونو لپاره څو دائمي یا تل پاتې جدول مناسب دې ځکه چه کال په کال په وختونو کښې یواځې د یوې یا نیمې دقیقې فرق پیدا کیږي او هغه هم هر څلور کاله بعد ډیر سپک یا کم پاتې کیږي. ((**لیکن د سیوري په ذریعې سره په مختلفو تاریخونو کښې د قبلې د سمت په ټاکنه** )) کښې د وخت د دومره کلنې تغیر له اثر څخه د غلط کال له جدول څخه په ټاکل شوي د قبلې په سمت کښې ((**پوره د یوې درجې (یا تر دې د لږ زیاتې) غلطۍ احتمال شته.**)) د دې لپاره په ځانګړې توګه د جوماتونو د توجیه (قبلې ته د مخامخ کولو) لپاره که چیرته د هر کال ډیره صحیح توګه جدول جوړ کړی شي نو نوره به هم غوره وي. دویم خیال دا را سره پاتې شو چه اوس کمپیوټر او لاسي کالکولیټر دومره عام او زر لاس ته راتلونکي شول چه د جدولونو استعمال غیر ضروري کیدونکي دې. د مثال په توګه اوس د کمپیوټر په پروګرامونو کښې د مثلثي نسبتونو او لوګارتم (یو ډول ریاضي حساب کوم چه د حساب د خپریدو یا زیاتیدو مخه نیسي) او داسې نور د یو ځای کولو او کینبودلو په ځای بس والې او آسانتیا په دې کښې محسوسیږي چه کله هم د دغو شیانو ضرورت پیښ شي هغوی له سره محسوبیږي. د دې لپاره زما په پروګرام کښې هم د ((شمسي میل)) او داسې نورو جدولونه نه استعمالیږي بلکه هر شی یواځې د ګوتو په شمار د مستقلو بنیادونو په اساس محسوبیږي. لکه

څرنګه چه هر ځانګړی تاریخ د مخصوص وخت د لمانځه لپاره په لومړي مدار کښې د لمر طول البلد محسوب شوی دی. له دې څخه مستقیم صعود (Right Ascension) او شمسي میل او ساعتي زاویه (Hour Angle) بیا کوکبي وخت (Sidereal Time) او له دې څخه مقامي او معیاري وخت. د لمانځه د وخت تقریبي قیمت د کال د لومړۍ ورځې لپاره دوه ځله دعمل په کولو سره را ایستل شوی دی او بیا د هرې تیریدونکې ورځې وخت د تیرې شوې ورځې د وخت د تقریب په توګه استعمال شوی دی. د هر کال لپاره څو ابتدائي مقدارونه د سنه ۱۹۰۰عیسوي د حوالې په مستقلو مقدارونو سره محسوب شوی دی. همدارنګه د کلونو د فرق اثر هم په لحاظ کښې ساتل شوی دی او په دائمي جدولونو کښې به هم انشاء الله حساب ډیر د اعتبار وړ او صحیح وي.

په لاس سره یا د کالکولیټر په مدد سره هم د هر یوه پوره کال لپاره دومره حساب به ډیر وخت وغواړي او غلطی به هم بیخي پکښې زیاتې شي لیکن له کمپیوټر څخه چه کله کار واخیستل شي نو د حساب په دې اوږدوالي کښې کوم نقصان نشته. خپلې لیکل شوې ضابطې جلا او بیل لیکم او در وړاندې کوم ئې، په هغو کښې چه کوم مستقل اعداد استعمال شوي دي هغه هر کال American Ephemeris په تمهید کښې موجود پاتې کیږي. په دې کښې New comb,s Table هم حواله ورکړ شوې ده چه په هغې کښې دا اعداد اخذ شوي دي. په دغو Tables کښې د لمر د حرکت په حساب کښې او د ډیر قسم Perturbations او نورو مشکلاتو یا سختیو هم تفصیل شته. لیکن زما په پروګرام کښې دا ټول له نظره غورځول شوي دي ځکه چه د هغو په شاملولو سره د یوې پوره دقیقې د درجې په صحت کښې نوره ترقي نه کیږي او حساب سختیږي. «**که چیرته د پروګرام په نتائجو کښې یا تر استعمال لاندې په حسابي ضابطو کښې تاسو ته کوم عیب په نظر درشي یا د هغه د لا ښیګړې کومه خبره ستاسو په ذهن کښې راشي نو خامخا مې پرې خبر کړئ.**»

دا پروګرام د شمال د ځینو ښارونو لپاره کار نه کوي ځکه چه هلته په عامه معنی د سهار او ماسخوتن وختونه نه وي. تاسو ته د خط په لیږلو زما اصل مقصد په دغو مسائلو کښې «**ستاسو د رائې معلومول دي.**»

دا پوښتنه اکثره وخت کیږي چه په قطبینو (د لمر د راختو او ډوبیدو طرفونه) کښې چه چیرته شپږ میاشتې شپه وي لمونځونه په کومو وختونو کښې ادا کیږي د دې د تسلي بخښونکي ځواب له اوریدو څخه تر اوسه محروم یم. لیکن لکه څرنګه چه په قطبینو باندې او په منجمدو برخو کښې د مسلمانانو آبادي نشته د دې لپاره د دې پوښتنه په اوس وخت کښې زیات عملي اهمیت نه لري لیکن د شمالي امریکې او اروپا ډیر د داسې لوړو عرض البلدونو لرونکي ځایونه شته چه هلته مسلمانان موجود دي لیکن چه چیرته په ځینو تاریخونو کښې د سهار او ماسخوتن وختونه د لمر د رأسي فاصلې (Zenith Distance) د تعریف له مخې نه ټاکل کیږي. (ستاسو د صبح صادق

نومي كتابو كښې دا خانې تشې پرېښودل شوي دي) بيا په قطبينو او نژدې مقاماتو كښې د مغرب تعين هم په دې تعريف سره ناممكن دى. لكه څرنګه چه هلته په هغو تاريخونو كښې لمر تر اُفق پورې كښته نه لويږي بلكه په آسمان كښې دائره لګوي. **((د هغو ځايونو يا مقاماتو لپاره دلته ځينو حضراتو دا رايه وركړې ده چه په هغو كښې دې د مكې مكرمې وختونه استعمال شي، د ځينو نورو حضراتو خيال دا دى چه په هغو ځايونو كښې د تر ټولو نژدې هغو مقاماتو وختونه غوره شي چيرته چه داسې وختونه ممكن دي.))** ما ته دا نه ده معلومه چه دا رايې څومره مستندې دي ليكن له دغو دواړو څخه تر اوسه پورې ما ته تسلي نه ده را په برخه شوې. د مكې مكرمې دوختونو په غوره كولو كښې ما ته دا مشكل په نظر راځي چه (كوم چه ښائي د نورو په نظر كښې د توجه وړ نه وي) چه په دې توګه د عرض بلد په زياتيدو سره د وختونو تغير په غير مسلسله توګه واقع كيږي. يعنې داسې خو د شمال خوا ته د هر څو ميلونو په زياتيدو باندې د لمانځه په وختونو كښې (په تدريج سره يواځې څو دقيقې فرق كوي ليكن له كوم نقطهٔ نظر څخه چه د مكې مكرمې وختونه غوره شي هلته د لمانځه په وختونو كښې په ناڅاپي توګه په ساعتونو كښې فرق واقع كيږي. همدارنګه دا صورت مخې ته راځي چه دوه كلي كوم چه شمالاً جنوباً په لږ غوندې فاصلې باندې واقع دي په هغو كښې د لمانځه وختونه با لكل مختلف وي په داسې حال كښې چه ټول فلكي (آسماني) مظاهر او د لمر د حركت په اعتبار سره په هغو كښې د وختونو لږ غوندې په تدريج سره فرق وي. په نورو طريقو (يعنې په كوم ځاى كښې چه د ختونو تخريج نه شي كيدلى هلته د تر ټولو نژدې ځاى وختونه را واخيستل شي) كښې چه كوم حل بيان شوى دى هغه زما په ذهن كښې نه راځي. **((ځكه چه كه چيرته د كوم لوړ عرض البلد لرونكي ځاى لپاره يواځې په همدې طول البلد باندې واقع د كم عرض البلد د ځاى پلټنه هم وشي نو څرنګه؟))** تر ټولو مخكښې يو داسې مقام راځي چيرته چه د لمر را ختل به په ډوبيدو باندې منطبق وي. (دلته د لمر دائره له اُفق سره لګيږي) لږ نور په كښته تللو باندې طلوع او غروب مختلف كيږي ليكن سهار او ماسخوتن سره يو كيږي. بيا څومره چه عرض البلد نور كميږي په سهار او ماسخوتن كښې فرق پسې زياتيږي. ليكن دا با لكل واضحه نه ده چه سهار او ماسخوتن كښې كم تدر كمه بايد څومره موده وي. **((بله دا چه ايا د طلوع او غروب وختونه به د يوه ځاى غوره كيږي او سهار او ماسخوتن به دبل ځاى؟))**

د ماسخوتن او سهار په باره كښې دا صورت حال هم په ځانګړې توګه سړى پريشانه كوي چه د لوړ عرض البلد په ځايونو باندې په ځينو تاريخونو كښې اګر كه ماسخوتن او سهار دواړه واقع كيږي ځكه چه هلته لمر په مغرب او مشرق دواړو كښې له رأس څخه°١٠٥ درجې كښته ځي ليكن د دغو دواړو وختونو منځنى موده ډيره مختصره وي د مثال په توګه°٥٢ شمال باندې په اووم (٧) جون (د صبح صادق د كتاب په حوالې سره) د ماسخوتن وخت د شپې په ١١ بجو او ٣٤ دقيقو

باندې شروع دی. بیا د دې په ۵۲ دقیقو کښې د ننه ۱۲ بجې ۲۶ دقیقې باندې د سهار د وخت ابتداء کیږي. یو څو دقیقې نورې د شمال خوا ته په تلو سره «**د ماسخوتن او سهار تر منځ موده نوره کمیږي او دومره وخت نه پاتې کیږي چه سړی په صحیح توګه لمونځ ادا کړی شي.**»

د دې لپاره زه په دې خبره کښې لږ شکمن یم چه د لمر دې فاصلې لره په مطلقه توګه د لمانځه د وخت بنیاد وټاکل شي. دا تعریف په استوائي او نشیبي معتدلو ځایونو کښې خو کار ورکوي لیکن په پورتنیو ځایونو کښې له دې څخه هیڅکله د لمانځه د وختونو تعین نه کیږي او کله کله د ټاکل کیدو باوجود هم غیر عمله په نظر کښې راځي. «**مثلاً که چیرته په ماسخوتن او سهار کښې یواځې ۱۵ دقیقې فرق وي نو د دې په ځای چه سړی د ماسخوتن لمونځ وکړي او ویده شي او بیا له خوبه را پاځي او د سهار لمونځ وکړي، دواړه لمونځونه په "نیمه شپه" کښې له خوبه د پاځیدو په صورت کښې ادا کوي.**»

اوس پوښتنه دا ده چه آیا داسې کول جائز دي چه په لوړو ځایونو کښې د لمر ساعتي زاویه (Hour Angle) (کوم چه تاسو غالباً دې ته تعدیل النهار وایئ) په ذریعې سره د لمانځه د وختونو تعریف وشي. یعنې د لمر په دائره کښې کښته یوه ځانګړې برخه شپه وټاکی او په همدې برخې کښې یو ډول طلوع، سهار، ماسخوتن او غروب وختونه غوره شي. د مثال په توګه په شکل کښې د الف، ب، ج ځایونه کوم چه په تدریج سره ډیر د شمال خوا ته دي د دغو دریواړو لپاره د لمر د دائرې د ط، غ برخه شپه و منله شي او ط، ف، ع، غ د سهار، ماسخوتن




او غروب د وختونو په توګه غوره شي په داسې حال کښې چه د فلکي مظهر له لحاظه یواځې د ب په مقام باندې حقیقي طلوع او اختیاري طلوع سره هم وخته دي. د الف په مقام باندې اختیاري طلوع تر حقیقي طلوع څخه وروسته دی او د ج د مقام لپاره خو حقیقي طلوق با لکل واقع کیږي نه او اختیاري طلوع یو مفروضه شی دی. په دې حل کښې یو لوی عیب دی چه کله کله (لکه د الف په

مقام باندې، د لمر له حقيقةً ډوبيدو څخه مخکښې ماښام ګڼل کيږي او د طلوع تر کيدو وروسته پورې د سهار وخت باقي ګڼل کيږي. ليکن دا صورتِ حال د قطبينو خوا ته مخکښې راتلل ضروري خبره ده. اوس که چيرته د قطبينو خوا ته اوسيدونکو خلکو ته رخصت حاصليږي نو له دې سره همدا شان رخصت د شپې د ډير لنډوالي له وجې له قطبينو څخه لږ غوندې کښته اوسيدونکو ته به جائز وي؟ د شمالي اروپا په ښارونو کښې کوم چه د شپې او ورځې تر منځ ډير فرق وي د ژوندانه روزمره مصروفيتونه، دفتر او کاروبار وختونه او داسې نور په همدې ډول ګړي ته په کتو سره تر سره کيږي.

که چيرته په دې طريقې سره د لمانځه د وختونو متعين کول د اصولو له مخې د قبول وړ وبلل شي نو بيا به دا مسئله د حل غوښتونکې پاتې شي چه د سهار، لمر ختلو، ماښام او ماسخوتن کښې د هر يوه وخت ساعتي زاويه څومره ده؟ او د څومره درجې عرض البلد څخه وروسته د لمر د رأسي زاويې په ځای له ساعتي زاويې څخه د لمانځه وختونه مقرر شي.

ما ستاسو په خدمت کښې يواځې دا سوال وړاندې کړ. تاسو دا په شرعي احکامو کښې زما په زړورتيا باندې مه محموله کوی او که چيرته فرصت وي نو ځواب ئې خامخا راکړئ ځکه چه په شمالي اروپا او کاناډا کښې ډير زيات مسلمانان الحمد لله موجود دي او د هغو لپاره د لمانځه د وختونو صحيح تعين يوه اهمه عملي مسئله ده. و السلام. **نيازمند : کمال ابدالي**

## هغه ضابطې چه د لمانځه په وختونو او دقبلې د جدول په پروګرام کښې استعمال شوي دي په لاندې ډول دي

۱ـ د مطلوبه کال لپاره يو ځل حساب شوي مستقل اعدادونه

علامات: و- ۱۲ بجې د ورځې صفر جنوري سنه ۱۹۰۰ څخه صفر ساعت صفر جنوري مطلوبه کاله پورې وخت ۳۶۵۲۵ ورځو په يويز کښې.

طش، بقش، کو - صفر ساعت صفر جنوري مطلوبه کل باندې د لمر منځنی طول البلد، منځنی بې قاعدګي (**Anomaly**) او کوکبي وخت (**Sidereal Time**)

فبق، فطش، فکو، مطق - ورځنی فرق په بې قاعدګي کښې، په منځنی شمسي طول البلد کښې، په کوکبي وخت کښې او د لمر د لارې ميلان (څلور واړه د کال په دوران کښې په مستقله توګه فرض کړی شوي دي)

ک۱، ک۲ - د مساواتو مرکز (**Equation of center**) په سر (Coefficients)

هغه مساوات دا دي:

شمسي حقيقي طول البلد- شمسي منځنی طول البلد- حقيقي بې قاعدګي- اوسطه بې

قاعدګي- ک۱ جب بقش + ک۲ (۲بقش) + خفیف رقمونه

**ضابطې**: مطق - ۲۳ ۲۷ ۲۶/۸ً_ ٤٦/٨٤٥ً ×و + خفیف رقمونه

طش - ۲۷۹ ٤١َ ٤٨/٠٤ً + ۳٦٠٠٠ ٤٦َ ۱۳/۸ً × و + خفیف رقمونه

بقش - ۳٥٨ ۲۸َ ۳۳/٠ً + ۳٥۹۹۹ ۲َ ١/٥۹ً × و + خفیف رقمونه

کو - ٦ ۳۸ ٤٥/٨۳٦ + ۲٤٠٠ ۳ ٤/٥٤۲ × و + ٠٩۲۹/٠ س × و + خفیف رقمونه

فبق - ۳٥۹۹۹ ۲َ ١/٥۹ً / ۳٦٥۲٥ فطش - ۳٦٠٠٠ ٤٦ ۱۳/۸ً / ۳٦٥۲٥

فکو - ۲٤٠٠ گ ۳ م ٤/٥٤۲ س / ۳٦٥۲٥

ک۱ - ۱ ٥٥َ ٠٥٧/١٠ً _ ١٤٠/۱۷ً × و _ ٠٥۲/٠ً ×و۲ + ٠٠٠٠

ک۲ - ۱ ۳۳٨/۱۲ً _ ۳٦١/٠ً × و + ٠٠٠٠

**۲_ د لمانځه وخت په کوم مطلوبه تاریخ باندې د متعین کولو حساب**:

ع، ط، طمع - د مقام عرض البلد، طول البلد، د معیاري وخت طول البلد

ت، و، ی - د لمانځه لپاره تاریخ، تقریبي وخت، صفر ساعت صفر جنوري څخه د لمانځه تر وخت ورځو کېږي

بقش، طش، طحش - د لمانځه وخت د لمر بې قاعدګي (Anomaly) منځنی طول البلد، حقیقي طول البلد (شمسي)

ص، م، س، ر - د لمانځه په وخت کېږي د لمر مستقیم صعود (Right Ascension)، میل، ساعتي زاویه (Hour angle) رأسي فاصله (Zenith Distance)

کو، مو، معو - کوکبي وخت (Sidereal Time)، مقامي وخت، معیاري وخت

**ضابطې**: ي - ت + (ط + و) / ۲٤

بقش - بقش + ي × فبق طش - طش + ي × فطش

طحش - طش + ک۱ × جب بقش + ک۲ × جب (۲ × بقش) + خفیف رقمونه

ص - مس-۱ (جم مطق × مس طحش) اص په دې ربع کېږي

وي چه په هغه کېږي طحش دی]

م - جب-۱ (جب مطق × جب طحش) [-۹٠ دِ م دِ +

س - جم-۱ (جم ص - جب م × جب ع) / (جم م × جم ع) اصفر دِ س دِ ۲٤




[د لاندینی شکل مطابق څلورمه برخه غوره شي]




کو = س + ص

مو = کو - (کو + ي × فکو)

دا شمار د مطلوبه تاریخ په صفر ساعت باندې کوکبي وخت دی

معو = مو + ط - ط مع

**الجواب باسم ملهم الصواب :**

**تاسو وایئ** : د دې لپاره په اوس حال کښې سنه ۱۹۷۸ عیسوي استعمالیږي.

**زه وایم**: ددائمي نقشې لپاره دلیپ کال (هغه عیسوي کال چې اعداد ئې په څلورو تقسیمیږي او د فروري میاشت ئې نهه ویشت ورځې وي) په استعمالولو کښې نتیجې زیاتې صحیح را وو یځي.

**تاسو وایی**: د مازدیگر وخت دې د سیوري یو چنده واخیستل شي او که دوه چنده؟

**زه وایم**: د احنافو په نزد هم له یوه چند څخه وروسته د مازدیگر د لمانځه د ادا کولو گنجائش شته او د مرض، سفر او داسې نورو عذرونو په حالت کښې د دې ضرورت هم پیدا کیږي لهذا د دواړو وختونو د ورکولو ضرورت دی. همدارنگه د سره شفق (شفق احمر) یعنې ۱۲° تر افق لاندې (ناټیکل ټوائیلائټ) وخت هم ضروري دی ځکه چه د درې گوني امامو نه علاوه د احنافو رحمهم الله په نزد هم د شفق احمر قول راجح دی.

**تاسو وایی**: د سیوري په ذریعې سره په مختلفو تاریخونو کښې د قبلې د سمت په ټاکلو کښې یوه پوره درجه یا تر دې څخه د زیاتې غلطۍ احتمال شته.

**زه وایم** : د دې نقشې د عامې گټې اخیستنې او د هر کس او ناکس لپاره د آسانتیا له مخې د یوې درجې غوندې معمولي فرق کوم اهمیت نه لري. خصوصا چه کله په عملي توگه د دومره معمولي فرق څخه ځان ساتنه مشکله ده. که چیرته د لیپ کال استعمال شي نو تر دې هم کم فرق پاتې کیږي.

**تاسو وایی** : که چیرته د پروگرام نتیجې یا تر استعمال لاندې حسابي ضابطو کښې تاسو ته کوم عیب په نظر درشي یا د دې لا ښه والي کومه خبره ستاسو ذهن ته درشي نو خامخا مې پرې خبر کړی.

**زه وایم** : په لیکل شوي ضوابطو باندې کما حقه د غور د کولو او د تجربې له مخې د تخریج فرصت نه لرم، له سرسري کتنې څخه د دغو ضوابطو د صحیح والي ظن غالب دی، خصوصاً په داسې حال کښې چه تاسو ئې نتائج زما د ارشاد العابد او صبح صادق کتابونو کښې نومونړي ضابطې او د هغو له نتائجو سره مقابله کړې هم ده.

تاسو د کراچۍ لپاره د قبلې د سمت زاویه ۹۲/۱° را اخیستی دی په داسې حال کښې چه په ارشاد العابد کښې د نومونړي قواعدو په مطابق صحیح تخریج ۹۲/٤° دی. د دې لپاره سیوری د

قبلې په سمت باندې د راتللو په وختونو کښې زيات تفاوت دی

**تاسو وايئ:** دا پوښتنه ډيره کيږي چه په قطبينو باندې چه چيرته شپږ مياشتې ورځ او شپږ مياشتې شپه وي نو لمونځونه به په کومو وختونو کښې ادا شي.

**زه وايم:** په دغو ځايونو کښې د لمانځه د وختونو د تعين صحيح طريقه هغه ده کومه چه تاسو ليکلې ده يعنې لکه څرنګه چه ژوندانه روزمره مصروفيتونه، دفتر او کاروبار د وختونو له تخمين او اندازې څخه ټاکل کيږي، همدارنګه د لمانځه د وختونو تعين دې هم په ساعتونو سره وشي. که چيرته تا دتعيين د معتدلو ورځو له مخې وشي نو حساب به ئې داسې وي، په معتدلو ورځو کښې طلوع له صبح صادق څخه د سپين شفق تر غروب پورې څوارلس ساعته ، او له سپين شفق څخه طلوع تر صبح صادق پورې لس ساعتونه وي. د دې له مخې د لمانځه د وختونو تعين به داسې وي.

د سهار وخت يو ساعت بيا د شپږو ساعتونو تر تيريدو وروسته ماسپښين، بيا تقريباً له څلور نيم ساعتونو وروسته مازديګر (مثلين يعنې دوه چنده سيورى) ، د سهار له آخري وخت څخه د دولس ساعتونو په تيريدو سره ماښام، بيا له يوه ساعت وروسته ماسخوتن بيا لس ساعته وروسته سهار. ليکن راجحه دا ده چه د وختونو په دې تعين کښې د معتدلو ورځو د حساب لګولو په ځاى په دې علاقې کښې چه په کومو ورځو کښې په څلورويشتو ساعتونو کښې پنځه وختونه ميندل کيږي په هغو کښې تر ټولو آخري ورځ د معيار جوړولو په مطابق ټول وختونه تعين شي او که چيرته عرض البلد دومره زيات وي چه هلته هيڅکله هم په څلور ويشتو ساعتونو کښې پنځه وختونه و نه ميندل شي نو بيا له دې علاقې سره تر ټولو د نژدې علاقې کوم چه په څلورويشتو ساعتونو کښې د لمانځه پنځه وختونه پکښې ميندل کيږي د هغه په مطابق دې وختونه تعين شي.

دا حکم هلته دى چه کله په څلورويشتو ساعتونو کښې لمر ډوب نه شي، که چيرته په څلورويشتو ساعتونو کښې لمر ډوبيده نو د ماسپښين او مازديګر لمونځونه په هر حال پخپلو معهودو وختونو کښې اداکيږي او د ماښام، ماسخوتن او سهار په باره کښې تفصيل په لاندې ډول دى.

۱ــ که چيرته سور شفق (ناټيکل ټوائيلائټ - ۱۲° تر افق لاندې) ډوبيږي نو د دغو دريواړو لمونځونو وختونه به هم موجود وي، هر لمونځ به پخپل وخت ادا کيږي.

سپين پلن شفق (۱۵° تر افق لاندې) وخت دې په دوو برخو تقسيم شي. اوله نيمائي ئې په ماسخوتن کښې داخليږي او دويمه نيمائي ئې په سار کښې. که چيرته په اولې نيمائي کښې دومره وخت وي چه په هغه کښې تکبير تحريمه ويل کيدلى شي نو دماسخوتن لمونځ فرض دى. په دې وخت کښې باندې لمونځ شروع شي اګر که ئې تکميل د وخت تر وتلو وروسته وشي، او که چيرته

د پلن سپین شفق اوله نیمائي د تکبیر تحریمه غوندې له وخت څخه هم کم وي نو ماسخوتن لمونځ مفقود ګڼل کیږي چه حکم ئې مخکښې راځي.

۲ــ که چیرته سورشفق نه ډوبیده نو په داسې علاقې کښې د ماسخوتن لمونځ مفقود دی او په دې اړه د حضراتو فقهاء کرامو رحمهم الله دوه قولونه دي. یو دا چه په هغو باندې د ماسخوتن لمونځ فرض نه دی، دویم دا چه په هغو باندې هم د ماسخوتن لمونځ فرض دی او همدا راجح او احوط قول دی.

په لومړي نمبر کښې د مذکوره تفصیل مطابق شفق احمر یعنې سور شفق هم په دوه برخو ویشل کیږي، اوله نیمائي په ماښام کښې شمیرل کیږي او دویمه نیمائي په سهار کښې، که چیرته اوله نیمائي د تکبیر تحریمه په اندازه وي نو د ماښام لمونځ فرض دی اګر که پوره ادا کول ئې د وخت تر وتلو وروسته وي که چیرته له طلوع څخه مخکښې د سهار د لمانځه پوره کول ممکن نه وو نو تر طلوع وروسته دې قضائي ادا شي، که چیرته اوله نیمائي د تکبیر تحریمه غوندې هم نه وي ن د دې حکم به د هغو ورځو په شان وي په کومو کښې چه په څلرویشتو ساعتونو کښې د نه طلوع او غروب نه کیږي.

۳ــ که چیرته د سره شفق په دویمه نیمائي کښې د تکبیر تحریمه د ادا کولو ګنجائش خو وي لیکن یواځې د فرضو دوه رکعتونه په مختصره توګه (د سنتو او آدابو په پریښودو سره) نه شوای ادا کیدلی نو د سهار لمونځ فرض دی لیکن په دې وخت کښې ئې مه ادا کوی بلکه وروسته ئې قضائي را وګرځوی لومړی د ماسخوتن او بیا د سهار. که چیرته ماښام هم نه شوای ادا کولی نو لومړی دې د ماښام بیا د ماسخوتن او بیا دې د سهار قضائي را وګرځوي.

**تاسو وایئ**: د دغو ځایونو لپاره دلته ځینو حضراتو دا رأیه ورکړې ده چه په هغو کښې دې د مکې مکرمې وختونه استعمال شي، د ځینو نور حضراتو خیال دا دی چه دغو ځایونو ته دې تر ټولو نژدې ځایونو وختونه غوره شي په کوم ځای کښې چه دا وختونه ممکن دي.

**زه وایم**: لومړی قول بالکل غلط دی دا نه چیرې منقول دی او نه هم په هیڅ ډول معقول، دویم قول صحیح دی لیکن راجحه دا ده چه په دې قول باندې یواځې په هغه ځای کښې عمل کیدلی شي چیرته چه هیڅکله هم په څلرویشتو ساعتونو کښې پنځه وختونه پیدا نه شي، په نورو ځایونو کښې د وختونو د تعیین ضابطه پورته لیکل شوې ده یعنې په کومو ورځو کښې چه په څلرویشتو ساعتونو کښې د نه پنځه ګوني وختونه پیدا نه شي په هغو کښې دې تر ټولو آخري ورځ معیار وټاکل شي.

**تاسو وایئ:** که چیرته د کوم لوړ عرض البلد د مقام لپاره یواځې په همدې طول البلد باندې واقع د کم عرض البلد د ځای پلټنه هم وشي نو څرنګه؟ الخ

**زه وایم:** وه هغه ځای دې را واخیستل شي چه په هغه کښې د ماسخوتن د لمانځه لپاره د تکبیر تحریمه په اندازه وخت میندل کیږي.

**تاسو وایئ:** آیا د طلوع او غروب وختونه دې د یوه ځای غوره شي او د سهار او ماسخوتن وختونه دې د کوم بل ځای؟

**زه وایم:** د طلوع او غروب وخت دې هم د همدې ځای واخیستل شي چیرته چه د ماسخوتن د لمانځه وخت د تکبیر تحریمه په اندازه میندل کیږي، د طلوع او غروب لپاره یو ځای او د سهار او ماسخوتن لپاره د بل ځای د وخت په اخیستلو کښې دا خبره پټه ده چه د ماښام او ماسخوتن به یو کیږي او د سهار وخت به تر طلوع وروسته متصور کیږي. البته د روژې د ماتولو لپاره د هغه ځای غروب را اخیستل کیږي چیرته چه تر غروب وروسته د ضرورت په اندازه خوراک کیدلی شي، په دې کښې دا اشکال ضرور شته چه د ماښام لمونځ به د یوه ځای مطابق ادا کیږي او افطار تر دې ډیر وروسته به د بل ځای مطابق وي. لیکن دا د لومړي مخدور په نسبت سپک یا اهون دی. چیرته چه لمر غروب کیږي لیکن د ماښام وخت ډیر لږ وي هلته د ماسخوتن د لمانځه لپاره چه کومه ضابطه بیان شوې ده په دې کښې هم د ماښام او ماسخوتن د وختونو یو والی لازمیږي لیکن د دې تحمل ځکه ناګزیر دی چه دلته په حقیقت کښې غروب موجود دی په خلاف دې د بحث لاندې صورت چه په دې کښې د ماښام او ماسخوتن وختونه دواړه تقدیري دي لهذا د دواړو تقدیر به له یوه ځای څخه کیږي.

**تاسو وایئ:** د ماسخوتن او سهار منځنی برخه نوره هم کمیږي او دومره وخت نه پاتې کیږي چه سړی په صحیح توګه لمونځ ادا کړی شي.

**زه وایم:** د دې تفصیل پورته لیکل شوی دی چه که چیرته د تکبیر تحریمه وخت پیدا شي نو په هغه کښې دې لمونځ شروع شي که چیرته تر پوره کیدو مخکښې وخت ختم شي تو څومره لمونځ چه په وخت کښې د ننه ادا شوی دی هغه ادا او پاتې په قضائي کښې شمارل کیږي.

قال ابن عابدین رحمه الله فی بحث فاقد وقت العشاء تحت (قوله ولا ینوی القضاء الخ) المنقول عن المحیط و غیره ان الصلوة الواقع بعضها فی الوقت و بعضها خارجه یسمی ما وقع منها فی الوقت اداء وما وقع خارجه یسمی قضاء اعتبارا لکل جزء بزمانه فافهم. (ردالمحتار ج۱، ص۳۳۶)

**تاسو وایئ:** که چیرته په ماسخوتن او سهار کښې یواځې د پنځلسو دقیقو فرق وي نو د دې په ځای چه سړی د ماسخوتن لمونځ وکړي او ویده شي او بیا له خوب څخه په را ویښیدو د سهار

مونځ وکړي نو دواړه لمونځونه دې په نيمه شپه کښې را پورته شي او يو ځای دې ادا کړي.
**زه وايم**: په دې کښې شرعاً يا عقلاً څه تکليف او څه بدي ده؟ فقط و الله تعالی اعلم

۲٤ شوال ۹۷ هجری

**الحاق**:

۱ــ چيرته چه تر څلورويشتو ساعتونو پورې لمر نه ډوبيږي هلته د پنځه ګوني وختونو د تقدير يا اندازه کولو لپاره د نصف النهار د دائرې معيار جوړول اګر که د فقهاوو رحمهم الله په عباراتو کښې مې نه دې تر سترګو شوي ليکن د شريعت د اصولو مطابق د دې اعتبار لازم معلوميږي. لهذا د لمر کُرَه له نصف النهار څخه تر تيريدو وروسته د ماسپښين وخت داخليږي، بيا چه کله مخالف اړخ ته لمر په همدې دائرې باندې ورسيږي هغه وخت نيمه شپه ګڼل کيږي. په دغو دواړو حصو کښې په يوه کښاې د سهار وخت او په بلې کښې دې د پاتې څلورو وختونو اندازه وشي.

په دې سره د هغو حضراتو نظريه باطليږي کوم چه تر شپږو مياشتو پورې په اوږدې ورځې کښې يواځې د پنځو لمونځونو قائل دي ځکه چه په څلورويشتو ساعتونو کښې يو ځل د نصف النهار له دائرې څخه د لمر د تيريدو له وجې د ماسپښين د لمانځه د وجوب سبب پيدا کيږي، او د ماسپښين تکرار د نورو لمونځونو تکرار لره مقتضي دی.

۲ــ ٦٦ْ شمالي عرض البلد څخه ثه نا ثه په کم عرض کښې په جون کښې د لمر غروب او طلوع تر منځ دومره کم وخت وي چه په هغه کښې د ماښام و سهار لمونځونه نه شي ادا کيدلی.

همدارنګه په دسمبر کښې ٦٧ْ شمالي عرض البلد څخه په ثه زيات عرض کښې ورځ دومره لنډه شي چه په هغې کښې تر نصف النهار وروسته د ماسپښين او مازديګر لمونځونه نه شي ادا کيدلی. او په جنوبي عرض البلد کښې د دې برعکس وي.

له دې څخه ثابته شوه چه حضراتو فقهاء کرامر رحمهم الله يواځې د ماسخوتن د وکت د فقدان په بيان باندې اقتصار د دې لپاره دی چه د وختونو د فقدان له لحاظه دا تر ټولو نژدې علاقه ده او له مخکښيني زمانې څخه آباده ده او که نه حقيقت دا دی چه د پنځو لمونځونو په وختونو کښې دا سوال پيدا کيږي، په نومورې ځواب کښې په داسې مقاماتو باندې د سهار او ماښام حکم صراحةً او د ماسپښين او مازديګر حکم دلالةً تير شو. فقط و الله تعالی اعلم.

منتصف رمضان المبارك ۹۹ هجری

## په شکاګو کښې د صبح صادق او ماښام وختونه

**سوال**: د شکاګو (امریکا) لپاره په رمضان المبارک کښې د سحري (پیشلمي) او افطاري (روژه ماتي) نقشه جوړه او را ولیږئ. جزاکم الله تعالیٰ

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د شکاګو مِسَسَپّي (امریکا) طول غربي ۴۵/۸۷°، عرض شمالي ۴۵/۴۲° لپاره د لمانځه د وختونو نقشه په لاندې ډول ده.

| تاریخ | صبح صادق | | طلوع | | غروب | | عشاء | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | ساعت | دقیقه | ساعت | دقیقه | ساعت | دقیقه | ساعت | دقیقه |
| ۲۲ اکتوبر | ۵ | ۵۴ | ۷ | ۱۳ | ۵ | ۵۷ | ۷ | ۱٦ |
| ۱ نومبر | ۵ | ٦ | ٦ | ۲۵ | ٤ | ٤۵ | ٦ | ٤ |
| ۱۱ نومبر | ۵ | ۱۷ | ٦ | ۳۷ | ٤ | ۳۳ | ۵ | ۳۳ |

**تنبیه**:

۱ـــ هلته د اپریل له آخري یکشنبې څخه د اکتوبر تر آخري یکشنبې پورې یو ساعت وخت ورسره زیاتیږي. په نقشه کښې د دې رعایت ساتل شوی دی.

۲ـــ د صبح صادق له ورکړ شوي وخت څخه شپاړس دقیقې مخکښې صبح کاذب ښکاریږي کوم چه شرعا اعتبار نه لري.

۳ـــ له نوموړي وخت څخه پیشلمی (۷) دقیقې مخکښې پای ته ورسوی او روژې پنځه دقیقې وروسته ماتې کړی. فقط و الله تعالیٰ اعلم.

**رمضان المبارک سنه ۹۱ هجري**

## د هوستن د ملک د لمانځه د وختونو نقشه

**سوال**: تیکساس (یو- ایس- اې) په ښار هوستن کښې زما یو زوی تعلیم کوي. له دې وجې د مهربانۍ له مخې د لمانځه د وختونو د معلومولو کومه طریقه را ته ولیکئ.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د هرې میاشتې د اولې او پنځلسمې ورځې وختونه درته لیکم او د منځني تاریخونو خپله حساب ولګوئ.

## د ټيکساس (امريکا) د ښار هوسټن لپاره د لمانځه د وختونو نقشه

| | فجر | | طلوع | | نصف النہار | | عصر | | غروب | | عشاء | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | گ | م | گ | م | گ | م | گ | م | گ | م | گ | م |
| یکم جنوری | ۶ | ۶ | ۷ | ۱۶ | ۱۲ | ۲۴ | ۳ | ۵۴ | ۵ | ۳۲ | ۶ | ۴۲ |
| ۱۵ ء | ۶ | ۸ | ۷ | ۱۷ | ۱۲ | ۳۰ | ۴ | ۶ | ۵ | ۴۳ | ۶ | ۵۲ |
| یکم فروری | ۶ | ۴ | ۷ | ۱۲ | ۱۲ | ۳۵ | ۴ | ۲۱ | ۵ | ۵۸ | ۷ | ۶ |
| ۱۵ ء | ۵ | ۵۵ | ۷ | ۲ | ۱۲ | ۳۵ | ۴ | ۳۱ | ۶ | ۸ | ۷ | ۱۵ |
| یکم مارچ | ۵ | ۴۱ | ۶ | ۴۶ | ۱۲ | ۳۳ | ۴ | ۴۰ | ۶ | ۲۰ | ۷ | ۲۵ |
| ۱۵ ء | ۵ | ۲۵ | ۶ | ۳۱ | ۱۲ | ۳۰ | ۴ | ۴۸ | ۶ | ۲۹ | ۷ | ۳۵ |
| یکم اپریل | ۵ | ۳ | ۶ | ۱۰ | ۱۲ | ۲۵ | ۴ | ۵۴ | ۶ | ۴۰ | ۷ | ۴۷ |
| ۱۵ ء | ۴ | ۴۵ | ۵ | ۵۴ | ۱۲ | ۲۱ | ۴ | ۵۸ | ۶ | ۴۸ | ۷ | ۵۷ |
| یکم مئی | ۵ | ۲۷ | ۶ | ۳۸ | ۱۱ | ۱۸ | ۶ | ۲ | ۷ | ۵۸ | ۹ | ۹ |
| ۱۵ ء | ۵ | ۱۳ | ۶ | ۲۷ | ۱۱ | ۱۷ | ۶ | ۵ | ۸ | ۷ | ۹ | ۲۱ |
| یکم جون | ۵ | ۴ | ۶ | ۲۰ | ۱۱ | ۱۹ | ۶ | ۱۰ | ۸ | ۱۸ | ۹ | ۳۴ |
| ۱۵ ء | ۵ | ۱ | ۶ | ۱۹ | ۱۱ | ۲۱ | ۶ | ۱۴ | ۸ | ۲۳ | ۹ | ۴۱ |
| یکم جولائی | ۵ | ۶ | ۶ | ۲۴ | ۱۱ | ۲۵ | ۶ | ۱۸ | ۸ | ۲۶ | ۹ | ۴۴ |
| ۱۵ ء | ۵ | ۱۴ | ۶ | ۳۰ | ۱۱ | ۲۷ | ۶ | ۱۸ | ۸ | ۲۴ | ۹ | ۴۰ |
| یکم اگست | ۵ | ۲۷ | ۶ | ۳۹ | ۱۱ | ۲۷ | ۶ | ۱۴ | ۸ | ۱۵ | ۹ | ۲۷ |
| ۱۵ ء | ۵ | ۳۷ | ۶ | ۴۸ | ۱۱ | ۲۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۲ | ۹ | ۱۳ |
| یکم ستمبر | ۵ | ۵۰ | ۶ | ۵۸ | ۱۱ | ۲۱ | ۵ | ۵۵ | ۷ | ۴ | ۸ | ۵۲ |
| ۱۵ ء | ۵ | ۵۹ | ۷ | ۵ | ۱۱ | ۱۶ | ۵ | ۴۲ | ۷ | ۲۷ | ۸ | ۳۳ |
| یکم اکتوبر | ۶ | ۹ | ۷ | ۱۵ | ۱۱ | ۱۱ | ۵ | ۲۶ | ۷ | ۷ | ۸ | ۱۳ |
| ۱۵ ء | ۶ | ۱۷ | ۷ | ۲۴ | ۱۱ | ۷ | ۵ | ۱۲ | ۶ | ۵۰ | ۷ | ۵۷ |
| یکم نومبر | ۵ | ۲۸ | ۶ | ۳۶ | ۱۲ | ۵ | ۳ | ۵۸ | ۵ | ۳۴ | ۶ | ۴۲ |
| ۱۵ ء | ۵ | ۳۸ | ۶ | ۴۷ | ۱۲ | ۶ | ۵ | ۴۸ | ۵ | ۲۵ | ۶ | ۳۴ |
| یکم دسمبر | ۵ | ۵۰ | ۶ | ۵۹ | ۱۲ | ۱۰ | ۵ | ۴۴ | ۵ | ۲۱ | ۶ | ۳۰ |
| ۱۵ ء | ۵ | ۵۸ | ۷ | ۹ | ۱۲ | ۱۶ | ۵ | ۴۶ | ۵ | ۲۳ | ۶ | ۳۴ |

تنبیہ:- اپریل کی آخری اتوار سے اکتوبر کی آخری اتوار تک وہاں ایک گھنٹہ وقت بڑھا دیا جاتا ہے اس نقشے میں اس کی رعایت
۱۳۹۴ھ

**تنبيه**: د اپريل له اخيري اتوار (يکشنبې) نه د اکتوبر تر اخيري اتوار پورې هلته يو ساعت وقت زياتيږي په دې نقشه کښې دهغې روايت

## په لاړکانه او مکه مکرمه کښې د صبح صادق وختونه

**سوال**: د لاړکانه صبح صادق په کوم وخت باندې وي؟ همدارنګه د مکې مکرمې د صبح صادق وخت هم وښايئ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د لاړکانه (عرض البلد -۲۷° - ۳۲') په اتم (۸) مئی کښې د صبح

صادق وخت د بنده د کتاب "صبح صادق" په مطابق داسې را ووځي. په ۲۰° عرض البلد کښې د صبح صادق وخت ۴ بجې ۲۶ دقیقې او په عرض البلد ۳۰ کښې د صبح صادق وخت ۴ بجې ۲دقیقې دی، له اوسط ایستلو څخه په عرض البلد ۲۷° - ۳۲' کښې ۴ بجې ۸ دقیقې دی. د نصف النهار فرق (۴ دقیقې) - ۴ بجې ۴ دقیقې - فرقِ طول البلد (۲۷ دقیقې) - ۴ بجې ۳۱ دقیقې.

مکه مکرمه (عرض البلد -۲۱° - ۲۱') کښې په اول جون کښې به د صبح صادق وخت داسې وي. عرض البلد ۲۰ کښې د سهار وخت - ۴ بجې ۱۵ دقیقې او عرض البلد ۳۰° کښې د سهار وخت - ۳ بجې ۴۵ دقیقې دی. له اوسط ایستلو څخه عرض البلد ۲۱° - ۲۱' کښې ۴ بجې ۱۱ دقیقې. د نصف النهار فرق (۲ دقیقې) - ۴ بجې ۹ دقیقې - فرق طول البلد (۲۰ دقیقې) - ۴ بجې ۲۹ دقیقې دی.

فقط و الله تعالی اعلم. ۲۰ ربیع الاول ۹۲ھجری

## په لاهور کښې د صبح صادق وخت

**سوال**: ۱۷ مئی باندې به د لاهور صبح صادق په څو بجې وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په لاهو کښې په ۱۷ مئی باندې به صبح صادق ۳ بجې او ۴۹ دقیقې وي چه تفصیل ئې په لاندې ډول دی.

ج - د نصف النهار تر لمر وروسته درجې (۱۰۵°) + عرض البلد (۳۱°/ ۳۳') - ۱۳۶°/ ۳۳' - میل موافق دې (۱۹°/ ۲۴') - ۱۱۷°/ ۹' ÷ ۲ - ۵۸° / ۳۵' - ن، ۱۰۵° - ۵۸° / ۳۵' - ۴۶° / ۲۵' لوک چه کله ن (۱/۹۳۱۱) - لوک چه کله ج - ن (۱/۸۵۹۹ - ۱/۷۹۱) ، جم میل (۱/۹۷۴۶) + جم عرض (۱/۹۳۰۶)- (۱/۹۳۰۶) -۱/۹۰۵۲ - ۱/۸۸۵۸ ÷ ۲ - ۱/۹۴۲۹ - ۶۱° - ۱۵' (ق) × ۲ - ۱۲۲ / ۳۰' (ق) - ۸ بجې ۱۰ دقیقې، مقامي نصف النهار (۱۱ / ۵۶)- فرق طول (۰ / ۳) - ۱۱ / ۵۹ - ۸ / ۱۰ - ۳ / ۴۹ صبح صادق.

فقط والله تعالی اعلم. ۱۳ ربیع الآخر ۹۲ھجری

## د شفق احمر (سره شفق) قول مفتٰی به دی

**سوال**: څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې د صاحبینو رحمهما الله تعالی په نزد ل شفق څخه مراد سوروالی دی او د امام اعظم رحمه الله په نزد سپین والی دی. فتوی د چا په کوم قول باندې ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مفتٰی به قول مطابق د سره شفق په ډوبیدو سره د ماښام وخت ختمیږي او د ماسخوتن وخت شروع کیږي. د حضرت امام اعظم رحمه الله هم آخري قول همدغه دی او ائمۀ ثلاثه رحمهم الله هم د همدې قول قائل دي.

قال في شرح التنوير ووقت المغرب منه الى غروب الشفق وهو الحمرة عندهما وبه قالت الثلاثة واليه رجع الامام

کما فی شروح المجمع وغیرها فکان هو المذهب وقال ابن عابدین رحمه الله (قوله الیه رجع الامام) ای الی قولهما الذی هو روایة عنه ایضا وصرح فی المجمع بأن علیها الفتوی. و ردّه المحقق فی الفتح بانه لا یساعده روایة ولا درایة الخ وقال تلمیذه العلامة قاسم فی تصحیح القدوری ان رجوعه لم یثبت لما نقله الکافة من لدن الائمة الثلاثة الی الیوم من حکایة القولین و دعوی عمل عامة الصحابة بخلافه خلاف منقول. قال فی الاختیار الشفق البیاض (الی قوله) لکن تعامل الناس الیوم فی عامة البلاد علی قولهما وقد ایّده فی النهر تبعاً للنقایة والوقایة والدرر والاصلاح ودرر البحار والامداد والمواهب وشرحه البرهان وغیرهم مصرحین بأن علیه الفتوی وفی السراج قولهما اوسع وقوله احوط والله تعالی اعلم. (رد المحتار ج۱، ص۳۳۴) فقط والله تعالی اعلم ۱۹ محرم ۸۶ ھجری

## د طلوع (د لمر د راختلو) په وخت کښې د سهار لمونځ صحیح نه دی

**سوال** : که چیرته د سهار لمونځ عین د لمر د راختلو په وخت کښې ادا شي نو آیا بیرته را گرځول ئې واجب دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : عین د لمر ختلو په وخت کښې لمونځ په شروع کولو سره نه منعقد کیږي او که چیرته د لمر له ختلو څخه مخکښې شروع شي او د لمانځه په حالت کښې لمر وخیژي نو لمونځ فاسدیږي. لهذا دا لمونځ صحیح نه دی، قضائي را گرځول ئې فرض دي.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله واعلم ان الاوقات المکروهة نوعان الاول الشروق والاستواء والغروو الثانی ما بین الفجر والشمس وما بین صلوة العصر الی الاصفرار فالنوع الاول لا ینعقد فیه شیء من الصلوات التی ذکرناها اذا شرع بها فیه وتبطل ان طرأ علیها الا صلوة جنازة حضرت فیها الخ. (رد المحتار ج۱، ص۳۴۶)

فقط والله تعالی اعلم ۱۰ ذی القعده ۸۷ ھجری

## د سهار او مازدیگر په لمونځونو کښې د لمر د راختلو او ډوبیدلو حکم

**سوال** : که چیرته د سهار د لمانځه په ادا کولو کښې لمر وخیژي یا د مازدیگر د لمانځه په ادا کولو کښې لمر ډوب شي نو آیا د همدغه سهار او مازدیگر لمونځونه وشول او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مازدیگر لمونځ صحیح کیږي او د سهار نه صحیح کیږي.

قال فی التنویر وکره صلوة (الی قوله) الاعصر یومه وفی الشرح فلا یکره فعله لادائه کما وجب بخلاف الفجر و فی الشامیة ای فانه لا یؤدی فجر یومه وقت الطلوع لان وقت الفجر کله کامل فوجبت کاملة فتبطل بطرو الطلوع الذی هو وقت فساد. (رد المحتار ج۱، ص۳۴۶) فقط والله تعالی اعلم ۲۷ ربیع الاول ۸۹ ھجری

## د سهار لمونځ د طلوع (لمر ختلو) تر ابتداء پورې ادا کیدلی شي

**سوال**: که چیرته د سهار لمونځ په جماعت سره ادا نه شي او پ داسې وخت کښې جومات ته ورسیږي چه لمر په راختلو وي نو د ساعت په اعتبار سره دې لمونځ باید د لمر تر را ختلو څومره مخکښې باید ادا شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرته نقشه د کوم مستند سړي له خوا جوړه شوې وي نو په هغې کښې د ورکړ شوي وخت مطابق د لمر تر راختلو دوه یا درې دقیقې مخکښې باید د سهار له لمانځه څخه د فارغیدو کوشش باید وشي. که چیرته وچ تر همدې وخت پورې فارغ شي نو بیا ئې هم لمونځ صحیح دی. فقط و الله تعالی اعلم. ۱۳ رمضان المبارک ۹٤ هجری

## د طلوع په وخت کښې د تلاوت د سجدې حکم

**سوال** : ښاغلی او مکرم جناب مولوي جمیل احمد صاحب سلمه الله تعالی

السلام علیکم و رحمة الله و برکاته

هیله ده چه صحت مو ښه وي، ښائي چه تاسو ته به یاده وي چه په کراچۍ کښې د پاتې کیدو په دوران کښې ما پوښتنه کړې وه چه د لمانځه په ممنوعه وختونو کښې د تلاوت د سجدې څه حکم دی او تاسو ښاغلي ویلي وو چه که چیرته سجدهٔ تلاوت تازه وي نو په هر وخت کښې ادا کیدلی شي یعنې د لمانځه په ممنوعه وختونو کښې ئې د ادا کولو اجازه شته.

زمونږ په جومات کښې دا پوښتنه را پورته شوه او یو څوک وائي چه ما تحقیق کړی دی چه د لمر د را ختلو په حالت کښې سجده مه کوی. دا پوښتنه داسې را پیدا شوه چه د سهار تر لمانځه وروسته دلته درس قرآن ویل کیده او د سجدې یو آیت تلاوت شو، په دې وخت کښې لمر د را ختلو په حال کښې وو یا دا چه طلوع بالکل نژدې وو. د کرم او مهربانۍ له مخې دا څرګنده کړی چه صحیح خبره کومه یوه ده. آیا د سجدې تازه تلاوت شوی آیت هر وخت ادا کیدلی شي او که کوم قید پکښې شته چه په فلاني وخت کښې باید ادا نه شي؟ بینوا توجروا.

**جواب له جامعهٔ اشرفیه لاهور څخه** : مُبَسمِلاً و مُحمِدلاً و مُصلّیا و مُسَلِّماً بحر ص۲۴۹ ج۱ ومنع عن الصلوة و سجدة التلاوة و صلوة الجنازة عند الطلوع و الاستواء و الغروب الخ. و اراد بسجدة التلاوة و صلوة الجنازة ما وجبت قبل هذه الاوقات اما اذا تلاها فیها او حضرت الجنازة فیه فاداها فانه یصح من غیر کراهة. اذا الوجوب بالتلاوة و الحضور و ظاهر التسویة بین صلوة الجنازة و سجدة التلاوة انه لو حضرت الجنازة فی غیر مکروه فاخرها حتی صلاها فی الوقت المکروه فانها لا تصح و تجب اعادتها کسجود التلاوة.

له دې عبارت څخه څرګندیږي چه که چیرته د سجدې آیت په هغه ساعت تازه تلاوت شی نو

یعنې په مکروه وخت کښې د تلاوت له وجې سجده په چا واجبه شي نو په مکروه وخت کښې ئې ادا کول جائز دي او که چیرته له مکروه وخت څخه مخکښې سجده واجبه شي نو په مکروه وخت کښې ئې ادا کول جائز نه دي. که چیرته ئې ادا کړي نو بیرته را ګرځول به ئې واجب وي. فقط و الله تعالیٰ اعلم.

**عزیز الرحمن نائب مفتي جامعهٔ اشرفیه، نیلاګنبد لاهور** **۱۹/ جمادي الاولی سنه ۸۴ هـ**

**الجواب صحیح** **جمیل احمد عفا عنه**

د بنده رشید احمَد لیک په نامه د مفتي جمیل احمد صاحب:

**بسم الله الرحمن الرحیم**

**مکرم او محترمه زیدت عنایاتکم**

**السلام علیکم و رحمة الله و برکاته**

هیله ده چه مبارک صحت مو ښه وي، ستاسو د محترم یوه افتاء مې تر سترګو شوه چه په هغې کښې لیکل شوي دي چه شروق (د لمرد را ختو)، غروب (د لمر د ډوبیدو) او استواء (د ورځې با لکل په نیمائي یعنې غرمه) کښې د سجدې د تازه تلاوت شوي آیت سجده جائزه ده او په استدلال کښې دې د بحر الرائق دا عبارت لیکلی دی چه: **((اما اذا تلاها فیها او حضرت الجنازة فیها فاداها فانه یصح من غیر کراهة))**. زما بنده ناقصه رایه دا ده چه ستاسو په فتویٰ کښې له جواز څخه مراد جواز مع الکراهیة التنزیهیة دی او د بحر له جزئیه **(من غیر کراهة)** دکراهیت تحریمیه د نفی مقصود دی.

**قال فی العلائیة فلو وجبتا فیها لم یکره فعلهما ای تحریماً و فی التحفة الافضل ان لا تؤخر الجنازة و فی الشامیة (قوله ای تحریماً) افاد ثبوت الکراهة التنزیهیة، و ایضا فیها تحت قوله (و فی التحفة) فثبتت کراهة التزیه فی سجدة التلاوة دون صلوة الجنازة.(ردالمحتار ج۱،ص۳۴۷)**

له دې څخه څرګنده شوه چه کومو حضراتو د کراهت نفی کړې ده له هغې څخه مراد د کراهتِ تحریمیه نفی ده نه د کراهتِ تنزیهیه، پخپله علامه شامي له نوموړي بحث څخه مخکښې د **اوعلی جنازة** لاندې **((والا فلا کراهة کما سیذکره الشارح))** کښې د کراهت تحریمیه نفی کړې ده. او بیا د شارح د قول لاندې علامه شامي صاحب کراهت تنزیهیه ثابته کړې ده. **کما قدمنا** او په عالمګیري کښې ئې له خلاصې څخه نقل کړی دی چه په سجدهٔ تلاوت کښې تاخیر افضل دی.

په هر حال په دې اړوند مو له خپلې ګرامي رأیې څخه خبر راکړی او د مقدسې میاشتې په مبارکو ساعتونو کښې مو د خیر له دُعاګانو څخه مه هیروی. دا به ستاسو ډیر ښیګړه وي. فقط و السلام علیکم. رشید احمد عفا الله عنه

**غرهٔ رمضان المبارک ۸۴ هجری**

**ځواب له مفتي جميل احمد صاحب څخه:**

محترمه و عليكم السلام و رحمة الله و بركاته:

جزاک الله راجح او قوي قول د مکروه تنزيهي دی. ښه دا وه چه په فتوٰی کښې ليکل شوی وای، احتياط هم په دې کښې دی څکه چه لکه څرنگه چه ځينو حضراتو خلاف افضل ورته ويلي دي، ځينو مکروه تحريمی هم ورته ويلي دي، خير الامور اوسطها هم ورته ويل شوي دي، عالمگيري ورته غير افضل ويلي دي **لكن الافضل التأخير فيها.**

د اصل سائل خط د حضرت مفتي محمد شفيع صاحب رحمه الله په نامه

**مكرم او محترم جناب مفتي صاحب قبله زاد مجده**

السلام عليكم و رحمة الله و بركاته

هيله ده چه طبعيت به مو ښه وي. د ليکنې باعث دا دی چه آيا سجدهٔ تلاوت په هر وخت کښې ادا کيدلی شي او که د لمانځه په ممنوعه وختونو کښې به ئې څوک نه ادا کوي؟ مولوي جميل احمد صاحب د مدرسهٔ اشرفيه لاهور مفتي څخه مې پوښتنه کړې وه هغه را ته ويلي وو چه سجدهٔ تلاوت چه تازه وي يعنې په همدې مکروه وخت کښې د سجدې آيت تلاوت شوی وي نو هر وخت ادا کيدلی شي. زه پرې مطمئن شوی وم په زړه کښې مې دا فکر وکړ چه د جنازې په لمانځه او د تلاوت په سجدې کښې کوم فرق نشته. بله دا چه د حضرت تهانوي يوه خبره مې ذهن ته راغله چه کله ما هغه ته خپل معمولات وليکل نو دا مې هم وليکل چه د سهار او مازديگر له لمونځونو پرته تر هر فرض لمانځه وروسته په سجدې کښې د قرآنکريم فلانی فلانی آيت تلاوت کوم او دعاء کوم. په دې باندې حضرت تهانوي صاحب خط واخيست او په حاشيه کښې ئې وليکل چه "د شکر سجده له سهار او مازديگر څخه وروسته هم جائزه ده". زمونږ په جومات کښې د سهار تر لمانځه وروسته د قرآن درس ويل کيده د طلوع وخت وو چه د سجدې يو آيت تلاوت شو. يو څوک وائي چه د طلوع په وخت کښې د تلاوت سجده که تازه وويل شي او که زړه بايد چه ادا نه شي. د کرم او مهربانۍ له مخې په دې مو خبر کړی چه صحيح قول کوم دی؟ آيا د تلاوت تازه سجده هر وخت ادا کيدلی شي او که کوم قيد پکښې شته. که چيرته قيد پکښې وي نو بيا کوم قيد دی؟

**ځواب له دار العلوم کراچۍ څخه**

په فتاوٰی عالمگيري کښې درې ساعتونه دي چه په هغو کښې فرض لمونځ، د جنازې لمونځ او د تلاوت سجده جائزه نه ده. لومړی د لمر ختلو وخت. دويم خاص د غرمې وخت، دريم د لمر د ډوبيدو وخت. مخکښې ئې له خلاصې څخه نقل کړی دی چه دا حکم هلته دی چه کله د جنازې

لمونځ او د تلاوت سجده په داسې وخت کښې واجب شي چه په هغه وخت کښې ئې ادا کول مباح وو او بيا ئې تر دې وخت پورې ځنډولې وي کوم چه په دې وخت کښې ئې ادا کول قطعاً جائز نه دي. ليکن که چيرته په داسې وخت کښې واجب شي او په همداسې وخت کښې ادا هم شي نو بيا جائز دی. ځکه چه لکه څرنګه چه د هغو په وجوب کښې نقصان وو همدارنګه ئې په ادا کښې نقصان شته. همدا خبره په السراج الوهاج، کافي او تبيين کښې ليکلې ده ليکن د تلاوت په سجدې کښې تاخير (ځنډ) افضل دی او په جنازې کښې تاخير مکروه دی. مولوي مفتي جميل احمد خبره با لکل صحيح ده. فقط و الله اعلم و علمه اتم

**احقر الانام محمد صابر عفی عنه ، نائب مفتي دار العلوم کراچي ۱ نانک واړه**

الجواب صحيح بنده محمد شفيع عفا الله عنه

**د بنده رشيد احمد خط په خدمت د حضرت مفتي محمد شفيع صاحب کښې :**

بسم الله الرحمن الرحيم

**مشفقی المکرم زيدت عناياتکم**

السلام عليکم و رحمة الله و برکاته

هيله ده چه طبعيت به مو روغ وي. دمفتي محمد صابر صاحب ليکل شوې فتوی چه ستاسو حضرت صاحب دستخط هم پرې باندې شته را ورسيده چه څو اشکالات پرې باندې شته.

۱ـــ د طلوع په وخت کښې ئې د تلاوت تازه سجده ئې جائزه او تاخير ئې افضل ليکلې ده. په دې کښې مناسبه دا وه چه د طلوع په وخت کښې ئې د کراهت تنزيهي تصريح کړې وای.

**قال فی العلائية فلو وجبتا فيها لم يکره فعلهما ای تحريما. وفی الشامية (قوله ای تحريماً) افاد ثبوت الکراهة التنزيهية وايضاً فيها تحت (قوله وفی التحفة) فثبتت کراهة التنزيه فی سجدة التلاوة دون صلوة الجنازة الخ. (رد المحتار ج۱ ص۳۴۷)**

۲ـــ په سوال کښې منقول عبارت "د شکر سجده د سهار او مازديګر تر لمونځونو وروسته هم جائزه ده" څخه څرګنديږي چه تر هر لمانځه وروسته سجده جائزه ده په داسې حال کښې چه دلته دوه جلا مسئلې دي.

۱ـــ تر لمانځه وروسته په همدې ځای کښې سجده کول، دا په هر حال کښې مکروه تحريمي دی اګر که تر هر لمانځه وروسته هم وي.

۲ـــ د سهار او مازديګر نه وروسته د نفلو په مکروه وخت کښې د شکر سجده کول کومه چه په لمانځه پسې متصله نه وي دا سجده به صحيح وي ليکن له کراهت تحريميه سره.

قال فی الشامیة تحت (قوله لاشکر) فتحصل من کلام النهر مع کلام القنیة انها تصح مع الکراهة ای لانها فی حکم النافلة. ثم قال فی النهر عن المعراج واما ما یفعل عقب الصلوة من السجدة فمکروه اجماعاً لان العوام یعتقدون انها واجبة. (رد المحتار ج۱، ص۳۴۳)

**لنډه دا چه په لاندیني مسائلو کښې زما رایه دا ده:**

۱ـ د طلوع، غروب او استواء په وخت کښې د تلاوت حاضره سجده مکروه تنزیهي ده

۲ـ په لمانځه پسې متصل د شکر د سجدې ادا کول مکروه تحریمي دي هغه که د هر وخت لمونځ هم وي. البته که چیرته په خلوت (یواځې ځای کښې) سجده وکړي. خپل عادت ئې جوړ نه کړي او سنت ئې و نه ګنړي نو بیا پروا نه لري.

۳ـ تر مازدیګر وروسته او د سهار په وخت کښې د شکر سجده مکروه تحریمي ده اګر که تر لمانځه پسې متصل وروسته هم نه وي.

په دې اړوند مو تاسو له خپلې رایې ځخه خبر کړئ.

د رمضان المبارک په میاشت کښې د مخصوصو دُعا ګانو درخواست دی، سخت محتاج یم.

فقط و السلام علیکم ((رشید احمد عفا الله عنه)) غرهٔ رمضان المبارک ۸٤ هجری

**ځواب له حضرت مفتي محمد شفیع صاحب څخه:**

و علیکم السلام و رحمة الله و برکاته! ځوابونه صحیح دي. ستاسو لپاره له زړه څخه دُعا کوم او د ځان لپاره د دُعا غوښتونکی یم. ((بنده محمد شفیع عفا الله عنه)) له دار العلوم کراچي څخه

۸٤/۹/۱۲ هجری

## د مازدیګر تر لمانځه وروسته د تلاوت سجده جائزه ده

**سوال**: یو سړی د مازدیګر تر لمانځه وروسته تلاوت کوي. په تلاوت کښې د سجدې آیت راغی؟ آیا دی د مازدیګر او ماښام تر منځ وخت کښې د تلاوت سجده کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! کولی ئې شي. البته که د لمر رنګ تغیر خوړلې وي نو مکروه تنزیهي ده. دا حکم د تازه تلاوت دی، که چیرته یو چا په غیر مکروه وخت کښې تلاوت کړی وي نو په مکروه وختونو (طلوع، غروب، نصف النهار) کښې ئې ادا کول مکروه تحریمي دي. د جنازې د لمانځه هم همدغه حکم دی. البته که چیرته په مکروه وخت کښې جنازه تیاره شوې وي نو په همدې وخت کښې باید ادا شي او په دې کښې د تازه تلاوت غوندې تنزیهي کراهت نشته.

قال فی التنویر بعد صلاة فجر و عصر لایکره قضاء فائتة و سجدة تلاوة و صلاة جنازة (رد المحتار ج۱، ص۳۴۸)

وایضاً فیہ و کرہ صلاۃ ولو علی جنازۃ وسجدۃ تلاوۃ وسھو مع شروق واستواء وغروب الا عصر یومہ (الی قولہ) و سجدۃ تلاوۃ وصلاۃ جنازۃ تلیت فی کامل وحضرت قبل، وفی الشرح لوجوبہ کاملاً فلا یتأدی ناقصاً فلو وجبتا فیھا لم یکرہ فعلھما ای تحریماً وفی التحفۃ الافضل ان لا تؤخر الجنازۃ، وقال ابن عابدین رحمہ اللہ (قولہ تحریماً) افاد ثبوت الکراھۃ التنزیھیۃ وقال تحت (قولہ وفی التحفۃ) فثبتت کراھۃ التنزیہ فی سجدۃ التلاوۃ دون صلاۃ الجنازۃ. (ردالمحتار ج۱،ص۳۴۷) فقط واللہ تعالیٰ اعلم ۲۰ ربیع الاول ۹۳ھجری

## په مکروه وختونو کښې د جنازې د لمانځه حکم

**سوال**: د جنازې لمونځ په کومو کومو وختونو کښې مکروه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته جنازه له مخکښې څخه تیاره وه نو په غروب او نصف النهار په وخت ئې ادا کول ئې مکروه تحریمي دی او که چیرته په همدې مکروه وخت کښې تیاره شوې وي نو بیا هیڅ کراهت نشته او په همدې وخت کښې دې لمونځ وشي ځنډوي دې نه. البته د تلاوت تازه سجده مکروه تنزیهي ده.

قال فی التنویر و کرہ صلاۃ ولو علی جنازۃ وسجدۃ تلاوۃ وسھو مع شروق واستواء وغروب الا عصر یومہ (الی قولہ) وسجدۃ تلاوۃ وصلاۃ جنازۃ تلیت فی کامل وحضرت قبل، وفی الشرح لوجوبہ کاملاً فلا یتأدی ناقصاً فلو وجبتا فیھا لم یکرہ فعلھما ای تحریماً وفی التحفۃ الافضل ان لا تؤخر الجنازۃ، وقال ابن عابدین رحمہ اللہ (قولہ تحریماً) افاد ثبوت الکراھۃ التنزیھیۃ وقال تحت (قولہ وفی التحفۃ) فثبتت کراھۃ التنزیہ فی سجدۃ التلاوۃ دون صلاۃ الجنازۃ. (ردالمحتار ج۱،ص۳۴۷)

## د شرعي او عرفي نصف النهار پېژندنه او د هغه حکمونه

**سوال**: له شرعي نصف النهار او عرفي نصف النهار څخه څه مراد دی او د هغه د را ایستلو کومه قاعده ده؟ د روژې نیت باید تر کوم وخته پورې وشي او لمونځ دې تر نصف النهار څومره مخکښې او وروسته باید ادا نه شي؟بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: شرعي نصف النهار له صبح صادق څخه واخله تر غروب پورې د ټول وخت نیمائي نصف النهار دی او له عرفي نصف النهار د لمر له ختو څخه واخله تر ډوبیدو د لمر پورې د ټول وخت نیمائي څخه مراد دی. دا د استواء د معلومولو تقریبي طریقه ده کوم چه تقریباً تر ځلوېښتو عرض البلدو پورې کار ورکوي. د نصف النهار د معلومولو تر ټولو صحیح قاعدې کومې چه په هر ځای کښې کار ورکوي زما په کتاب ارشاد العابد کښې ملاحظه کړی. د

شرعي نصف النهار د معلومولو آسانه قاعده دا ده چه د صبح صادق له پیل څخه د لمر تر ختلو پورې چه څومره وخت وي د هغه نیمائي وخت د عرفي نصف النهار له وخت څخه کم کړی د مثال په توګه د صبح صادق ټول وخت یو ساعت وي نو له عرفي نصف النهار څخه نیم ساعت مخکښې به نصف النهار شرعي وي، د اردو د مسائلو په کتابونو کښې شرعي نصف النهار له عرفي نصف النهار څخه یو نیم ساعت مخکښې اټکل شوی دی، چه په دې کښې درې ډوله غلطي شوې ده.

۱ـ د صبح صادق په ځای ئې صبح کاذب ټاکلی دی، د دې غلطي پوره تفصیل زما د «صبح صادق» په کتاب کښې شته.

۲ـ د هر موسم او هر ځای لپاره ئې یو معیار متعین کړی دی په داسې حال کښې چه په هر ځای او هر موسم کښې وختونه مختلف وي.

۳ـ له عرفي نصف النهار څخه د صبح کاذب د ټول وخت په برابر وخت کم کړی شوی دی په داسې حال کښې چه د صبح صادق د ټول وخت نیمائي باید ترې کم شي.

د روژې نیت د شرعي نصف النهار څخه مخکښې کول ضروري دي او د لمانځه په کراهت کښې عرفي نصف النهار معتبر دی. علامه برجندي رحمه الله په شرح النقایه کښې په دې باندې اشکال ښکاره کړی دی چه د عرفي نصف النهار وخت ممتد (اوږد) نه دی د دې لپاره په دې کښې لمونځ متصور کیدلی هم نه شي نو له دې څخه منع صحیح نه ده. په دې بناء باندې ځینو حضراتو له شرعي نصف النهار څخه واخله تر حقیقي نصف النهار پورې وخت لره د لمانځه لپاره مکروه بللی دی لیکن زما په خیال کښې یواځې د دې اشکال له وجې د شرعي نصف النهار مراد اخیستلو ګنجائش نشته. په داسې حال کښې چه له یوه حدیث څخه هم د دې تائید نه کیږي بلکه ټول حدیثونه په عرفي نصف النهار باندې دلالت کوي، د نوموړي اشکال ګڼ ځوابونه کیدلی شي.

۱ـ اګر که په دې وخت کښې پوره لمونځ نه ي متصور کیدلی لیکن مقصد دا دی چه د لمانځه هیڅ یوه برخه هم په دې وخت کښې واقع نه شي، دا ځواب پخپله علامه برجندي رحمه الله هم ورکړی دی. (رد المحتار ج۱، ص۳٤٤)

۲ـ د لمر د مرکز په ځای د هغه د ټول جرم یا جسم اعتبار دی. کما فی حدیث عبد الله الصنابحی رضی الله عنه ثم اذا استوت قارنها فاذا زالت فارقها. (موطاء امام مالک ص۲۰۱) د نصف النهار له دائرې څخه د لمر د محیط د یوې څنډې له تیریدو څخه واخله د بلې څنډې تر تیریدو پورې د حساب له مخې دوه دقیقې او اته ثانیې لګیږي، په دومره وخت کښې لمونځ متصور کیدلی شي.

۳ـ د شرعي احکامو دار و مدار په ریاضي حسابونو باندې نه بلکه په مشاهدې باندې دی. او په مشاهده کښې له قارن (ور نژدې) استواء څخه تر فارق (جلا کوونکي) زوال پورې تقریباً لس

دقيقې تخمين شوی دی. لهذا په نقشو کښې د زوال له ورکړ شوي وخت څخه پنځه دقيقې مخکښې او پنځه دقيقې وروسته لمونځ بايد ادا نه شي.

**ويؤيده ما نقله ابن عابدين رحمه الله عن الطحطاوي في تفسير قول شارح التنوير (ووقت الظهر من زواله اى ميل ذكاء عن كبد السماء) اى وسطها بحسب ما يظهر لنا. (ردالمحتار ج۱، ص۳۳۲)**

د کراهت له تعليل څخه هم همدغه ثابتيږي. د لمانځه غونډې د لمر عبادت هم په يوه آن کښې خو نه شي متصور کيدلی، ښکاره خبره ده چه د لمر عبادت کوونکي استواء لره خاص د مشاهدې په حساب سره د عبادت وخت ټاکلی دی. فقط و الله تعالى اعلم. ۲۷ ربيع الاول ۸۹ هجری

## په رمضان شريف کښې د ماښام په لمانځه کښې د تاخير حکم

**سوال**: د رمضان په مياشت کښې د ماښام په لمانځه کښې ۵ دقيقې تاخير کول په دې خيال سره چه خلک روژې ماتې کړي او په جماعت کښې شامل شي نو آيا داسې کول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: اصل ځواب خو دا دی چه د ماښام په لمانځه کښې دومره ځنډ کول چه دوه رکعته لمونځ پکښې کيدلی شي په اتفاق سره له کراهيت پرته جائز دی. او له دې څخه په زيات تاخير کښې اختلاف دی. د ځينو په زد پرته له کراهت څخه جائز دی او د ځينو په نزد مکروه تنزيهي دی. البته دومره تاخير کول چه ډير ستوري وځليږي په اتفاق سره مکروه تحريمي دی. په رمضان المبارک کښې که چيرته لوږه زياته وي او خوراک تيار وي نو پنځلس شل دقيقې تاخير کولو کښې څه پروا نشته، ځکه چه دا تاخير له زيات څخه زيات په مکروه تنزيهي کښې راځي او د لوږې په حالت کښې د خوراک په موجودوالي کښې لمونځ کول مکروه تحريمي دي. لهذا له خوراک څخه د فارغيدو په صورت کښې په اطمينان او د زړه په فراغ سره بايد لمونځ ادا شي.

فقط و الله تعالى اعلم. ۱۶ رجب ۹۰ هجری

## د لمانځه تر ادا کولو وروسته معلومه شوه چه دلمانځه وخت وتلی دی

**سوال**: بکر د سهار لمونځ په دې نيت ادا کړ چه وخت خو لا شته په داسې حال کښې چه لمر ختلی وو ليکن د وريځ له وجې بکر ته د لمر ختل معلوم نه وو. نو آيا په داسې حالت کښې د بکر لمونځ وشو او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته ئې د مکروه وخت له ختميدو څخه مخکښې لمونځ شروع کړی وي نو لمونځ ئې صحيح نه شو او که چيرته ئې وروسته شروع کړی وي نو په دې کښې تفصيل دا دی چه که چيرته ئې د وختي سهار نيت کړی وو نو لمونځ ئې نه وشو او که ئې د نن سهار نيت کړی وو نو لمونځ ئې صحيح شو.

قال فی التنویر ولو نوی ظهر الوقت فلو مع بقائه جاز ولو مع عدمه وهو لا یعلمه لا، وفی الشرح فالاولی نیة ظهر الیوم لجوازه مطلقاً. وفی الحاشیة (قوله وهو لا یعلمه) ای لا یعلم خروجه ومفهومه انه لو علمه یصح کما قدمناه عن الشرنبلالیة. (ردالمحتار ج۱،ص۲۹۲) فقط والله تعالیٰ اعلم. ۱۶ رجب ۹۰ هجری

## د لمانځه د وختونو تعین په ساعتونو سره ممکن نه دی

**سوال**: ښاغلی مولانا مفتي رشید احمد صاحب، السلام علیکم و رحمة الله و برکاته

له دار العلوم کراچی ځخه مې د یوې پوښتنې د ځواب غوښتنه کړې وه هغو ستاسو خوا ته د رجوع لارښوونه را ته کړې ده. د سوال نقل سره له ځوابه در لیږم هیله ده چه تاسو زما لارښوونه وکړی. د خپلې پوښتنې د زیات وضاحت لپاره عرض کول غواړم چه لکه ځرنګه چه د لمر د ډوبیدو له یوه ساعت ا شلو دقیقو وروسته پورې د ماښام وخت په ځای وي او له دې وروسته د ماسخوتن وخت شروع کیږي او دا وقفه یعنې یو ساعت او شل دقیقې په هر موسم کښې یو شان وي، همدارنګه د مازدیګر د لمانځه وخت هم د لمر له ډوبیدو دوه ساعته مخکښې شروع کیږي یا که چیرته همدا ډول صحیح وقفه معلومه شي نو د مازدیګر د لمانځه وخت مقررول به آسانه شي، نور که چیرته دا څرګنده شي چه د لمر تر ختلو یو ساعت او دیرش دقیقې مخکښې (یا تر تحقیق وروسته چه کومه وقفه هم معلومه شي) صبح صادق وي، او دا وقفه هم په هر موسم کښې یو شان وي نو د لمر تر ختلو او ډوبیدلو ځخه د سهار، مازدیګر، ماښام او ماسخوتن د صحیح وختونو معلومول ډیر آسانه کیږي او د ماسپښین د لمانځه د وخت هم له نصف النهار ځخه صحیح ټاکل کیدلی شي. لهذا تر تحقیق وروسته ما ته اطلاع راکړی چه دا سې یوه کُلي قاعده ممکنه ده او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د صبح صادق له ابتداء ځخه د لمر تر ختلو پورې او د لمر له ډوبیدو ځخه د شفق تر ډوبیدو پورې، همدارنګه د مازدیګر له ابتداء ځخه د لمر تر ډوبیدو پورې وختونه په ساعتونو متعین کول ممکن نه دي، په مختلفو موسمونو کښې د لمر د میل د اختلاف له وجې د دغو وختونو اندازه مختلف کیږي، همدارنګه د عرض البلد د اختلاف له وجې هم په دې اندازې کښې فرق وي. له دې فن ځخه ځینو بې خبرو خلکو څه داسې قواعد لیکلي دي کوم چه په قطعي توګه غلط دي، د هغو له زیات ځخه زیات تاویل دا کیدلی شي چه هغو خلکو ۱ - په کومې خاصې علاقې کښې، ۲- په خاصو ورځو کښې، ۳- تقریبي حساب لګولی دی او له دې فن ځخه د بې خبری له وجې ئې دا د هر ځای او هرې زمانې لپاره قاعدهٔ کُلیه ګڼلې ده.

د وختونو د تخریج او د قبلې د سمت په اړه زما دوه رسالې په "ارشاد العابد" او "صبح صادق" نامه شته ممکنه ده چه له هغو ځخه څه استفاده وکړای شي. فقط و الله تعالی اعلم

غرهٔ شعبان ۹۲ هجری

## د لمانځه د وختونو نقشې

**سوال** : د لمانځه د وختونو، طلوع، غروب او داسې نورو د ټول کال يوه نقشه دلته د مولانا مظهر الله شاه نقشبندي شاهي د فتح پوري دهلي د جومات امام او مفتي له خوا تياره شوې ده او يوه بله نقشه همدارنګه د مولوي محمد دين صاحب د اشرفيه کتب خانه راولپنډۍ له خوا په جوماتونو کښې زړيږي. يو ځل ستاسو د ليکنې له مخې په دې نقشې کښې څه فرق ښکاره کړی وو (په داسې حال کښې چه په دغو دواړو نقشو کښې هم ځای ځای فرق پيدا کيږي يعنې ټول وختونه ئې له يوه او بل سره برابر نه دي) اوس د پوښتنې ځای دا دی چه تاسو جناب د کومې نقشې په اړه د نه اطمينان اظهار کړی وو، ځيني وختونو په لومړنۍ نقشې کښې د طلوع، غروب او داسې نور د واقعيت مطابق ښکاره شوي دي، او که دواړه نقشې ستاسو خدمت ته در وليږم او بيا به تاسو تحقيق پرې کوی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تر ننه پورې چه څومره نقشې خپرې شوي دي په ټولو کښې د صبح صادق او ماسخوتن وختونه غلط دي. د يوې بنيادي غلطۍ له وجې چه تفصيل زما د "صبح صادق" په رساله کښې شته. د نورو وختونو په اړه چه نقشه وګورم نو بيا څه ويلی شم، د ليپ له يوه کال څخه ونيسه د ليپ تر بل کاله پورې څلور کاله دي د طلوع، غروب او داسې نورو وختونه يو دوه دقيقې فرق کوي لهذا د دائمي نقشې د ترتيبولو لپاره دا تفاوت تر نظره غورځول کيږي د دې لپاره نقشې پخپل منځ کښې سره متفاوتې وي چه له دې څخه يوه هم خالي نه ده. البته که چيرته د ليپ کال د نقشې بنياد کيښودل شي نو په وختونو کښې د احتياط اړخ را ووځي. په هر صورت هرې نقشې باندې د دريو، څلورو دقيقو د احتياط د خبردارۍ ليکل لازم دي.

فقط و الله تعالى اعلم. ٦ ربيع الاول ۹۳ هجری

## د سهار د لمانځه مستحب وخت

**سوال** : فقهاوو د سهار د لمانځه مستحب وخت دا ښوولی دی چه کله ښه رڼائي جوړه شي او دومره وخت پاتې وي چه د سُنتو مطابق په ښه توګه لمونځ ادا شي او له لمانځه څخه تر فارغيدو وروسته دومره وخت پاتې وي چه د سنتو په طريقې سره د لمانځه را ګرځول ممکن وي. که چيرته په کوم جومات کښې د ((وَ السَّمَآءِ ذَاتِ الْبُرُوجِ فی الرکعة الاولیٰ وَ الطَّارِقِ فی الرکعة الثانیة)) ويل عادت وي نو بيا د سهار لمونځ په داسې وخت کښې شروع کړي چه د لمانځه بيرته را ګرځول په همدغو دوو سورتونو سره ممکن وي يا ئې په داسې وخت کښې شروع کړي چه د لمانځه را ګرځول په مسنونه طريقه سره په طوال مفصل سره ممکن وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا عادت د سُنتو خلاف دی. لمونځ بايد په داسې وخت کښې شروع

شي چه په هغه کښې د مسنون قرائت تر کولو وروسته که چیرته د فاسدوالي صورت منځ ته راشي نو بیا ئې په مسنونه طریقه سره بیرته را ګرځولی شي. له تجربې څخه ثابته شوي ده چه د لمر تر ختلو تقریباً نیم ساعت مخکښې د مذکوره قاعدې مطابق لمونځ کیدلی شي. فقط و الله تعالی اعلم.

۹ محرم ۹۵ هجری

## له طلوع څخه وروسته او له غروب څخه مخکښې د مکروه وخت اندازه

**سوال**: د لمر تر ختلو څومره ځنډ وروسته او د لمر تر لویدو څومره ځنډ مخکښې د لمانځه ادا کول جائز دي او آیا د وخت کومه داسې ټاکلې اندازه شته چه په هر ځای کښې معتبره وي. یوه داسې ضابطه یا قاعده را وښایئ چه په ټولې دنیا کښې هر ځای په کار ورشي، زه د هغه په مطابق د ټورنټو (کاناډا) د نقشې جوړول غواړم؟ بینوا توجروا.

**ځواب**: په دې باره کښې اصل ضابطه کومه چه د ټولې دنیا لپاره په کار راتلونکې ده دا ده چه تر څو پورې لمر تر ختلو وروسته په داسې کیفیت سره پاتې شي چه هغه تر ډیره پورې په کتلو سره سترګو ته تکلیف او خړوالی نه ورکوي تر هغه وخته پورې د لمانځه ادا کول جائز نه دي. همدارنګه په مازدیګر کښې چه کله د لمر داسې کیفیت شروع شي نو لمونځ مکروه دی. الاّ عصرَ یومه. لیکن دا معیار به هلته صحیح وي چه په مطلع (د لمر د ختلو په ځای) باندې وریځ، ګرد، غبار او داسې نور نه وي او که نه نو نوموړی کیفیت د عوارضو له وجې تر ډیره ځنډه پورې تر دې پورې چه په ځینو ورځو کښې تر غرمې پورې پاتې کیږي. او په ځینو علاقو کښې ټوله ورځ د لمر په رڼا کښې تیزوالی نه راځي. یو بل معیار هم فقهاء کرامو رحمهم الله لیکلی دی او هغه دا چه کله لمر تر را ختلو وروسته له افق څخه د یوې نیزې په اندازه را پورته شي نو د لمانځه ادا کول صحیح کیږي، همدارنګه تر مازدیګر ورسته چه کله د لمر لوړوالی له افق څخه د یوې نیزې له اندازې څخه په کمیدو شي نو لمونځ صحیح نه دی. (الا عصر یومه) د نیزې اندازه دولس لویشتې ده.

قال العلاء فی بیان وقت العصر ما لم یتغیر ذکاء بان لاتحار العین فیها فی الاصح و قال ابن عابدین رحمه الله صححه فی الهدایة وفی الظهیریة ان امکنه اطالة النظر فقد تغیرت وعلیه الفتوی وفی النصاب وغیره وبه نأخذ و هو قول ائمتنا الثلاثة و مشائخ بلخ و غیرهم کذا فی الفتاوی الصوفیة. (الی قوله) و قیل هذ التغیر ان یبقی للغروب اقل من رمح و قیل ان یتغیر الشعاع علی الحیطان کما فی الجوهرة ابن عبد الرزاق. (رد المحتار ج۱، ص۳۴۱) وقال ابن عابدین ایضاً (قوله مع شروق) وما دامت العین لاتحار فیها فهی فی حکم الشروق کما تقدم فی الغروب انه الاصح کما فی البحر اقول ینبغی تصحیح ما نقلوه عن الاصل للامام محمد من انه ما لم ترتفع الشمس قدر رمح فهی فی حکم الطلوع لان اصحاب المتون مشوا علیه فی صلوة العید حیث جعلوا اول وقتها من الارتفاع ولذا جزم به فی الفیض ونور الایضاح. (ردالمحتار ج۱، ص۳۴۳) وقال فیه ایضاً (قوله قدر رمح) هو اثنا عشر شبراً. (ردالمحتار ج۱، ص۴۷۷)

د غور له کولو څخه څرګندېږي چه اصل اعتبار د لمر رڼا لره دی او د نیزې له اندازې څخه د همدې تخمین کېدلی شي. کما یظهر من قول ابن عابدین رحمه الله وقیل حتی التغیّر ان یبقی للغروب اقل من رمح.
درایةً هم د لمر تغیر لره د معیار ګڼلو وجه معقوله ده او د نیزې اندازې لره مقصود بالذات ګڼل غیر معقول دی. ((الا ان یوجه بانه قد یعطی لقرب الشئ حکم الشئ فقدروا القرب بما دون الرمح ولکن تقدیر الفاصل بین القرب والبعد بالرمح ایضا یحتاج الی وجه)) که چیرته د قدر رمح (د نیزې د اندازې) قول مستقل قول ومنل شي نو بیا به هم د لمر د تغیر قول به راجح وي ((لکونه موجها)) د نیزې د اندازې په ځای د لمر د تغیر خوړلو څرګندول آسانه هم دی. لنډه دا چه اصل اعتبار رڼا لره دی که چیرته د فضا د خړپړتیا له وجې د رڼا اندازه و نه شي لګولی نو د نیزې په اندازې سره دې اندازه ولګول شي. اصل معیار خو همدغه دواړه دي کوم چه ذکر شول ځکه چه دا د ټولې دنیا لپاره ده او د پېژندلو لپاره ئې نه د کومې آلې ضرورت شته او نه د ګړی یا ساعت، هر خاص او عام ئې پېژندلی شي، د اسلام دین د فطرت دین او عالمګیر کېدلو هم خاص د همداسې معیار مقتضی دی. د وخت داسې یوه ټاکلې اندازه نه شي ټاکل کېدلی کوم چه په هر ځای کښې وچلیږي ځکه چه په مختلفو ځایونو او موسمونو کښې د دې وخت د اندازې مختلف کېدل یوه ضروري خبره ده. په لویو ښارونو کښې لکه څرنګه چه د طلوع او غروب په وخت کښې د لمر لیدل مشکل دي د دې لپاره د کوم معیار د ټاکلو ضرورت شته. څو کاله مخکښې ما د نورو علماوو تر څنګ په ۸°/ ۲۵ عرض البلد کښې دا مشاهده وکړه نو له طلوع څخه لس دقیقې وروسته او له غروب څخه پنځلس دقیقې مخکښې فیصله مو وکړه لیکن دا مې په زړه نه ده چه دا فیصله مو په کوم تاریخ کښې کړې وه د دې لپاره له دې څخه کوم معیار نه شي ټاکل کېدلی، په تېر رمضان کښې د دې مقصد لپاره ما مدرسهٔ محمدیه ټنډو آدم (طول ۷°/ ۶۸ ، عرض ۸°/ ۲۵) ته سفر وکړ لیکن د وریځ له وجې څخه مشاهده و نه شوای کړی بالاخره مې د مولوي محمد صدیق صاحب د مدرسهٔ محمدیه مهتمم ته مې دا ذمه واري په غاړه ور واړوله چه هغه په ۲۱، ۲۲، ۲۳ ستمبر باندې له ځان سره کم تر کمه دوه درې نور یوه سرې کړي او تر دریو ورځو پورې پرله پسې سهار او ماښام مشاهدات وکړي او نتیجې ئې ولیکي. لکه څرنګه چه د لاربښوونې له مخې له مشاهداتو څخه دا ثابته شوه چه له طلوع څخه نهه دقیقې وروسته په لمر کښې معهوده ګرمي راغله او له غروب څخه دیارلس دقیقې مخکښې د مکروه وخت شروع شو. دا فیصله په ډېر احتیاط سره وشوه او که نه حقیقت دا دی چه مکروه وخت په دواړو خواوو کښې له دې څخه هم څه کم وو. ما د کروي مثلث له حسابه په مذکور وخت کښې د لمر د زاویې لوړوالی معلوم کړ نو نهه دقیقې -۱/٤° او دیارلس دقیقې -۳/۳° شو. په دې تخریج کښې د دې لحاظ شوی دی چه د طلوع او غروب په وخت کښې لمر له افق څخه

۰/۸ درجې لاندې وي ليکن د د حقيقي أفق د لوړوالي زاويه له (۹۰) درجو څخه اخيستل شوی دی. د ارتفاع يا لوړوالي د زاويې تر تعين وروسته په هر ځای او هر موسم کښې د مکروه وخت دائمي نقشه تياريدلی شي. چنانچه د ارتفاع زاويه ۱/۴ په مطابق په کراچۍ کښې د مارچ او ستمبر په مياشتو کښې تر طلوع وروسته نهه دقيقې او په جون او دسمبر کښې په يوولسو دقيقو کښې د مکروه وخت پای ته رسيږي او د مازديگر مکروه وخت له زيات څخه زيات له لمر لويدو څخه شپاړس دقيقې مخکښې شروع کيږي. فقط و الله تعالی اعلم. ۱۳شوال ۹۷ هجری

(په صبح صادق کتاب کښې د اشراق په ورکړل شوي وخت باندې د مکروه وخت پای ته رسيږي)

## د سيوري تر دويم چنده پورې د ماسپښين د لمانځه په ځنډولو کښې د کراهت تحقيق

**سوال**: زمونږ د فوجي ملازمينو (نوکرانو) رخصتي په ژمي کښې دوه بجې وي. په لومړي چند کښې جماعت ته رسيدل مشکل وي او امام صاحب له هغو خلکو سره چه نوکري ئې نه وي په مثل اول (د سيوري په لومړي چند) کښې لمونځ کوي. امام صاحب وايي چه د ماسپښين وخت اگر که تر مثلينو پورې د مشهور روايت له مخې وي ليکن په اول مثل کښې د لمانځه ادا کول د لاندينی وجوهاتو له مخې ضروري دي.

۱- په ژمي کښې تعجيل مستحب دی کوم چه د مثل اول لومړنی نيمايي ده. (اشعة اللمعات ص۱۵۱، او کفاية شرح هدايه ص۴۵)

۲- د دويم مثل وخت مختلف فيه دی تر دې پورې چه د امام ابو حنيفه د يوه روايت مطابق دا وخت د مازديگر وخت دی، دا روايت په هدايه، در مختار، شامي او داسې نورو کښې موجود دی او د يوه روايت مطابق دا وخت مهمل (پريښودل شوی، بې فائدې) دی. (کبيري ص۲۲۵، شامي ص۲۵۱، کفايه ص۴۵، وغيرها)

همدارنگه مثل اول ته رجوع ثابت دی. لکه څرنگه چه په مجموعة الفتاوی عبد الحی ص۲۳۹، ج۱، کښې دی چه نعم هو ثابت بتصريح جمع من الفقهاء الخ او فيض الباري شرح د بخاري ص۹۴ ج۲ کښې دي رجوع الامام الی هذه الرواية الخ اوپه موطا امام محمد کښې د ليکو په منځ ص۴۵ کښې دي قد ذكر جمع من الفقهاء رجوعه منه الی المثل.

۳- د ظاهر الرواية په کتابونو کښې د ماسپښين د آخري وخت روايت نه پيدا کيږي وفی البدائع ج۱،ص۱۲۲، ان آخر الوقت لم يذكر فی ظاهر الرواية فاذا خلت هذه الكتب الستة عن ذكر آخر الوقت علم انه لم يجیٔ فی ظاهر الرواية الخ. (بدائع الصنائع ج۱،ص۱۲۲)

۴- په نور الایضاح کښې دي چه: مع مراعاة الوقت المستحب الخ وفی حاشیته افاد انه لا یجوز التاخیر عن الوقت المستحب الی المکروه مطلقاً آه، وفی الطحطاوی ص۱۱۷ وفی الدر المختار مراعیاً لوقت الندب، وفی کتاب الفقه علی المذاهب الاربعة مع المحافظة علی قدر المفضیلة.

۵- وفی ط عن الحموی عن الخزانة الوقت المکروه فی الظهر ان یدخل فی حد الاختلاف واذا اخّره حتی صار ظلّ کل شئ مثله فقد دخل فی حد الاختلاف.(شامی ص۲۵۳، وطحطاوی ص۱۰۷، وغایة الاوطار ص۱۷۶)

د پورتنیو او داسې نورو وجوهاتو له مخې د احنافو علماوو دا فیصله کړې ده چه د ماسپښین لمونځ دې د سیوري له اول چند څخه باید ناوخته نه شي او مازدیگر دې په د سیوري په دویم چند کښې ادا شي.

قال المشائخ ینبغی ان لا یصلی العصر حتی یبلغ المثلین ولا یؤخر الظهر الی ان یبلغ المثل لیخرج من الخلاف فیها. (کبیری ص۲۲۵، و معناه فی رد المحتار ج۱، ص۲۵۱، و مراقی الفلاح ص۱۰۴، و التنقیح الضروری شرح القدوری ص۲۰ و غیرها) آیا سره د نوموړې مجبورۍ او د امام صاحب د بیان له وجې په دویم چند کښې مونږ د جماعت د لمانځه اهتمام کولی شو؟ او که ئې کولی شو نو په دلائلو سره ئې بیان کړی. همدارنگه د هرې شمارې تائید یا تردید په واضحو الفاظو کښې ولیکی؟ بینوا توجروا.

الجواب باسم ملهم الصواب: په نوموړي تحقیق کښې د دوو خبرو وضاحت ضروري دی.

۱- د حضرت امام اعظم صاحب د اول مثل قول ته رجوع اگر که له ځینو څخه منقول دی لیکن د دې غالب ظن نشته. که چیرته دا خبره د ظن د غلبې په درجه کښې ثابته وای نو مشائخو به په دې کښې اختلاف نه کاوه. په داسې حال کښې چه د دواړو قولونو یو شان تصحیح او ترجیح له مشائخو څخه منقول دي.

ان الادلة تکافأت ولم یظهر ضعف دلیل الامام بل ادلته قویة ایضاً کما یعلم من مراجعة المطولات و شرح المنیة وقد قال فی البحر لا یعدل عن قول الامام الی قولهما او قول احدهما الا لضرورة من ضعف دلیله او تعامل بخلافه کالمزارعة وان صرّح المشائخ بأن الفتوٰی علی قولهما کما هنا، وقال ایضاً وانظر هل اذا لزم من تأخیره العصر الی المثلین فوت الجماعة یکون الاولی التأخیر ام لا، والظاهر الاول بل یلزم لمن اعتقد رجحان قول الامام تأمل.(ردالمحتار ج۱، ص۲۳۳)

د شفق احمر او ابیض د بحث لاندې په فتح الملهم کښې دي وما فی الدر المختار ان الامام رجع الی قول صاحبیه فقال العلامة قاسم فی تصحیح القدوری ان رجوعه لم یثبت لما نقله الکافة من لدن الائمة الثلاثة الی

اليوم من حكاية القولين ودعوى عمل عامة الصحابة بخلافه خلاف المنقول. (فتح الملهم ج۲، ص۱۹۵)

۲۔ په دویم مثل کښې د ماسپښین د لمانځه د کراهت قول د تنزیهي کراهت متبادر دی. اګر که له مطلق کراهت څخه کراهت تحریمي مراد وي لیکن دلته د دویم مثل قول چونکه ډیرو مشائخو نې تصحیح کړې ده د دې لپاره کراهتِ تنزیهي متبادر دی.

په هر حال د جومات د امام لپاره ښه دا ده چه د دویم مثل له شروع کیدو څخه دې مخکښې د جماعت لمونځ ورکړي. په حکومت باندې لازمه ده چه نوکرانو ته په مثل اول کښې د ننه د ننه د لمانځه د ادا کولو اجازه ورکړي.

لارښوونه: په راولپنډۍ کښې د جنوري په اوله لومړی چند په دوه بجې او یو پنځوس دقیقې باندې پای ته رسیږي او دویم چند په درې بجې او یو دیرش دقیقې باندې، په نورو موسمونو کښې تر دې څخه هم زیات وخت وي. له دې وجې څخه له سرکاري دفترونو څخه په دوه بجو تر رخصت کیدو وروسته هم په هر موسم کښې د ماسپښین لمونځ په اول مثل کښې په جماعت سره ادا کیدلی شي. فقط و الله تعالی اعلم. ۱۵ محرم الحرام ۹۸ هجری

## که چیرته د مازدیګر جماعت له مثلینو څخه مخکښې وشي نو څه حکم لري

**سوال**: په حرمین شریفینو کښې د مازدیګر جماعت له مثلینو څخه مخکښې کیږي، آیا مونږ جماعت پریږدو او تر مثلینو وروسته یواځې لمونځ ادا کړو او که ئې له همدې جماعت سره ادا کړو؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: قال في الشامية و انظر هل اذا لزم من تأخيره العصر الى المثلين فوت الجماعة يكون الاولى التأخير ام لا، والظاهر الاول بل يلزم لمن اعتقد رجحان قول الامام، تأمل. (رد المحتار ج۱، ص۲۲۳)

له دې څخه ثابته شوه چه تر مثلینو وروسته د مازدیګر د لمانځه ادا کول افضل دي اګر که جماعت هم فوت شي. لیکن دا حکم د عامو ځایونو لپاره دی په حرمین شریفینو کښې فضیلت ته په کتو سره باید هلته جماعت ترک نه شي بلکه په مثل اول کښې دې له جماعت سره لمونځ ادا شي. فقط و الله تعالی اعلم. ۱۵ محرم الحرام ۹۸ هجری

## د غروب (د لمر ډوبیدو) علامه (تنبیه)

**سوال**: په عامه توګه مشهوره ده چه کله د مشرق خوا ته په اُفق باندې توروالی راشي نو دا د

لمر د ډوبیدو علامه ګڼل کیږي. حالانکه له مشاهدې څخه ثابته شوې ده چه د لمر تر لویدو څه نا څه مخکښې د مشرق خوا ته توروالی تر ستر ګو کیږي. په دې باره کښې تحقیق څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د لمر د ډوبیدو دا علامه په حدیث کښې هم راغلې ده. **اذا قبل اللیل من ههنا ـ الحدیث** د دې په شرح کښې حضرت ګنګوهي صاحب قدس سرّه فرمائي: **والعبرة انما هو لارتفاع الظلام من المشرق الی حیث یوازی رأس الرائی (لامع الدراری ج۵ ص۳۸۱)** یعنې د مشرق خوا ته د تیاره محض ښکاریدل کافي نه دي بلکه دا شرط دی چه له اُفق څخه دا تیاره دومره لوړه شوې وي چه د لیدونکي له قد او قامت سره برابره وي.

بنده یو بل عالِم هم له ځان سره کړ او د دې مشاهده ئې وکړه نو بالکل ئې صحیح ومیندله.

فقط و الله تعالی اعلم. ۲۲ رمضان ۹۸ هجری

## د ماښام او ماسخوتن تر منځ د وخت هیڅ تحدید نشته

**سوال**: څه فرمایي د دین علماء کرام او د شرع متین مفتیان کرام د دې مسئلې په باره کښې چه له ماښام څخه تر ماسخوتن پورې باید څومره وخت وي. زمونږ ځینې علماء کرام وایي چه کم تر کمه یو ساعت او اتلس دقیقې باندې د ماسخوتن وخت شروع کیږي او له زیات څخه زیات په یو ساعت پنځه دیرش دقیقو باندې د ماسخوتن وخت داخلیږي. ځینې وایي چه یو ساعت او شل دقیقو باندې د ماسخوتن وخت داخلیږي. د کرم او مهربانۍ له مخې مفتیٰ به قول ذکر کړی. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ماښام او ماسخوتن تر منځ د استواء د لیکې په ځای باندې په معتدلو ورځو کښې کم تر کمه ۵۷ دقیقې وي، دا وخت سپین شفق ډوبیږي او سور شفق له دې څخه هم دولس دقیقې مخکښې ډوبیږي. د دې په مطابق د لمر له لویدو څخه ٤٥ دقیقې وروسته د ماسخوتن وخت شروع کیږي. دا قول ارجح دی او لومړی قول احوط دی. په نورو ورځو او نورو ځایونو کښې تر دې زیات وخت وي او د زیاتوالي هیڅ اندازه نه نشته تر دې پورې چه په بلغاریا کښې د اوړي په موسم کښې د ماسخوتن وخت خو بالکل نه راځي. د دې وخت اندازه په هر ښار او هر موسم کښې مختلفه وي. د تفصیل لپاره د بنده کتاب ((صبح صادق)) مطالعه کړی.

فقط و الله تعالی اعلم. ۲٤ ربیع الآخر ۹۸ هجری

(رسائل)

بسم الله الرحمن الرحيم

﴿وَمَا تَوْفِيقِيٓ إِلَّا بِٱللَّهِۚ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ﴾

# شرحُ الصدر

## فی الفرق بین

# صَلٰوتی الفجر والعصر

**د غروب په وقت کښې د مازدیګر لمونځ سره له کراهیت نه صحح دې لیکن د طلوع په وقت کښې د سحر لمونځ صحیح ندې**

**د دواړو تر مینځ د فرق متعلق یو عجیب بلکه اعجب تحقیق**

**د لمر په ختو باندې د سهار د لمانځه په اتمام یا فساد پورې د اړونده حدیثونو عجیبه توجیه، د صحیح البخاري له تقریر څخه اقتباس**

**قال رسول الله ﷺ اذا ادرك احدكم سجدة من صلوة العصر قبل ان تغرب الشمس فليتم صلوته الى آخر الحديث ص ۷۹**

د جمهورو په نزد د مازدیګر او سهار دواړو یو حکم دی چه کله لمونځ شروع شوی وي او په منځ کښې لمر ډوب شي یا وخیژي نو لمونځ دې پوره کړي. دا حدیث د جمهور د باب مستدل دی او د طرفینو رحمهما الله په نزد په مازدیګر او سهار کښې فرق شته چه د همدې ورځې د مازدیګر په لمانځه کښې که لمر ډوب شي نو لمونځ دې پوره کړي او که چیرته په سهار کښې لمر وخیژي نو لمونځ ئې فاسدیږي د دې لپاره دې وروسته بیا قضائي را وګرځوي. امام ابو یوسف رحمه الله څخه امام سرخسي رحمه الله یو روایت نقل کړی دی چه که چیرته د سهار په لمانځه کښې لمر وخیژي نو په دې حالت کښې دې امساک وکړي تر دې پورې چه مکروه وخت تیر شي نو بیا دې وروسته اتمام وکړي (یعنې لمونځ دې پوره کړي)

د امام طحاي رحمه الله تحقیق دا دی چه د مازدیګرلمونځ ئې هم نه صحیح کیږي. د هغه په نزد سهار او مازدیګر دواړه د لمر په ختو او ډوبیدو باندې فاسدیږي. امام طحاوي د ابي حنیفه رحمه الله په مذهب باندې تر ټولو پوه دی لیکن د دې تر څنګ چه په کوم ځای کښې هغه د جمهورو حنفیه وو په خلاف خې نو هلته ئې قول نه را اخیستل کیږي

دا روایت له صحیح البخاري څخه پرته په نورو کتابونو کښې بلکه پخپله په صحیح البخاري

کښې هم د بحث لاندې باب په نورو ځایونو کښې دا ډول راغلی دی. **(من ادرک رکعة قبل ان تغرب الشمس فقدادرک)** همدا ډول الفاظ د سهار په اړه هم راغلي دي. احنافو همدغو الفاظو ته په کتو سره د حدیث د ځواب د ورکولو کوشش کړی دی. د دې روایت حقیقي معنٰی خو دا ده چه چا د لمر تر ختلو یا ډوبیدو څخه مخکښې د یوه رکعت وخت پیدا کړ په تحقیق سره هغه ټول لمونځ پیدا کړ. چه ظاهري معنٰی ئې دا ده چه د یوه رکعت په ادا کولو سره ئې لمونځ پوره شو او د نورو د ادا کولو ضرورت نشته. لیکن د دې ظاهري مفهوم هیڅوک هم قائل نه دی لهذا په اتفاق سره دلته به څه محذوف منلو ته به سړی تیاریږي.

جمهور د دې تقدیر داسې کوي چه **(فقدادرک وقت الصلوة)** یعنې یو رکعت ئې ادا کړ نو هغه ته د لمانځه وخت په لاس ورا‌غی د دې لپاره دې لمونځ پوره کړي.

د احنافو لخوا څخه امام طحاوي رحمه الله د دې په ځواب کښې وایي چه مونږ د لمانځه وخت مقدر نه منو بلکه د لمانځه حکم را باسو یعنې هلک بالغ شي یا حائضه ښځه پاکه شي یا یو کافر اسلام راوړي په داسې وخت کښې چه له طلوع یا غروب څخه مخکښې یو رکعت ادا کولی شي نو هغه د لمانځه حکم یعنې د لمانځه وجوب پیدا کړ په هغه باندې به لمونځ فرض کیږي چه وروسته به ئې قضائي راوړل پرې ضروري وي.

**اشکال**: په دې کښې د سهار او مازدیګر څه تخصیص (ځانګړیتوب) دی؟ دا قاعده خو د هر لمانځه په باره کښې ده چه د وخت له پای ته رسیدو څخه مخکښې دومره وخت ئې پیدا کړ چه په هغه کښې یو رکعت ادا کیدلی شي نو لمونځ فرض ګرځي.

**ځواب**: د سهار او مازدیګر ذکر (یادونې) د تخصیص لپاره نه دی بلکه د دغو دواړو وختونو اختتام چونکه د مشاهدې له مخې په آسانۍ سره څرګندیږي د دې لپاره دا دواړه ئې ذکر کړل او که نه نو دا حکم د ټولو لمونځونو لپاره عام دی.

ابن الملک د مشارق الانوار شارح د دې روایت ځواب داسې ورکړی دی چه مونږ نه وخت د لمانځه مقدر ګڼو او نه حکم د لمانځه بلکه ثواب د لمانځه مقدر دی. مطلب دا چه یوه سړي د ځان لخوا پوره کوشش وکړ چه تر طلوع یا غروب څخه مخکښې لمونځ ادا کړي لیکن د ده د کوشش تر څنګ د لمانځه په منځ کښې طلوع یا غروب وشو نو هغه ته ثواب ورکول کیږي د دې لپاره چه هغه د ځان لخوا څخه پوره کوشش کړی دی. په کوشش باندې د ثواب حاصلیدل ﴿وَمَن يَخْرُجْ مِنۢ بَيْتِهِۦ مُهَاجِرًا إِلَى ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ثُمَّ يُدْرِكْهُ ٱلْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهُۥ عَلَى ٱللَّهِ﴾ څخه ثابت دی. همدارنګه نبي کریم ﷺ وفرمایل چه تاسو کوم ځنګل یا کومه دره نه قطع کوی لیکن هغه خلک به له تاسو سره وي صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض وکړ چه کوم خلک؟ نو هغه ﷺ وفرمایل چه معذورین. د دې نور تفصیل

او په دې باندې نور روایتونه په ارشاد القاري کښې د "انما الاعمال با لنیات" لاندې راغلي دي
د ابن الملک دا توجیه ډېر لطیف دی لیکن د امام طحاوي او ابن الملک دواړو تقریر د صحیح البخاري په تقریر کښې د بحث لاندې حدیث باندې نه شي چلیدلی ځکه چه په دې حدیث کښې (فلیتم صلوته) الفاظ دي چه د اتمام صلوة حکم پکښې ورکړ شوی دی. د ابن الملک د دې دا ځواب ورکړی دی چه اتمام په دوو معناوو کښې استعمالیږي.

۱ - تر شروع کولو وروسته پوره کول

۲ - له پیل څخه په ښې طریقې سره ادا کول لکه څرنګه چه له ﴿ وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ ﴾ څخه شوافع استدلال کوي چه امر د وجوب لپاره وي نو ثابته شوه چه عمره واجبه ده. احناف د دې دا ځواب ورکوي چه له دې آیت څخه د نفس عمره وجوب نه ثابتیږي بلکه د عمرې د پوره کولو حکم دی یعنې د عُمرې تر شروع کولو وروسته د هغې پوره کول واجب دي. شوافع د دې ځواب دا ورکوي چه دلته اتمام تر شروع کولو وروسته د پوره کولو په معنٰی نه ده بلکه په کامله طریقه سره د ادا کولو په معنٰی ده. همدارنګه ابن الملک (فلیتم صلوته) کښې هم له اتمام څخه په کامله توګه د ادا کولو مراد اخلي. یعنې (اداء کما وجب) د مازدیګر لمونځ په ناقصه توګه واجبیږي لهذا د غروب په حالت کښې ئې ادا کول صحیح دي. او د سهار لمونځ په کامله توګه واجبیږي د دې لپاره د طلوع په حالت کښې به ئې ادا کول صحیح نه وي.

لیکن د ابن الملک دا تقریر هم ډاډ بخښونکی نه دی ځکه چه د اتمام دا معنٰی د متبادر خلاف دی. د دې لپاره په ﴿ وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ ﴾ کښې چه کله شوافع دا مراد اخلي نو مونږ ئې نه نو دا د انصاف خلاف دی چه شوافع دا معنٰی بیان کړي نو مونږ ئې قبول نه کړو او په دې حدیث کښې د خپل مذهب د حفاظت لپاره ئې هغه معنٰی پخپله بیان کړ.

همدارنګه د (فلیتم صلوته) په الفاظو کښې خو تا څه نا څه تاویل وکړ لیکن تر څو؟ د سنن کبرٰی للبیهقي په روایت کښې دا الفاظ دي: (من صلّٰی رکعة من العصر قبل ان تغرب الشمس ثم صلی ما بقی بعد غروب الشمس فلم یفته العصر و قال مثل ذٰلک فی الصبح). او د دار قطني روایت له دې څخه هم زیات صریح دی فرمایي: (اذا صلی احدکم رکعة من صلٰوة الصبح ثم طلعت الشمس فلیصل الیها اخرٰی). په دغو روایتونو کښې په مذکوره تاویلاتو کښې د یوه هم ګنجائش نشته.

حضرت مولانا انور شاه صاحب رحمه الله د (فقد ادرک) روایت په مسبوق باندې محمول ګاوه یعنې چا چه له امام سره یو رکعت ونیو هغه د ټول جماعت ثواب حاصل کړ لیکن دا توجیه هم په زړه کښې ځای نه نیسي ځکه چه چیرته دا مطلب ترې واخیستل شي نو د (قبل ان تطلع الشمس او

**قبل ان تغرب الشمس)** الفاظ بې معنی پاتې کيږي شاه صاحب د دې د خواب ورکولو کوشش هم کړی دی ليکن صحيح خبره دا ده چه ځواب نه جوړيږي.

همدارنګه د سنن کبریٰ او دار قطني او صحيح البخاري تر بحث لاندې حديث به څه ځواب وي د بيهقي روايت لره شاه صاحب د معلول ثابتولو کوشش کړی دی ليکن که چيرته په انصاف سره ورته وکتل شي نو ځرګنده به شي چه د شاه صاحب له ټول تقرير څخه تسلي نه حاصليږي.

ابن همام رحمه الله د احنافو د مذهب د ثابتولو لپاره دا طريقه غوره کړې ده چه په دغو روايتونو کښې د طلوع او غروب په وختونو کښې د اتمام صلوة حکم ورکړ شوی دی. او په نورو احاديثو کښې په دغو وختونو کښې د لمانځه له ادا کولو څخه منع راغلې ده پس د تعارض (ټکر) له وجې په احاديثو کښې به تساقط منځ ته راځي او مونږ قياس ته رجوع کوو، پس د قياس مقتضیٰ دا ده چه د مازديګر لمونځ دې صحيح شي او د سهار دې صحيح نه شي کوم چه تفصيل ئې د فقهې په کتابونو کښې موجود دی.

ابن همام رحمه الله دې تحقيق لره ډير خوښ کړی دی چنانچه احنافو تر دې تحقيق وروسته دا فکر وکړ چه مونږ د خپل مذهب په ثابتولو کښې کامياب شولو ليکن حقيقت دا دی چه معامله اوس هم هغسې ده ځکه چه په روايتونو کښې د تعارض (ټکر) په وخت تر ټولو د تطبيق د صورت لټون ضروري وي که چيرته کوم صورت ممکن نه وي نو د ترجيح د وجې پلټنه کيږي، که چيرته هغه هم نه وي نو په دريمه درجه کښې د تساقط له قاعدې څخه کار اخيستل کيږي. په دې مسئلې کښې چه څومره متعارضه روايتونه دي په هغو کښې د تطبيق صورت هم موجود دی او د ترجيح وجه هم موجوده ده. په داسې حالت کښې د روايتونو پريښودل او دقياس خوا ته تلل به څرنګه جائز وي؟

د ترجيح صورت خو پخپله امام طحاوي رحمه الله بيانوي چه د اتمام روايتونه خبر واحد دي او د نهی روايتونه د تواتر حد ته رسيدلي دي له دې امله د نهی روايتونه به راجح وي. همدارنګه د محرّم او مبيح (حلال او حرام شي) د تعارض (ټکر) په وخت کښې محرم ته ترجيح ورکول کيږي دريمه دا چه اباحت اصليه دی او نهی شرعي وي د دې لپاره چه چيرته د مبيح او محرم تاريخونه معلوم نه شي هلته مبيح مقدم او محرم مؤخر ګڼل کيږي او محرم لره د مبيح لپاره ناسخ شمارل کيږي. د دې لپاره امام طحاوي رحمه الله فرمايي چه نه د سهار لمونځ کيږي او نه د مازديګر.

ابن قيم او شوافع د تطبيق صورت غوره کوي. شوافع دا وايي چه د نهی له احاديثو څخه د باب احاديث مخصوص او مستثنیٰ دي اوابن قيم په اعلام الموقعين کښې فرمايي چه کله کله يو شی په پيل يا ابتداء کښې ناجائز وي ليکن بقاء او مداومت (پاتې کيدنه او هميش والی) ئې جائز وي لکه څرنګه چه د احرام په حالت کښې ابتداءً خوشبوئي لګول او نکاح کول ناجائز دي ليکن که چيرته ئې خوشبوئي لګولې وه او احرام ئې وتاړه نو د دې خوشبويي ابقاء جائزه ده. همدارنګه د

نکاح تر کولو وروسته ئې احرام وتاړه نو هغه د نکاح د بقاء منافي نه ده، په همدې ډول که چاقسم واخیست چه نکاح به و نه کړم نو د نکاح په ابتداء سره به حانث کیږي او له مخکښې څخه د شوي نکاح په ابقاء سره نه حانث کیږي. همدارنګه په دغو روایتونو کښې فرمائي چه د نهی د روایتونو مطلب دا دی چه په دغو وختونو کښې د لمانځه ابتداء جائزه نه ده او د باب له احادیثو څخه دا ثابتیږي چه که چیرته ئې له مخکښې څخه ابتداء کړې وي او په منځ کښې طلوع یا غروب وشي نو همدا لمونځ دې جاري ساتي او پوره کوي دې. په دواړه ډوله روایتونو کښې کوم منافات یا ټکر نشته.

د تطبیق دا صورت په ځینو ځایونو کښې پخپله احنافو هم غوره کړی دی لکه څرنګه چه د فقهې په کتابونو شامي او داسې نورو کښې دا تحقیق راغلی دی چه که چیرته چا په مکروه وختونو کښې نفلونه شروع کړل نو هغه دې پوره کړي او وجه ئې دا بیانوي چه روایتونه متعارض دي او په قرآنکریم کښې راغلي دي چه ﴿وَلَا تُبْطِلُوٓا أَعْمَٰلَكُمْ﴾ د دې لپاره د نوافلو پریښودل د عمل د ابطال له وجې جائز نه دي. له دې امله اتمام ضروري دی. تعجبه دا ده چه د نوافلو د اتمام (پوره کولو) لیکن د فرائضو د ماتولو حکم ورکوي. لنډه دا چه د اصولو تقاضا دا ده چه د تطبیق صورت غوره شي. د دې لپاره د سهار او مازدیګر دواړو لمونځونه باید صحیح وګڼل شي لکه څرنګه چه د جمهورو مسلک دی. په دویمې درجې باندې باید د ترجیح صورت غوره شي کوم چه د امام طحاوي رحمه الله مسلک دی. لیکن د حیرانتیا خبره ده چه د احنافو مسلک نه دلته پیدا کیږي او نه هلته. البته د حدیث د راوي حضرت ابو هریرة رضی الله عنه فتوی د لمانځه په باره کښې د احنافو په مطابق ده. په کنز العمال کښې د دې تصریح شته.

لنډه دا چه دا مسئله تر اوسه پورې د تحقیق (څیړنې) تږې ده. سره له دې زمونږ فتوی او عمل به د حضرت امام اعظم رحمه الله د قول مطابق وي ځکه چه مونږ د امام رحمه الله مقلدین یو او د مقلد لپاره د خپل امام قول حجت وي نه د ادلهٔ اربعه وو (څلورګوني دلیلونو) ځکه چه له هغو څخه استدلال د مجتهد کار دی.

په دې باره کښې تر ډیرې مودې پورې د حیران اوسیدو وروسته د حضرت تهانوي قدس سرهٗ عجیب او غریب تقریر په بوادر النوادر نومي کتاب کښې تر سترګو شو چه له هغه څخه مې پوره تسلي وشوه. (فالحمدلله علی ذٰلک ولله در حکیم الامت قدس سرّہ. وھاھوذا).

اعلم ان العلماء اختلفوا فی ما اذا طلعت الشمس فی صلٰوة الفجر او غربت فی صلٰوة العصر هل تصح الصلٰوة او تفسد فقال الشافعی و من وافقه تصح فیهما و قال الطحاوی تفسد فیهما و قال امامنا ابو حنیفة رحمه الله تفسد فی الفجر و تصح فی العصر و مبنی هٰذا الاختلاف اختلافهم فی توجیه الروایات التی وردت فی هٰذا الباب و

للسرد اولاً تلك الروايات ثم نذكر التوجيهات.

فروى الشيخان من حديث ابى هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ من ادرك من الصبح ركعة قبل ان تطلع الشمس فقد ادرك الصبح و من ادرك ركعة من العصر قبل ان تغرب الشمس فقد ادرك العصر و فى لفظ للبخارى اذا ادرك احدكم سجدة من صلوة العصر قبل ان تغرب الشمس فليتم صلوته و اذا ادرك سجدة من صلوة الصبح قبل ان تطلع الشمس فليتم صلوته. (زيلعى ج١،ص١١٩) وروى نحو ذلك فى فتح البارى ج٢، وفى كنز العمال ج٣. فعمل الشافعى و من معه بظاهر احاديث الاتمام و حمل احاديث النهى على تأثيم متحرى هذه الاوقات مع القول بصحة الصلوة و الطحاوى قال بالفساد فيهما حملاً لظاهر احاديث النهى على الابطال و اوّل حديث الادراك ايجاب الصلوة على من اسلم فى آخر الوقت او بلغ الحلم فيه او امرأة طهرت من الحيض فيه و اول ما فى احاديث الاتمام بكونها منسوخة باحاديث النهى و اما نحن معاشر الحنفية فتوجيهنا الذى ادّى اليه نظرى و ان كان مأخوذاً من كلام من تقدمنا ان يقال ان روايات الاتمام و الادراك تقتضى صحة الصلوة فيهما و احاديث النهى يحتمل امرين اما تأثيم المصلى فيهما مع صحة الصلوة و اما بطلان الصلوة فيهما كما قال به الطحاوى فان النهى الشرعى يستعمل فى كلا المعنيين مثال الاول النهى عن الصلوة مقعيا او متخصرا و مثال الثانى النهى عن الصلوة بغير طهور.

و ان خالجك قول الاصوليين ان النهى عن الافعال الشرعية يقتضى مشروعية الاصل مع فساد الوصف فهو اكثرى لا كلى و الالا نتقض بكثير من المسائل.

و ان رابك ان النهى فى الصلوة بغير طهور قد وقع بصيغة النفى فاقتضى البطلان بخلاف النهى عن الصلوة فى الاوقات المكروهة فلم يوجد ما يقتضى البطلان فازحه بورود هذا النهى ايضاً بصيغة النفى فى بعض الروايات كما روى الشيخان عن ابى سعيد الخدر رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ لا صلوة بعد الصبح حتى ترتفع الشمس ولا صلوة بعد العصر حتى تغيب الشمس. (مشكوٰة ج١،ص٨٦)

و روى مسلم عن عبد الله الصنابحى رحمه الله فى صلوة العصر قال قال رسول الله ﷺ و لا صلوة بعدها حتى تطلع الشاهد. (مشكوٰة ج١،ص٨٧)

و روى رزين عن ابى ذر رضي الله عنه قال سمعت رسول الله ﷺ لا صلوة بعد الصبح حتى تطلع الشمس ولا بعد العصر حتى تغرب الشمس. (مشكوٰة ج١،ص٨٧)

فلما احتمل النهی الامرین ینظر ان الاحتیاط ی ای الامرین و الصلوٰة محل احتیاط بلیغ فظاهر ان الاحتیاط فی الحمل علی البطلان لان القضاء اذًا یکون فرضاً بخلاف احتمال الکراهة فحملنا علی البطلان ای بطلان الفریضة لا بطلان نفس الصلوٰة لان المقتضی للبطلان کان الاحتیاط و الاحتیاط محفوظ مع القول بصحة النفل فبهذا الوجه قد جاء التعارض بین احادیث النهی و ینبغی ان یکون هذا هو التفسیر لقول علمائنا بوقوع التعارض بین قسمی الروایات فلما وقع التعارض رجعنا الی القیاس کما هو حکم التعارض و لیس معنی هٰذا الرجوع ترك الاحادیث و العمل بالقیاس بل معناه ترجیح بعض محتملات الاحادیث بالقیاس ثم العمل به من حیث انه حکم الحدیث لا من حیث انه حکم القیاس فافهم فلما رجعنا الی القیاس حکم القیاس بترجیح توجیه یقتضی البطلان فی احادیث الفجر و بترجیح توجیه یقتضی الصحة فی احادیث العصر فعملنا فی الفجر باحادیث البطلان و اوّلنا احادیث الاتمام و عملنا فی العصر بالعکس بالظاهر فی بعضها و بالمؤول فی بعضها. والأن بقی امران :

الاوّل : ما وجه القیاس فی الصلاتین؟

الثانی: ما التأویل فی الاحادیث؟

بیان الاول: ان الفجر وقت الشروع قبل طلو الشمس وجب کاملاً لکمال السبب و هو الوقت و بالطلوع صار الوقت ناقصاً و صارت الصلوٰة ناقصة فلا یتأدی الکامل بالناقص ففسدت و العصر وقت الشروع قبل المغرب وجب ناقصا لنقصان الوقت فاداه کما وجب فلم تفسد۔ هٰذا

بیان الثانی: ان معنی قوله علیه السلام فقد ادرک ما قاله الطحاوی رحمه الله و معنی فلیتم انه لا یبطل التحریم بل یمضی فی الصلوٰة لانه ان لم یتأد فرضاً فقد صحت نفلاً کما فی الدر المختار کما هو الحکم فی الحج الفاسد و معنی فلم یفت صلوته لم یفت وقت صلوته بل کان مدرکاً للوقت فیکون حاصل معناه هو معنی فقد ادرک.

تفصیل المقام: ان تأخیره ﷺ قضاء الصلوٰة الی ارتفاع الشمس مع قوله ﷺ من نسی صلوٰة او نام عنها فکفارتها ان یصلیها اذا ذکرها رواه مسلم و فی روایة لا کفارة لها الا ذٰلك. (ج۱، ص۲۴۱) الدال علی وجوب التعجیل فی القضاء اذا لم یکن عذر قوی و هو المذهب ایضاً کما فی الدر المختار مع رد المحتار (ج۱، ص۶۵۵) و نصه التاخیر بلا عذر کبیرة لا تزول بالقضاء بل بالتوبة اذا قضاها و اثم التاخیر باق بحر آه. و فی الدر ایضاً و یجوز تأخیر الفوائت و ان وجبت علی الفور لعذر السعی علی العیال و فی الحوائج علی الاصح. آه قال الشامی تحت قوله و

يجوز تأخير الفوائت اى الكثيرة [۱] المسقطة للترتيب آه. (ج ۱، ص ۶۸) فيه دليل على ان ما بين طلوع الشمس و ارتفاعها وقت ناقص لا يصلح للفرائض ولو فائتةً والا لما اخرها فلما ثبت كونه غير صالح للفرض واذا طلعت الشمس فى اثنائه يقع بعض الفرض فى هٰذا الوقت فيحكم بفساده.

## لا يقال كان هٰهنا عذران

احدهما: التحرز عن الكراهة الزمانية المفهومة من قوله ﷺ فى حديث عمرو بن عبسة و اذا طلعت فلا تصل حتى ترتفع فانها تطلع بين شيطان.

ثانيهما: التحرز عن الكراهة المكانية كما يشعر به قوله ﷺ فى حديث ابى هريرة رضی اللہ عنہ فان هذا منزل حضرنا فيه الشيطان فاين فيه الدلالة على كون التأخير للكراهة الزمانية وانها مفسدة للفرض.

لانا نقول: حضور الشيطان لا يصلح مانعاً اذ قد عرض للنبى ﷺ فى صلوته فلم يخرج منها حتى اتمها وقال لو لا دعوة اخينا سليمان علیہ السلام لاصبح موثقا يلعب به ولدان المدينة و الحديث مشهور فى الصحاح فاستحال ان يكون التأخير لذٰلك سيما و فى حديث ابى قتادة رضی اللہ عنہ انه اخر الصّلوة الى ان ارتفعت الشمس ثم صلاها (و فى حديث عمران بن حصين برواية الحسن ثم انتظر حتى استعنت الشمس وفى حديث نافع بن جبير عن ابيه ثم قعدوا هنيهةً كما مر فى المتن) ففيه ان تأخيره انما كان ليحل وقت الصلوة لا لما سواه كذا فى المعتصر من المختصر. (ج ۱، ص ۴۵) و قد صرح بذٰلك ابن عباس رضى الله عنهما كما سيأتى و قال فلم يصل حتى ارتفعت و كان سبب التأخير عنده التحرز عن كراهة الوقت فقط و الصحابى اعرف بعلة فعل الرسول ﷺ من غيره وبا لجملة فان الكراهة المكانية لا تصلح سببا للتأخير و انما يستحب التحول لاجلها الى مكان آخر اذا وجد مسوغ للتاخير مستقل و ليس هو هناك الا الكراهة الزمانية فحسب فتم ما قلنا ان تأخيره ﷺ قضاء الصلوة الى ارتفاع الشمس مع وجوبه على الفور دليل على كون الوقت غير صالح للفرض

فان قيل: سلمنا ان سبب التأخير هو الكراهة الزمانية ولكن فيه احتمالان

الاول: ما قلتم اى الكراهة الشديدة التى لا تجتمع مع الصحة.

والثانى: الكراهة الخفيفة وهى ليست كذٰلك كما لا يخفى.

قلنا: من ابتلى ببليتين يختار اهونهما و قد اختار النبى ﷺ تأخير الصلوة الى ارتفاع الشمس فثبت ان

---

۱ - قلت وهذا القيد يدل باعتبار مفهوم المخالفة وهو معتبر فى كتب القوم وان لم يكن معتبراً عندنا فى الكتاب و السنة على ان الفوائت لو كانت اقل من هذا الحد لا يجوز تأخير ادائها قاله الشيخ. ۱۲ منه .

الکراھۃ فی قضاءھا عند طلوع الشمس اشد و ایضاً فالصلوۃ محل الاحتیاط و ھو فیما قلنا فانا اذا حکمنا بالفساد یکون قضاء تلک الصلوۃ فرضاً اذا حکمنا بالکراھۃ الخفیفۃ لا یکون القضاء فرضاً فقلنا بالکراھۃ الشدیدۃ التی لا تجتمع مع الصحۃ و یؤیدنا منع بعض الصحابۃ عن قضاء الفجر فی ھذا الوقت قبل ارتفاع کما سیأتی.

فان قیل: ورد النھی بعد صلوۃ الصبح الی ان تطلع الشمس و بعد الشمس و بعد صلوۃ العصر حتی تغرب و خص بالتطوع اتفاقا و صح قضاء الفائتات فیھما فلیکن النھی فی ھذہ الاوقات کذلک.

قلنا: النھی فیھما لمعنی فی الصلوۃ بدلیل ان من صلی الصبح او العصر لیس لہ ان یصلی فیھما التطوع و من لم یکن صلاھما لہ ان یصلی فیھما. (ای رکعتین تطوعاً قبل صلوۃ الصبح و ما شاء من النوافل قبل العصر) و الوقت بالنسبۃ الیھما واحد و فی الاوقات الثلثۃ النھی لمعنی فی الوقت لقولہ تطلع بین قرنی الشیطان و نحوہ فافترقا فلا یجوز قیاس احدھما علی الآخر و اذا کان النھی لمعنیً فی الوقت لا یجوز فیہ صلوۃ اصلاً سواء کانت فرضاً او نفلاً او فائتۃً لانھا تستدعی وقتا صالحاً لھا و ھذہ الاوقات لا تصلح لھا للعلۃ التی ذکرھا النبی ﷺ و ھی عامۃ لا تختص بصلوۃ دون صلوۃ الا ان النفل یصح فیھا مع الکراھۃ لما ثبت فی الاصول ان النھی عن الافعال الشرعیۃ تستدعی مشروعیتھا فی الجملۃ و الا لم یکن النھی معناً و اما الفرض فلا یصح فیھا بصفۃ الفرضیۃ بل ینقلب نفلاً لان النھی عن الصلوۃ فی ھذہ الاوقات انما تستدعی المشروعیۃ فی الجملۃ لا علی صفۃ الکمال و یکفی لھا الصحۃ نفلاً کما لا یخفی لانہ من ادنی مراتب الصحۃ و الضروری انما یتقدر بقدر الضرورۃ و قد صرح فقھاؤنا رحمھم اللہ تعالی بانقلاب فرض الفجر نفلاً بطلوع الشمس من غیر فسادہ کما فی الدر المختار آخر باب الاستخلاف. (ج ۱، ص ۶۳۷)

و اورد: الحافظ فی الفتح علینا فقال و فیہ ای فی قولہ فان ھذا منزل حضرنا فیہ الشیطان رد علی من زعم ان العلۃ فیہ کون ذلک وقت الکراھۃ بل فی حدیث الباب انھم لم یستیقظوا حتی وجدوا حر الشمس و لمسلم من حدیث ابی ھریرۃ رضی اللہ عنہ حتی ضربتھم الشمس و ذلک لا یکون الا بعد ان یذھب وقت الکراھۃ آہ. (ج ۱، ص ۳۸۰)

قلنا: لا دلیل فیہ علی الارتفاع قبل الاستیقاظ اذ یحتمل ان تکون طلعت بحرارتھا کما ھو موجود بالحجاز فی حرھا الی الآن کذا فی المعتصر من المختصر (ص ۴۵) و لا بد من ھذا التأویل فقد روی عن ابن عباس رضی اللہ تعالی عنھما ما یدل علی استیقاظہ قبل الارتفاع اخرج النسائی بسند حسن و سکت عنہ قال ادلج رسول اللہ ﷺ ثم عرس فلم یستیقظ حتی طلعت الشمس او بعضھا فلم یصل حتی ارتفعت الشمس فصلی. الحدیث (ج ۱، ص ۱۰۲)

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

لايغرنكم الفجر المستطيل

# صبح صادق

## او تقريبًا د ټولې دنيا د لمونځ د وقتونو نقشه

* په دې رساله کښې د قران، حديث، فقه او دفلکيات قديمه اوجديده د حوالو په ذريعه او دعلماء کرامو د يـــوې لويې ډلې د مشاهداتونه ثابتيږي چه د لمونځ دوقتونو متعلق په عامو نقشو اوجنتريانو کښې دصبح صادق او ماسخوتن وقتونه غلط دي
* صبح صادق او په هغې کښې دعمومي غلطۍ ازاله.
* پخواني تحقيقات
* جديد حقيقات
* د ماسخوتن د وقت تحقيق
* د صبح صادق متعلق د حضرت مفتي محمد شفيع صاحب تر مشرئ لاندې د يوولسو علماء کرامو مشاهدات
* په مشاهده کښې د غلط فهمي اسباب
* د صبح صادق متعلق مغالطې وجوهات
* د ۶۰ عرض البلد تر شمالي او جنوبي پورې د لمونځ د وقتونو نقشه
* د پاکستان، ايران، سعودي عربستان، افغانستان او هندوستان د مشهورو ولاياتو او ښارونو د لمونخونو وقتونه.
* په سنه (۱۳۸۸ هـ) کښې مؤلف لره د لمونځ په عامو نقشو کښې د صبح صادق او ماسخوتن له وقت سره متعلق خبردارې وشو او له هغه وقت نه يې دنورو علماء کرامو هم دې طرف ته د متوجه کولو کوشش شروع کړو.
* په ربيع الاول سنه (۱۳۸۹هـ) کښې دا تحقيق دتحقيق مسائل جديده کراچي دمجلس د متفقه فيصلې نه وروسته په مختصر ډول فقط په خلورو صفحو کښې خپور شو.
* بيا په مختلفو وقتونو کښې په دې کښې اضافې کيدلې او دصحيح وقتونو نقشې هم په کښې درج شوې
* په ربيع الاخر کال (۱۳۹۰ هـ) کښې حضرت مفتي شفيع صاحب د يوولسو علماء کرامو دډلې سره يوځاى تر درې ورخوپورې دخپلو ذاتي مشاهداتو اوسترګو ليدلې حال وليکلو.
* په ذي القعده کال (۱۳۰) کښې حضرت مفتي محمد شفيع صاحب د دې په تائيد کښې فتوى وليکله.
* په رمضان کال (۱۳۹۱) کښې مفتي محمد شفيع صاحب د سحر او افطار د وقتونو په نقشه کښې د ((پخوانيو وقتونو د سحر انتهاء احتياطًا او د جديدو وقتونو د سحر د اذان وقت)) عنوان لاندې فتوى شائع کړه.
* په ذي القعده سنه (۱۳۹۳هـ) کښې مجلس تحقيق د دې خبرې دوباره تائيد وکړو
* د مجلس تحقيق اول تصديق اوبيا تر درې ورخو پورې مشاهدات اوبيا وروسته له دويم توثيق نه په کال (۱۳۹۳هـ) کښې مفتي محمد شفيع صاحب او مولانا محمد يوسف بنوري صاحب له دې تحقيق نه رجوع وکړه ليکن د مؤلف په دريافت باندې هم هغوئ دهغې وجه ونه ښودله، د هغوئ ليکل بعينه په کتاب کښې نقل کيږ او د ضرورت په اندازه په هغې تبصره هم کيږي
* په ربيع الاول کال (۱۳۹۴هـ) کښې د تحقيق او څيړنې د خلاصې اضافه وشوه

# د څېړنې خلاصه

۱. په دې څېړنې کښې له مختلفو حوالو څخه دا ثابته شوې ده چه په زړو نقشو کښې ورکړ شوي د صبح صادق په وخت لمر له أفق څخه ۱۸ درجې کښته وي بیا د څو حوالو له مخې ثابته شوه چه تر أفق لاندې د لمر په ۱۸ درجو کښې صبح کاذب وي او صبح صادق ۱۵ درجې تر افق لاندې وي. دغو مصنفینو د دې تصریح هم کړې ده چه هغو دا اصول له ګڼو مشاهداتو څخه وروسته ټاکلي دي.

۲. د حضرت مفتي محمد شفیع په مشري کښې یوولسو علماوو تر دریو ورځو پورې له مشاهداتو څخه د حضرت مفتي صاحب خپل لیکل شوی روئیداد او د هغه نتائج دومره څرګند او بدیهي دی چه تر دې وروسته د شک او شبهې هیڅ ګنجائش نه پاتې کیږي. له دې څخه پورته بل کوم دلیل کیدلی شي. ﴿فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ﴾.

۳. دا خبره له احادیثو او فقهې څخه ثابته ده او په دې باندې د ټول امت اجماع ده چه د صبح کاذب رڼا له اُفق څخه مستطیل وي او صبح صادق معترض (شمالاً جنوباً خپریدنکی) وي او د بیروني په قول سره د نیمې دائرې شکل جوړیږي. دې معیار لره په نظر کښې نیولو سره هر سړی د مشاهدې له مخې دا فیصله کولی شي چه د زړو نقشو په وخت باندې د ښکاریدونې رڼا صبح کاذب دی ځکه چه دا به مستطیل وي. د حضرت مفتي صاحب د پخپله لیکل شوي روئیداد مطابق هم په دې وخت کښې ټنډو آدم او کراچۍ کښې اوږده رڼا په نظر راغله.

په فلکیات قدیمه کښې هم د دې تصریح شته چه په دې وخت کښې ظاهریدونکې رڼا مستطیل وي. هغو دافیصله له رصدګاه څخه تر مشاهداتو وروسته کړې ده. چه کله د دې رڼا له اوږدوالي څخه پلنوالی په زیاتیدو شي نو په دې وخت کښې به د صبح صادق ابتداء وي کوم وخت چه به زما د نقشې مطابق وي لکه څرنګه چه د ټنډو آدم په مشاهداتو کښې وشول.

٤ - الله تعالی د صبح صادق ښکاره علامه دا بیان کړې ده چه د سهار سپین تار له تور تار څخه فرق متمیز شي (فرق ئې وشي) دا سپین او تور تارونه د زړو نقشو په وخت باندې تاسو ته به چیرته په نظر درشي. ۱۵درجې تر افق لاندې وخت د سهار رڼا او تر هغه لاندې د افق د تیاره په مقام په اتصال باندې شمالاً او جنوباً د سپینو او تورو تارونو صورت تر سترګو کیږي چه مطلع صاف نه وي نو دا مشاهده لږ نوره هم په خنډ سره کیږي.

۵. دحدیثو، فقهې او لغت څخه دا ثابته شوې ده چه د صبح صادق په ابتداء کښې لږ غوندې سوروالی ګډ وي. د زړو نقشو په وخت باندې به تاسو ته خالص سپین والی په نظر درشي. د سوروالي احساس له ۱۵ درجو څخه مخکښې تر افق لاندې په هیڅ حال کښې هم نه وي او د مطلع

د نه صفا والي په صورت کښې له ۱۵ درجو تر افق لاندې څخه هم وروسته وي.

۶. د حديثو، فقهې او فلکياتو په حوالو سره ليکل شوي دي چه له صبح صادق څخه څه مخکښې د صبح کاذب رڼا ښکاريږي کوم چه تر صبح صادق پورې باقي پاتې کيږي. په فقهې او فلکياتو کښې دا وضاحت هم شته چه له صبح صادق څخه يو اځې درې درجې مخکښې صبح کاذب تر سترګو کيږي. همدارنګه دا چه صبح کاذب په هر موسم کښې وي. د زړو نقشو له وخت څخه مخکښې متصل تاسو ته هيڅکله رڼا تر نظر نه درځي. د فلکيات جديده او قديمه ماهرين ټول په دې باندې متفق دي چه له دې وخت څخه مخکښې متصل په افق باندې هيڅ رڼا نه وي، د ټنډو آدم او کراچۍ له مشاهداتو په اړه د حضرت مفتي صاحب په روئيداد کښې هم د دې تصريح موجوده ده چه په دې وخت باندې هيڅ ډول رڼا نه وه. له دې څخه هم ثابته شوه چه په زړو نقشو کښې د صبح کاذب وختونه دي، له دې وخت څخه ډير مخکښې د شپې په مختلفو برخو کښې، په مختلفو ځايونو باندې، مختلفو زمانو کښې په مختلفو نومونو څو قسمه رڼا ګانې ظاهريږي او له نومورې وخت څخه ډير مخکښې ختميږي هم. لهذا په دغو کښې په هيڅ يوه باندې هم د صبح کاذب نومورې تعريف نه صادقيږي. کله کله له کهکشان او داسې نورو څخه په دې وخت کښې د رڼا د موجودوالي مغالطه کيدلی شي چه تفصيل ئې د «د غلط فهمۍ اسباب» تر عنوان لاندې راغلی دی.

۷. پورتنيو ذکر شويو رڼا ګانو څخه يوې ته زوډيکل لائټ ويل کيږي. د دې په اړه جارج ايبل نومي سړي ليکلي دي چه "چه دې ته کله کله صبح کاذب هم ويل کيږي"، ليکن د لاندينيو وجوهاتو له مخې دې رڼا ته د شرعې په اصطلاح کښې صبح کاذب ويل صحيح نه دي.

۱- دا تر صبح صادق پورې نه پاتې کيږي.

۲- دا رڼا له صبح صادق څخه درې درجې مخکښې د را برسيره کيدو په ځای ډير مخکښې شروع کيږي بلکه له دريو درجو څخه ډير مخکښې پای ته رسيږي.

۳- دا رڼا په ټول کال کښې يو اځې تر دوو مياشتو پورې ښکاريدونکې ده.

برسيره پر دې قطع نظر له دې څخه چه زوډيکل لائټ لره شرعا صبح کاذب ګڼل صحيح دي او که نه. د بحث لاندې مسئلې صحيح حل په دې فيصلې باندې موقوف دی چه د زړو نقشو په وخت باندې ښکاريدونکې رڼا باندې د صبح صادق تعريف صادقيږي او که د صبح کاذب؟ د متقدمينو د تصريحاتو او مشاهداتو په اړه د حضرت مفتي صاحب په ليکنه کښې تر مکملې څرګندونې پرته دصبح صادق اوصبح کاذب د پورتنيو ذکر شويو نښانو په نظر کښې ساتلو سره هر سړی چه کله هم وغواړي مشاهده وکړي نو دا قطعي فيصله کولی شي چه دا رڼا د صبح کاذب دی نه د صبح صادق له پورتنيو خبرو څخه ثابته شوه چه زړې نقشې د قرآن، حديث، فقهې، اجماع امت، لغت

فلکیات جدیده او قدیمه او د مشاهداتو په خلاف دي.

**خبرداری:** په ذکر شوی تحقیق باندې دا اشکال مخته رَاتلی شي چه دا وخت افق دومره روښانه کیږي چه هر لیدونکی ئې ورځ ګڼي.

د دې ځواب دا دی چه د همدې لپاره دې ته صبح صادق ویل کیږي کوم چه شریعت د ورځې په حکم کښې ګڼلی دی. او که چیرته دا مطلب وي چه له دې وخت څخه مخکښې هم رڼا تیزیږي نو د دې ځواب دا دی چه په رڼا کښې کمی زیاتی یو نسبي امر دی چه شریعت دې ته اعتبار نه دی ورکړی. ښه پوه شی چه شرعاً د صبح صادق دارومدار د رڼا په زیاتوالي پورې نه دی بلکه د هغې په طول او عرض (اوږدوالي او پلنوالي) پورې دی. رڼا اګر که هر څومره زیاته شي لیکن تر څو پورې ئې چه پلنوالی تر اوږدوالي زیاته نه شي هغه صبح کاذب دی. که چیرته صبح کاذب لره د ورځ ګڼلو غلطي عامه نه وای نو نبي کریم ﷺ به دا خبره نه وای کړي چه "تاسو دې فجر مستطیل په دوکه او فریب کښې وا نه چوي". رشید احمد ۸ ربیع الآخر ۹۴ هجری

## د دې نه علاوه :

۱--- د صبح کاذب او صبح صادق چه کوم معیار ما لیکلی دی بعینه د دې مطابق د امداد الاحکام لومړی جلد ص۳۲۳ کښې حضرت حکیم الامت او مفتي عبد الکریم ګمتلهوي رحمهما الله فتوی او په ص۳۰۹ کښې د مولانا ظفر احمد عثماني رحمه الله فتوی لیکلې ده، په ص ۳۰۹ کښې د قلم د سهو له مخې د کاذب په ځای صادق لیکل شوی دی.

۲--- د عربو ! مراکش له علماوو څخه تر مکاتبت وروسته په سنه ۱۴۰۲ هجري کښې معلومه شوه چه مراکشي فلک پوهانو په نزد د صبح صادق په وخت کښې د °۱۸، °۱۹، °۲۰ درجو تر افق لاندې قولونه هم راغلي دي، د هغو د ابطال لپاره د بنده لومړنی لیکنه کافي ده، د کوم نوي بحث ضرورت نشته

بسم الله الرحمن الرحيم

له پاکستان او هندوستان څخه خپریدونکې عامې جنترۍ او د لمانځه د وختونو نقشې د ګرینویچ له شاهي رصدګاه (هغه عمارت چه د قوي دوربین په ذریعه د فلکیاتو او داسې نورو شمسي نظامونو مشاهده پرې کیږي کوم چه په لندن کښې موقعیت لري) څخه د خپریدونکی کتاب ناتیکل المینک له مخې مرتب کیږي. په دغو وختونو کښې یوه وخت ته ایسترونومیکل توائیلائټ ویل کیږي. په دې وخت کښې لمر له اُفق څخه اتلس درجې لاندې وي. د فلکیاتو نوي او

زاړه ماهرين په دې باندې متفق دي [۱] چه له دې وخت څخه مخکښې پوره تياره وي چه د ليدو وړ له کوچني څخه کوچنی ستوری (پانچ ميگنيټيوډ) هم په نظر راځي. تر دې وروسته پرله پسې صبح کاذب شروع کيږي. د هيئت د مخکښينيو علماوو برسيره د فقهې او فلکياتو دواړو ماهر او پوه عالم علامه برجندي رحمه الله هم د دې تصريح کړې ده چه دا صبح کاذب دی او صبح صادق له دې څخه درې درجې وروسته وي. علامه شامي رحمه الله په کتاب الصلوة او کتاب الصوم کښې دوه ځايه ليکلي دي چه د صبح کاذب او صبح صادق تر منځ درې درجې فرق وي ليکن د لمانځه د وختونو مرتب کوونکي حضرات په دې غلط فهمۍ کښې لويدلي دي [۲] چه هغو ايسټرو نو ميکل ټوائيلائټ (اتلس درجې تر اُفق لاندې) لره صبح صادق په ګڼلو سره د دې مطابق د سهار او ماسخوتن وختونه ټاکلي دي په داسې حال کښې چه په حقيقت کښې دا د صبح کاذب پيل دی. د ټولې دنيا منل شوی او متفق عليه پورتنی حقيقت لره بنده څو څو ځلې تر څو ورځو پورې په ډيرو د تجربې بصيرت په خاوندانو مې مشاهدې هم وکړې [۳] او پخپله هم د بصيرت له ګڼو خاوندان مې له ځان سره کړل او څو ځله مې مشاهده وکړه. يو ځل مو د بحري بيړۍ دوربين هم استعمال کړ هر ځل همدا ثابته شوه چه په جنتريانو کښې تر ورکړ شوي وخت پورې مکمله تياره وي او دا وخت صبح کاذب شروع کيږي. د شفق د ډوبيدو په پوره احتياط سره له مشاهدې څخه هم د پورتني تحقيق تائيد وشو. دا مشاهدات د کراچۍ له ګرد و غبار څخه د ډکې فضا څخه د باندې په وتلو سره تر سره شوي دي. لکه څرنګه چه په سهار کښې مستطيل سپين والی معتبر نه دی همدارنګه په ماسخوتن کښې هم [۴] سپين مستطيل شفق اعتبار نه لري بلکه د مستطير (پلن) سپين شفق په ډوبيدو سره د ماسخوتن وخت شروع کيږي.

لنډه دا چه په جنتريو کښې چه د صبح صادق کوم وخت ورکړ شوی دی هغه په حقيقت کښې د صبح کاذب وخت دی او صبح صادق له دې څخه درې درجې وروسته وي. د خطِ استواء په ځای باندې په معتدلو ورځو کښې صبح صادق له صبح کاذب څخه دولس دقيقې وروسته راځي او ماسخوتن د مستطيلې سپينې رڼا له ډوبيدو څخه دولس دقيقې مخکښې راځي. په نورو ځايونو

---

۱ - د نوي او زاړه تحقيقاتو تفصيل په راتلونکي "حواله جاتو" تر عنوان لاندې راځي

۲ - متقدمينو په قصد سره د صبح کاذب د وختونو د تخريج معمول درلود تر څو چه خلک د صبح صادق لپاره تيارواوسي ددې تفصيل په راتلونکي (د صبح صادق په اړه د مغالطې وجوهات) ترعنوان لاندې راځي

۳ - دحضرت مفتي محمد شفيع رحمه الله صدر دار العلوم کراچۍ په مشرۍ کښې د مشهورو علماء کرامو د يوې لويې ډلې د مشاهداتو رونيداد (ليکلې کارکردګي) دحضرت مفتي صاحب پخپل قلم سره مخکښې راځي

٤ - د دې حوالې هم مخکښې راځي

کښې او په نورو ورځو کښې له دې ځخه هم زیات فرق وي. چنانچه په کراچۍ کښې صبح صادق په نقشو کښې له ورکړ شویو وختونو ځخه په مختلفو موسمونو کښې له ۱٤ ځخه تر ۱۹ دقیقو پورې وروسته وي. په نورو ځایونو کښې (چه عرض ئې له کراچۍ ځخه زیات دی) له دې ځخه به هم زیات فرق وي. په رمضان المبارک کښې په جنتریو کښې له ورکړ شوي وخت ځخه یواځې لس دقیقې وروسته د کراچۍ په عامو جوماتونو کښې د سهار جماعت درېږي یعني په رمضان المبارک کښې د سهار لمونځ د وخت له شروع کیدو ځخه مخکښې ادا کیږي، او آذانونه خو تقریبا همیشه له وخت ځخه مخکښې ورکول کیږي.

## د لمانځه د وختونو د نقشو او جنتریو له خپروونکو حضراتو ځخه هیله

۱- په راتلونکې خپرونې کښې د ماسخوتن او سهار د وختونو تصحیح وکړئ.

۲- په ځو جنتریو کښې د مختلفو ځایونو د فرق فهرست مې تر سترګو شو. د وخت دا فرق یواځې د طول البلد له حسابه وي په داسې حال کښې چه له نصف النهار ځخه پرته په نورو ټولو وختونو باندې د عرض البلد اثر هم لوېږي او د یوه عرض البلد وختونه له بل عرض البلد سره ډیر مختلف وي. لهذا په راتلونکي کښې داسې فهرست مه شائع کوی او که نه نو کم تر کمه دا خبرداري ضروري ورکړی چه د وخت دا فرق یواځې د نصف النهار فرق دی. نور وختونه په دې باندې قیاسول صحیح نه دي. د نورو وختونو د تخریج قاعده بیله ده.

۳- په یوې جنترۍ کښې ئې د مظاهر حق نقشه د شیخ عبد الحق خوا ته منسوب کړې ده په داسې حال کښې چه دا کتاب د نواب قطب الدین دی او نقشه د خیر الله منجم (نجومي) ده. بیا ناقل هم د دې نقشې د وختونو په پوهیدو کښې غلطي کړې ده. ځلورمه غلطي دا چه دې نقشې لره ئې په کراچۍ باندې تطبیق کړې ده په داسې حال کښې چه دا نقشه د دهلي لپاره ده. دې نقشې لره په کراچۍ یا کوم بل ښار باندې تطبیقول هیځکله صحیح نه دي.

٤- په هرې جنترۍ باندې د دې خبرداری لیکل ضروري دي چه "په ټولو وختونو کښې درې یا ځلور دقیقې احتیاط ضروري دی" ځکه چه دا وختونه په حسابي طریقې سره مرتب کیږي. د کوم ځای په طول او عرض کښې د فرق پر بناء په دغو وختونو کښې معمولي فرق لویدلی شي. برسیره پر دې د هر کال وختونه د بل کال له وختونو سره څه نا څه مختلف وي او بیا هر ځلور کاله وروسته مخکښېنی وخت بیرته را ګرځي. د هر کال په وختونو کښې له دې معمولې غوندې فرق ځخه د نظر تراړولو پرته هیڅ یوه دائمي نقشه نه شي تیاریدلی.

رشید احمد از دار الافتاء و الارشاد ناظم اباد کراچي

بنده محمد شفيع دار العلوم كراچي

محمد يوسف بنوري عفا الله عنه ، ولي حسن غفر له

## د قديمه تحقيقاتو (مخكښينيو څېړنو) حواله جات

۱- قال فی التصریح اذ قد علم بالتجربة ان انحطاط الشمس اول الصبح الکاذب واٰخر الشفق ثمانية عشر درجة. (تصريح ص۶۹)

۲- و فی حاشية ابی الفضل محمد حفيظ الله رحمه الله على التصريح و اعلم ان المراد من الانحطاط فی الجانبين انحطاط مركز الشمس عن الافق الشرقی او الغربی و هو قدر ثمانية عشر درجة و يقطعه الفلك الاعظم فی ساعة و خمس ساعة و هٰذه مجموع الصبحين الصادق و الكاذب و من ذٰلك المجمو خمس ساعة حصة الصبح الكاذب و الساعة الواحدة حصة الصبح الصادق و اما بيان تفريقها اليهما ففی ذكره اطناب لا يسعه الرسالة. (تصريح ص۶۹)

۳- و فی شرح الجغمينی و قد عرف بالتجربة ان اول الصبح و اٰخر الشفق انما يكون اذا كان انحطاط الشمس ثمانية عشر جزءًا ففی بلد يكون عرضه اقل من تمام الميل بثمانية عشر جزءًا يتصل الشفق بالصبح الكاذب اذا كانت الشمس فی المنقلب الصيفی. (شرح چغمينی ص۱۷۵)

٤- و نقل العلامة عبد الحكيم اللكنوی رحمه الله فی حاشيته على شرح الچغمينی عن العلامة عبد العلی البرجندی رحمه الله فی شرح (قوله اذا كان انحطاط الشمس ثمانية عشر جزءًا) هذا هو المشهور و وقع فی بعض كتب ابی ريحان انه سبعة عشر جزءًا و قيل انه تسعة عشر جزءا و هذا فی ابتداء الصبح الكاذب و اما فی ابتداء الصبح الصادق فقد قيل ان انحطاط الشمس حينئذ خمسة عشر جزءا و الله تعالىٰ اعلم. (شرح چغمينی ص۱۷۵)

۵- قال البيرونی [۱] وذٰلك هو الفجر و هو ثلاثة انواع (ثم قال بعد ذكر الانواع الثلاثة) و بحسب

---

۱ - بعضې خلقوته دا وهم کېږی چه په علامه بیرونی ۸ / لاندې له افق نه چه کوم معیار ښودلې دې هغه له فجر صادق سره تعلق لری. د دې په بطلان باندې دا لاندې شواهد دی

۱ - بیرونی اول د فجر تعریف کړې دې، بیا یی دهغې درې قسمونه بیان کړی دی. بیا یی د فجر د ابتداء معیار ښودلې دې. له هغې نه صفا دا ښکاری چه دا د فجر د اول قسم یعنی فجر کاذب وقت دې. دا د

الحاجة الی الفجر و الشفق رصد اصحاب هٰذه الصناعة امره فحصلوا من قوانین وقته ان انحطاط الشمس تحت الافق متی کان ثمانیة عشر جزءا کان ذٰلك وقت طلوع الفجر فی المشرق و وقت مغیب الشفق فی المغرب ولما لم یکن شیئا معینا بل بالاول مختلطا اختلف فی هٰذا القانون فراٰه بعضهم سبعة عشر جزءًا. (القانون المسعودی لابی ریحان البیرونی ج۲، ص۹۴۹)

---

سیانی له عبارت نه د ښکاره کیدلو باوجود دنورو فلکیینو له طرز تحریر سره هم موافق دي ځکه چه هغه له ۸° لاندې له افق نه دمطلق فجر تعبیر کولو سره فجر کاذب مراد کوی، د فجر صادق په بیان کښې د بیرونی قول «وتنعقد به شروط العبادات» نه دا نه ثابتیږی چه د دريِ قسمونو د بیان د ختمولونه وروسته چه کوم دسحر د ابتداء معیار بیان شوې دي هغه د فجر صادق دې. که چیرته د عباداتو د شرطونو په نظر کښې نیولو سره د معیار بیان مقصود وی نو سور شفق د غروب معیار دې هم بیان کړې شی. لکه څنګه چه «واختلاف الائمة فی اسم الشفق علی ایهما یقع اوجب ان یتنبه لهما معًا» نه دهغې علم اهمیت هم بیان کولې شی.

۲ - بیرونی د فجر صادق تعریف داسې کړې دې چه: «منبسط فی عرض الافق مستدیر کنصف دائرة» ۸° لاندې د افق نه د نیمې دائرې په شکل کښې هیڅکله په نظر نه راځی، چه کله غواړئ او چیرته غواړئ مشاهده یی کړئ اوفیصله وکړئ. د فلکیاتو ټول ماهرین په دغه وقت کښې ښکاریدونکې رڼا مستطیله ښودلې ده، او د یوولس ۱۱ علماء کرامو د دريِ ورځو مشاهداتو نه هم دغه رڼا مستطیل په نظر راتله. لکه څنګه چه د حضرت مولانا مفتی محمد شفیع رحمه الله د لاس په لیکلو کښې موجوده ده.

۳ - د بیرونی عبارت: «وبحسب الحاجة الی الفجر والشفق رصد اصحاب هذه الصناعة امره فحصلوه من قوانین وقته - الی قوله - اختلف فی هذا القانون فراٰه بعضهم سبعة عشر جزءًا» نه ثابته شوه چه هغه په خپلې ذاتی مشاهدې او دهغې په بناء باندې په خودگویی فیصله نده لیکلې بلکه د نور د فلکیاتوماهرینو د مشاهداتو اودهغوئ مختلف اقوال یی نقل کړی دی او دا یی ثابته کړې ده چه نور ټول دفلکیاتو ماهرین دیته فجر کاذب وایی.

۴ - علامه برجندی رحمه الله تعالی له بیرونی نه ۱۷° زیر اُفق باندې د صبح کاذب قول نقل کړې دې. له دې نه ثابته شوه چه هغه هم دبیرونی دا عبارت له صبح کاذب سره متعلق کړې دې. د برجندی مکمل عبارت په تیرو صفحاتو کښې وګورئ.

۵ - د بیرونی له ذکر شوی عبارت نه ظاهراً او دهغه د کتاب «تفهیم» عبارت «ثم یتلوه – الصبح الکاذب - الفجر الصادق معترضًا علیه منبسطًا فی الافق» کښې له «معترضًا علیه» جملې نه صراحةً ثابته شوه چه د بیرونی په نیزد باندې هم له مخکښې له صبح صادق نه متصل د صبح کاذب وجود ضروری دې. حالانکه ۸° زیر افق نه مخکښې متصل د پخوانو اومعاصرو فکلیاتو په اجماع سره هیڅ قسم رڼا نوی. دحضرت مفتی محمد شفیع رحمه الله په مشرئ کښې د یوولس ۱۱ علماء کرامو په مشاهداتو کښې هم له دې نه وړاندې کومه رڼا په نظر نده راغلې

۶ ۔ قال المحقق الطوسی فی الزبدۃ فی الباب الرابع و العشرین بعد ذکر الانواع الثلاثۃ من الفجر و الشفق و قد علم بالرصد ان اول الفجر و اٰخر الشفق یکون وقت انحطاط الشمس عن الافق ثمان عشرۃ درجۃ من دائرۃ ارتفاعها.

و قال فی تبصرتہ فی الفصل التاسع من الباب الثالث و قد عرف بالتجربۃ ان انحطاط الشمس عند اول طلوع الفجر ثمانیۃ عشر جزءًا.

و قال فی بست باب: نظیر درجۂ آفتاب را بر مقنطرۂ ہجدہم درجہ نہم و مرئیٰ را نشان کنم پس بر افق غربی نہم و مرئیٰ را نشان کنم و میان ہر دو نشان بشمرم و بر پانزدہ قسمت کنم آنچہ بیرون آید ساعات مستوی باشد میان طلوع صبح (کاذب، شرح) و طلوع آفتاب (الی قولہ) و اگر نظیر درجۂ غربی بود بیشتر از ہژدہ درجہ ہنوز صبح بر نیامدہ باشد و اگر کمتر از ہژدہ باشد صبح برآمدہ باشد و اگر ہژدہ درجہ بود اول وقت طلوع صبح ہست.

(بست باب للمحقق الطوسی باب نہم)

۷ ۔ اذا صارت الشمس قریبۃ من الافق بقدر ثمانیۃ عشر جزءًا (الی) یری البیاض الطویل فی جناب المشرق ھو یسمی بالصبح الکاذب کأن کان الافق بعدہ مظلما یکذب کونہ نور الشمس والمنتشر فی الافق بعدہ بزمان یسمی بالصبح الصادق لکونہ اصدق ظھوراً من الاول قیل ابتدائہ حین انحطاط الشمس خمسۃ عشر جزءًا. (تحفۃ اولی الالباب شرح بست باب للعلامۃ عبد الباقی الکتوازی)

۸ ۔ اعلم انہ قد علم بالتجربۃ ان اول الصبح الکاذب انما یکون اذا کان انحطاط الشمس من الافق الشرقی ثمانیۃ عشر جزءًا. (شرح لم بر حاشیۂ بست باب)

۹ ۔ ذکر العلامۃ المرحوم الشیخ خلیل الکامل فی حاشیتہ علی رسالۃ الاسطرلاب لشیخ مشائخنا العلامۃ المحقق علی اُفندی الداغستانی ان التفاوت بین الفجرین و کذا بین الشفقین الاحمر و الابیض انما ھو بثلث درج. (شامیۃ ج۱، ص۳۳۲)

۱۰ ۔ بدانکہ صبح دو باشد یکی کاذب کہ ہنگام انحطاط بر ہژدہ درجہ از درجات دائرۂ ارتفاع مارہ بمرکز شمس سپیدی ضعیف و دراز باریک بر اجزاء کثیفہ سطح مخروط ظل زمین مسمی بلیل نمودار شود و او را کاذب

ازیں جهت گویند که فق تکذیبش می کند که دراں حال مظلم باشد (الی قوله) ودوم صبح صادق وآں روشنی نہار در افق شرقی باشد ہنگام انحطاط آفتاب پانزده درجه قاله البرجندی. (حاشیة مالابدمنه ص۲۹)

پورته د شرح چغمني له حاشيې څخه هم د برجندي عبارت نقل شو. علامه برجندي رحمه الله د فقهې او فلکیاتو دواړو منل شوی امام دی. په فلکیاتو کښې د ده ډير کتابونه شته لکه شرح مجسطي. شرح رساله اسطرلاب للطوي. شرح التذکرة النصيرية. حاشيهٔ شرح چغمني

(الفوائد البهية للعلامة عبد الحی اللکنوی ص۱۵ وهدية العارفين لاسمعيل پاشا ج۱،ص۵۸۶)

په فقهه کښې د ده تصنيف شرح نقاية ډيره مشهوره ده. علامه شامي. شيخ اسمعيل. نوح. حموي. ابن نجيم او فتال رحمهم الله غوندې مشهورو فقهاوو د ده تحقيقات نقل کوي

## د مخکښينيو تحقيقاتو د ژباړې خلاصه

۱- له تجربې څخه له شبهې پرته ثابته شوې ده چه د صبح کاذب ابتداء او د شفق په آخر کښې لمر له افق څخه اتلس درجې لاندې وي (تصريح ص۶۹)

۲ - له شرقي او غربي افق څخه د لمر د مرکز انحطاط مراد دی او هغه اتلس درجې دي. فلک اعظم دې مسافې لره په (۵/۱ = ۱) ساعت کښې وهي او دا د صبح صادق او کاذب دواړو مجموعه ده په دې مجموعې کښې (۵/۱) ساعته د صبح کاذب برخه ده او يو ساعت د صبح صادق برخه ده. د دې تقسيم يا ويش په تفصيل کښې تطويل (اوږدوالی) دی چه په دې رسالې کښې ئې گنجائش نشته (حاشيهٔ تصريح ص۶۹)

۳ - له تجربې څخه ثابته شوې ده چه د سهار ابتداء او د شفق انتهاء هغه وخت وي چه کله لمر له أفق څخه اتلس درجې لاندې وي لهذا چه د کوم ښار عرض له تمام الميل څخه اتلس درجې کم وي هلته انقلاب صيفي (د اوړي را گرځيدل) د ۲۲جون وخت شفق له صبح کاذب سره يو ځای کيږي (شرح چغمني ص۱۷۵)

۴ - دا (اتلس درجې تر افق لاندې) د صبح کاذب ابتداء ده او د صبح صادق د ابتداء په باره کښې بې له شبهې ويل شوي دي چه په دې وخت کښې لمر پنځلس درجې لاندې وي (حاشيهٔ شرح چغمني ص۱۷۵)

۵ - ابو ريحان بيروني د سهار د دريو ډولونو تر بيانولو وروسته فرمايي چه لمر کله اتلس درجې تر افق لاندې وي په دې وخت کښې د فجر (کاذب) ابتداء او د شفق انتهاء وي (القانون المسعودي ص۹۴۹. ج۲)

۶ - محقق طوسي د سهار او شفق د دريو ډولونو تر بيانولو وروسته ليکلي دي چه رصدگاه

څخه د مشاهداتو او تجرباتو څخه ثابته شوې ده چه د فجر ابتداء او د شفق انتهاء هغه وخت وي چه کله لمر له افق څخه اتلس درجې لاندې وي. (زبده، تبصره، بست باب)

٧ - چه کله لمر له افق څخه اتلس درجې لاندې وي په هغه وخت کښې د مشرق خوا ته يوه اوږده رڼا په نظر راځي هغې ته صبح کاذب ويل کيږي. له دې څخه څه وخت وروسته په اُفق کښې خپريدونکې رڼا ته صبح صادق ويل کيږي. داسې ويل کيږي چه د دې رڼا د ابتداء په وخت کښې لمر پنځلس درجې تر اُفق لاندې وي. (تحفه)

٨- ښه پوه شه چه له شک پرته د تجربې له مخې ثابته شوې ده چه د صبح کاذب د ابتداء په وخت کښې لمر اتلس درجې لاندې وي. (شرح لم)

٩- د صبح صادق او کاذب او شفق احمر او ابيض تر منځ د دريو درجو فرق وي. (شامي ج١. ص٣٣٢)

١٠- د صبح کاذب په وخت کښې لمر له اُفق څخه اتلس درجې لاندې وي او د صبح صادق په وخت کښې پنځلس درجې. (حاشيهٔ ما لا بد منه ص ٢٩ بحوالهٔ برجندي)

## تحقيقات جديده (نوې څيړنې)

١ - معيار الاوقات. د دې کتاب په سر پاڼه کښې دا ليکلي دي چه "مصنفه مولوي عبد الواسع صاحب پروفيسر دينيات کليه جامعه عثمانيه متفقه مجلس علماء منعقده محکمه صدارتِ عاليه سرکار عالي منظوره بارگاه خسروي جهان پناهي حيدر آباد دکن" له دې څخه ثابته شوه چه د دې کتاب په صحيح والي باندې د علماوو د يوه داسې مجلس اتفاق دی چه نواب حيدر خان د دکن متعين کړی وو. بيا نواب صاحب د دې کتاب څيړنې منظورې کړې. دا کتاب د خاص انجمن ترقي اردو. اردو پوهنتون کراچۍ کښې موجود دی. د دې کتاب په ١٤. ١٥، ٢٥. ٢٨ مخ کښې دا وضاحت موجود دی چه د صبح کاذب په وخت کښې لمر اتلس درجې او د صبح صادق په وخت پنځلس درجې لاندې وي.

٢- ايډ مرلټي مينول آف نيوي گيشن ص١٣٧، ج٢.

٣ - بيسک اير نيوي گيشن ډرلز.

٤ - ايسټرونوميکل افيميريز

٥- ناټيکل المينک

٦ - د ډائرکټر هائيډرو ګرافي نيول هيډ کوارټرز حکومتِ پاکستان کراچي لخوا راليږلې شوې خط[1]:

عہ مراسلہ ڈائرکٹر ہائیڈرو گرافی نیول ہیڈ کواٹرز حکومتِ پاکستان کراچی

HYDROGRAPHIC DIRECTORATE
NAVAL STAFF BRANCH
NAVAL HEADQUARTERS
KARACHI

D.O.No. HD/0102821.

13 October, 1970.

From:- Captain S.R. Islam, P.N.
Director of Hydrography.

Dear Sir,

Reference your letter dated 24-6-1970 and Mufti Rashid Ahmad's letter dated 7-10-1970.

The Nautical Almanac is a standard publication of the Royal Navy and its contents are extensively used for the computation of the rising and setting phenomena of the heavenly bodies and other astronomical information mainly connected with navigation. The accuracy of tables in the nautical almanac meets these requirements and is considered sufficient to cover the problems indicated by you From the nautical almanac of 1970 the times of sunrise and twilight have been calculated to compare your computations. The results are as under:-

| Place | Date | Stated time of صبح صادق | Calculated time when sun is 15° below horizon. |
|---|---|---|---|
| **Goth Fakir** (Lat.25° 46′N Long.68° 40′E) | 11.6.70 | 04 hrs. 19 min. (Zone + 5 hours) | 04 hrs. 20 min. (Zone + 5 hours) |
| **Karachi** (Lat.24° 52.5′N Long.67° 2.6′E) | 20.6.70 | 04 hrs. 30 min. | 04 hrs. 29½ min. |
| | 20.9.70 | 05 hrs. 17 min. | 05 hrs. 18 min. |
| | 20.12.70 | 06 hrs. 03 min. | 06 hrs. 02 min. |

2. The calculated time as given above is based upon the following data given in the Nautical Almanac (Page 258) and Admiralty Manual of Navigation Vol. II (Page 137) :-

EXTRACT from Nautical Almanac 1970 (Page 258)

Basis of the tabulations. At sunrise and sunset 16' is allowed for semi-diameter and 34' for horizontal refraction, so that the times given the Sun's upper limb is on the visible horizon; all times refer to phenomena as seen from sea level with a clear horizon.

عہ جدید تعلیم یافتہ طبقہ کے اطمینان کی خاطر ان محکموں سے تصدیق کروائی گئی ورنہ مجھے اسکی حاجت نہ تھی ۱۲ رشید احمد

صبح صادق ۱۲

[1] - د نوي تعليم يافته طبقې د اطمينان په خاطر د هغوئ د محکمو نه تصديق کول کيږي اوکه نه نو موږ ته دهغې هيڅ ضرورت نه وو (رشيد احمد عفي عنه)

At the times given for the beginning and end of twilight, the Sun's zenith distance is 96° for civil, and 102° for nautical twilight. The degree of illumination at the times given for civil twilight (in good conditions and in the absence of other illumination) is such that th brightest stars are visible and the horizon is clearly defined. At the times given for nautical twilight the horizon is in general not visible, and it is too dark for observation.

Times corresponding to other depressions of the Sun may be obtained by interpolation or, for depressions of more than 12° less reliably, by extrapolation; times so obtained will be subject to considerable uncertainty rear extreme conditions.

EXTRACT From Admiralty Manual of Navigation Vol.II. (Page 137).

Astronomical twilight. This is said to end or begin when the Sun's centre is 18° below the horizon, at which moment absolute darkness is assumed to begin or end so far as the Sun is concerned.

3. The times of صبح صادق or صبح کاذب and other requirements can be obtained from the above stated arguments according to the definitions of the terms.

4. A comparison of the times given by you for 22nd September and 22nd December, 1970 indicates that they relate to Astronomical twilight (morning) when the sun is 18° below the horizon. For 22nd June 1970 the time given is a little earlier.

5. The chart of time supplied by you has also been compared and the times given for صبح صادق as well as sunrise generally tally with other times calculated from the Nautical Almanac for Astronomical twilight and sunrise respectively.

Yours Sincerely

(S.R. ISLAM)
CAPTAIN PAKISTAN NAVY

Molana Ehtishamul Haq Thanvi,
56, Jacob Lines,
Karachi.

Copy to:- Mufti Rashid Ahmad
Daruliftae wal Irshad
Nazimabad,
Karachi.

۷- د ډایرکټر محکمۀ موسمیات حکومت پاکستان لخوا رالیږل شوې خط د مولانا احتشام الحق تهانوي صاحب په نوم:

(۷) مراسلہ ڈائرکٹر محکمہ موسمیات حکومت پاکستان بنام مولانا احتشام الحق تھانوی

PAKISTAN METEOROLOGICAL DEPARTMENT
Office of the Deputy Direc or, Climatology, Hydrometeorology
Oceanography, University Road, Karachi.

---

No. Cl-11(7)/68

Karachi,
dated the 18th September, 1970.

To

Maulana Ehtishamul Haq Thanvi,
56, Jacob Lines,
Karachi.

Dear Sir,

Kindly refer to your letter dated the 21st June, 1970. Replies to the queries at the end of page 4 of the report received alongwith your letter, are given below seriatrim:

1. We have no comments to offer.

2. The time for the begining of moring astronomical twilight for 12th June is 4h 11m. The begining of morning astronomical twilight is taken to be the time when the Sun is 18° below horizon. We have no comments to offer on the timings in the different charts given, the timings of Sub-he-Sadiq for Karachi.

3. When the Sun is 18° below horizon, all light from the sun is cut off.

4. This Department has not undertaken any work on the determination of the timings of Sub-he-Sadiq according to the definition given in the 'note' at the end of page 4 of the Report enclosed with your letter. These timings can, however, be calculated for any location if the phenomena Sub-he-Sadiq is precisely defined with respect to the position of the Sun below horizon. With out this the calculation of the timings will not be possible and as you have yourself noticed, will be subject to the personal error of the observer.

Delay in the reply to your letter is deeply regretted.

Yours faithfully,

( T.H. SIDDIQUI ) 18/9/70
for DIRECTOR

٨ . خط له بنده رشيد احمد بنام ډپټي ډائرکټر محکمهٔ موسميات حکومت پاکستان کراچي

بسم الله الرحمٰن الرحيم

ښاغلی محترم ډپټي ډائرکټر صاحب محکمهٔ موسميات پاکستان

السلام عليکم و رحمة الله و برکاته. د لاندينو امورو په اړه د خپلې محکمې تحقيق وليکئ

۱ . د کراچۍ په عامو نقشو کښې د صبح صادق وختونه دا دي: ۲۲جون ٤ بجې ۱۱ دقيقې، ۲۲ستمبر ۵ بجې ۳ دقيقې، ۲۲ دسمبر ٥ بجې ٤۹ دقيقې. په دې وخت کښې لمر له أفق څخه څومره درجې لاندې وي؟

۲ . چه کله لمر له أفق څخه اتلس درجې لاندې وي په دې وخت کښې په أفق باندې کوم ډول رڼا وي او که نه وي؟

۳ . د کراچۍ لپاره د صبح صادق (پنځلس درجې تر افق لاندې) وختونه وليکئ. فقط و السلام عليکم

رشيد احمد ۳۰ رجب سنــ۱۳۹۰ هجري، مطابق ۲ اکتوبر سنــ۱۹۷۰ء

دار الافتاء و الارشاد ناظم اباد کراچي

د خط ځواب له طرف د اين اې قريشي ډپټي ډائرکټر محکمهٔ موسميات حکومت پاکستان کراچي څخه

No.C1-11(17)/68/1667
PAKISTAN METEOROLOGICAL DEPARTMENT
OFFICE OF THE DEPUTY DIRECTOR
CLIMATOLOGY HYDROMETEOROLOGY &
OCEANOGRAPHY

From:- N. A. Qureshi,
Deputy Director.

To :- Mufti Rashid Ahmed,
Daruliftae wal Irshad
Nazimabad IV
Karachi-18.

Karachi, the 21st October, 1970.

Dear Sir,

Reference your letter dated 2.10.1970.

2. The replies to your queries are as follows seriatum:-

(1) The sun is approximately 18 degrees below the horizon at the times given on the dates specified.

(2) When the sun is 18 degrees below the horizon all light from the sun is cut off.

(3) The times, correct to the nearest half min., calculated for meteorological Observatory at Karachi Airport (coordinates 24°54 N & 67°08'E) when the sun is 15° below the horizon on the dates specified are as follows:

22.6.1970 : 04 hrs 29½ min.W.P.S.T.
22.9.1970 : 05 hrs 17 " " " "
22.12.1970: 06 hrs 4½ " " " "

Kindly acknowledge receipt.

Yours faithfully,

21/X/1970

( N. A. QURESHI )
Deputy Director
Phone : 415549

**د ډائرکټر هائیډرو ګرافي نیول هیډکوارټرز حکومتِ پاکستان کراچي د خط د ترجمې خلاصه:**

| اوقات ۱۵ درجې تر افق لاندې | صبح صادق | تاریخ | مقام | |
|---|---|---|---|---|
| ۴ بجې ½ ۲۹ دقیقې | ۴ بجې ۳۰ دقیقې | ۲۰,۶,۷۰ | کراچي | |
| ۵ بجې ۱۸ دقیقې | ۵ بجې ۱۷ دقیقې | ۲۰,۹,۷۰ | ۲۴ ۵۲.۵ | عرض البلد |
| ۶ بجې ۲ دقیقې | ۶ بجې ۳ دقیقې | ۲۰,۱۲,۷۰ | ۶۷.۲.۵ | عرض البلد |

د سهار په وخت چه کله لمر اتلس درجې تر افق لاندې وي دا وخت د پوره تیاره د ختمیدو او د ماښام په وخت په اتلسو درجو باندې د پوره تیاره ابتداء وي.

۲۲ ستمبر او ۲۲ دسمبر ورکړ شوي وخت کښې لمر ۱۸ درجې تر افق لاندې وي او د ۲۲ جون وخت له دې څخه هم څه مخکښې وي.

ستاسو په را لیږل شویو (زړو) نقشو کښې د صبح صادق وخت د اتلسو درجو تر افق لاندې سره مطابق دي.

دستخط ایس. آر اسلام کیپټن پاکستان نیوي

**دمولانا احتشام الحق تهانوي ٦ ٥ جيکب لائن کراچي په نوم باندې خط:**

د خط را ليږل شوی نقل په نامه د مفتي رشيد احمد دار الافتاء و الارشاد ناظم آباد کراچي

د ډائرکټر محکمه موسميات حکومت پاکستان کراچي د مراسلې خلاصه ترجمه

١ - ١٢ جون ايسټرونوميکل ټوائيلائټ ٤ بجې ١١ دقيقو باندې شروع کيږي (لکه څرنګه چه په مروجه نقشو کښې دي) دا وخت لمر اتلس درجې تر افق لاندې وي.

٢ - چه کله لمر ١٨ درجې تر افق لاندې وي هغه وخت د لمر هر ډول رڼا له افق څخه منقطع وي.

**دستخط ټي ايچ صديقي براى ډائرکټر**

**د ډپټي ډائرکټر محکمه موسميات حکومت پاکستان کراچي د مراسلې د ترجمې خلاصه**

١ - تاسو چه د کومو تاريخونو وختونه ليکلي دي دا وخت لمر اتلس درجې تر افق لاندې وي.

٢ - چه کله لمر اتلس درجې تر افق لاندې وي په دې وخت کښې ئې رڼا با لکل منقطع وي.

| | |
|---|---|
| ٢٢جنوري سنـ١٩٧٠عيسوي | ٤ بجې ½ ٢٩ دقيقې |
| ٢٢ ستمبر سنـ١٩٧٠ زيږديز | ٥ بجې ١٧ دقيقې |
| ٢٢ دسمبر سنـ١٩٧٠ زيږديز | ٦ بجې ½ ٤ دقيقې |

دستخط اين اے قريشي ډپټي ډائرکټر

تليفون ٤١٥٥٤٩

## له ماسخوتن سره د اړونده وخت حواله جات

قال الامام الطحاوى رحمه الله و كان النظر فى ذلك عندنا انهم قد اجمعوا ان الحمرة التى قبل البياض من وقتها و انما اختلافهم فى البياض الذى بعده فقال بعضهم حكمه حكم الحمرة و قال بعضهم حكمه خلاف حكم الحمرة فنظرنا فى ذلك فرأينا الفجر يكون قبله حمرة ثم يتلوها بياض الفجر فكانت الحمرة و البياض فى ذلك وقتا لصلوة واحدة وهو الفجر فاذا خرجا خرج وقتها فالنظر على ذلك ان يكون البياض و الحمرة فى المغرب ايضاً وقت الصلوة واحدة و حكمهما حكم واحد اذا خرجا خرج وقت الصلوة اللذان هما وقت لها. (شرح معانى الآثار ج١، ص٤٦)

د امام طحاوي رحمه الله له دې تحقيق څخه ثابته شوه چه کوم ډول بياض (سپينوالی) په سهار کښې معتبر دی په ماسخوتن کښې به هم د هغه اعتبار وي.

وقال الامام الكاسانی رحمه الله فی بیان اول وقت العشاء ولابی حنیفة رحمه الله النص والاستدلال اما النص فقوله تعالیٰ اقم الصلوٰة لدلوك الشمس الی غسق اللّیل جعل الغسق غایة لوقت المغرب ولا غسق ما بقی النور المعترض وروی عن عمرو بن العاص رضی الله عنه انهٗ قال اٰخر وقت المغرب ما لم یسقط نور الشفق وبیاضه والمعترض نوره وفی حدیث ابی هریرة رضی الله عنه وان اٰخر وقت المغرب حین یسود الافق وتام یسود باخفائها بالظلام. (الی قوله) واما الفقهی فهو ان صلاتین یؤدیان فی اثر الشمس وهو المغرب مع الفجر الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۱۲۴)

د (النور المعترض او حین یسود الافق) الفاظ صریح نص دي چه له شفق ابیض څخه ابیض معترض مرد دی. تر دې وروسته په فقهي دلیل کښې هم ماښام او سهار دواړو لره د لمر په اثر کښې له یو ځای کولو څخه ثابته شوه چه د سهار غوندې په ماښام کښې هم بیاض مستطیل معتبر نه دی.

وقال العلامة حسام الدین الحسین بن علی رحمه الله ان المغرب بمنزلة الفجر ثم البیاض المعترض فی باب الفجر فی حکم الحمرة فلیکن کذٰلك فی مسئلتنا هٰذه. (نهایة علی هامش الهدایة ج۱، ص۸۲)

وقال الشیخ الانور رحمه الله ولنا ما عند الترمذی رحمه الله حتی یسود الافق ولیس هٰذا السواد الا بعد البیاض فا لتحقیق فیه عندی ان الشفق من الاشفاق والشفقة هی الرقة فهو امر بین البیاض الناصع والحمرة القانیة واعلم ان الوقت فی الیوم الواحد من انبلاج الصبح الصادق الی طلوع الشمس یکون کما بین غروبها وغروب الشفق الابیض فی ذٰلك الیوم کذا حققه الریاضیون. (فیض الباری ج۲، ص۱۳۱)

په دې عبارت کښې درې ځله دې حقیقت لره واضح کړی شوې دی. اولاً (حتی یسود الافق) څخه. د معترض بیاض په ډوبیدو سره په افق باندې تیاره خورېږي. ثانیاً د شفق تعریف (فهو امر بین البیاض الناصع والحمرة القانیة) څخه. دا کیفیت په بیاض معترض کښې وي. بیاض مستطیل ناصع وي. د مغرب په طرف د بیاض معترض غوندې د مشرق په طرف د صبح صادق په بیاض کښې هم د سوروالي اثر وي (کماسیأتی انشاء الله تعالیٰ). ثالثاً په آخر کښې بالکل تصریح کوي چه د سهار او ماښام وختونه برابر وي.

وفی اعلاء السنن ان الحمرة والبیاض البادیین فی الافق بعد غروب الشمس کلاهما نظیر البیاض والحمرة البادیین قبل طلوع الشمس لکون کلیهما من اٰثار اشعتها فمدة ما بین غروب الشمس الی غیبوبة بیاض الشفق هی المدة ما بین ظهور بیاض الفجر الی طلوع الشمس سواء بسواء کما صرح به اصحاب الریاضی والهیئة. قال فی حاشیة شرح الجغمینی الشفق والفجر هما متشابهان شکلاً ومتقابلان وضعاً اذ الفجر یبدو من بیاض ضعیف

مستطيل ثم ببياض عريض ثم حمرة و الشفق يبدو بعد الغروب من حمرة ثم بياض عريض ثم بياض مستطيل الخ. و لعلك تفطنت من هذا الكلام ان الشفق الابيض ايضاً مثل الفجر الثان بياض مستطير عريض وبياض ضعيف مستطيل فكما ان المعتبر في الفجر هو البياض العريض كذلك في الشفق المعتبر هذا الا البياض المستطيل (اعلاء السنن ج۲، ص۹) و نقل العلامة العثماني رحمه الله ايضاً عن اعلاء السنن ما قدمنا من عبارته. (فتح الملهم ج۲، ص۱۹۵)

### د حضرت مفتي شفيع صاحب په مشري كښې د علماوو د ډلې مشاهدات

په جون سنــ۱۹۷۰ــه ء كښې د حضرت مفتي محمد شفيع رحمه الله صدر دار العلوم كراچي په مشري د مشهورو علماوو يوې ډلې يواځې د مشاهداتو لپاره له ټنډو آدم څخه تقريباً د درې ميلو په مسافه باندې په شمال مشرق كښې واقع مدرسهٔ محمديه (طول ۶۸/ ۴۰ ، عرض ۲۵/ ۴۶) پورې سفر وكړ. حضرت مفتي صاحب د مشاهداتو نتائج پخپل قلم سره وليكل كوم چه نورو حضراتو هم دستخطونه پرې وكړل. د دې مشاهداتو د نتائجو ضروري اقتباسات په لاندې ډول دي.

**د سفر د شريكانو نوموونه:**

| | |
|---|---|
| ۱- مولانا مفتي رشيد احمد صاحب | دار الافتاء و الارشاد ناظم آباد كراچي |
| ۲- مولانا مفتي محى الدين صاحب | مدرسهٔ اشرف العلوم ډهاكه مشرقي پاكستان |
| ۳- مولانا مفتي ولي حسن صاحب | مدرسهٔ عربيه نيو ټاؤن كراچي |
| ٤- مولانا عاشق الهي صاحب | مدرس دار العلوم كراچي |
| ٥- مولانا محمد رفيع صاحب | مدرس دار العلوم كراچي |
| ٦- مولانا محمد تقي صاحب | مدرس دار العلو كراچي |
| ۷- مولانا محمد علي صاحب | مدرس دار العلوم كراچي |
| ۸- جناب كليم صاحب | ليكچرار شعبهٔ تاريخ اسلام كراچي يونيورستي |
| ۹- احقر محمد شفيع | صدر دار العلوم كراچي |

له ځايي علماوو څخه لانديني حضرات په دې مشاهداتو كښې شريک وو

۱۰- مولوي محمد صديق صاحب (فقير منتهار) مهتمم مدرسهٔ محمديه نزد ټنډو آدم

۱۱- مولوي عبد الواحد صاحب مدرس مدرسهٔ محمديه نزد ټنډو آدم

۱۱جون: بيا يوه رڼا عرضاً خپريدونكې د اُفق په سر باندې شروع شوه، د رڼا ټوله ښكاريدنه چه ټولو ليدونكو اتفاق پرې وكړ په ۱۹/٤ باندې وو. د دې رڼا تر دې هم د لړ مخكښې پيدا كيدو خينو ته شبهه پاتې شوه.

۱۲ جون: سهار تقریباً ۱/۲ ۳ بجې میدان ته تول حضرات را ورسیدل په دې وخت کښې د مشرق په افق باندې هیڅ ډول رڼا موجوده نه وه، پوره څلور بجې په افق باندې مخروطي شکل اوږده رڼا ښکاره شوه کومه چه ټولو ولیدله او صبح کاذب ئې وګڼله او تر دې اوولس دقیقې یعنې ۱۷/٤ دقیقو باندې د صبح صادق په واضحه توګه مشاهده وشوه، په دې باندې د ټولو اتفاق راغی. لمر په ۳۲/٥ باندې را وخوت.

۱۳ جون: نن په کراچۍ کښې د کورنګي سوکواټر ته نژدې د سمندر مشرقي ساحل ته لاړو د مشاهدې کوشش مو وکړ چه په دې کښې مفتي رشید احمد صاحب، مولانا محی الدین صاحب، مولانا عاشق الهی صاحب، مولوي محمد علي صاحب، مولانا محمد رفیع صاحب او احقر محمد شفیع شامل وو.

دومره خو ټولو محسوسه کړه چه ۱۱/٤ کوم وخت د صبح صادق په زړو نقشو کښې د نن تاریخ لیکل شوی دی په دې وخت کښې هیڅ ډول رڼا په افق باندې نه وه. له دې وروسته هغه رڼا چه هغې ته صبح کاذب ویل کیږي ښکاره شوه، بیا تر دې وروسته د صبح صادق معترضاً خپریدونکې رڼا مخې ته راغله.

محمد شفیع ۱۳۹۰/٤/۷ هجري

| رشید احمد | ولي حسن ټونکي غفر الله له | محمد عاشق الهی |
| --- | --- | --- |
| محمد رفیع عثماني | محمد تقي | عبده محی الدین عفا عنه |

## نتائج

د کراچۍ د مشاهدې نتیجه دومره عام فهمه ده چه د هغې په اړه د څه پوهولو ضرورت نشته او د ټنډو آدم د مشاهدې په نتائجو باندې اهل فن غور کوي نو ثابته به شي چه هلته د بنده د تحقیق عین مطابق صبح کاذب اتلس درجې تر افق لاندې او صبح صادق پنځلس درجې تر افق لاندې وخت باندې وشو. او عوام د دې تصدیق داسې کوي چه په تاریخونو کښېد کراچۍ وختونه په زړو نقشو کښې داسې ورکړ شوي دي.

| تاریخ | صبح صادق | طلوع |
| --- | --- | --- |
| ۱۱ جون | ٤ بجې ۱۲دقیقې | ٥ بجې ٤۱ دقیقې |
| ۱۲ جون | ٤ بجې ۱۱ دقیقې | ٥ بجې ٤۱ دقیقې |

په ټنډو آدم کښې لمر له کراچۍ څخه ۹ دقیقې مخکښې په ٥ بجې ۳۲ دقیقې را وخوت نو صبح صادق او صبح کاذب هم تقریباً ۹ دقیقې بلکه د حساب له مخې باید ۱۰، ۱۱ دقیقې وي په داسې حال کښې چه هلته صبح صادق د کراچۍ له وخت څخه په ۱۲ جون کښې ٦ دقیقې وروسته ٤

بجې او ۱۷ دقیقو باندې وشو او په ۱۱ جون کښې ۷ دقیقې وروسته ٤ بجې ۱۹ دقیقې باندې وشو. البته صبح کاذب ۱۱ دقیقې مخکښې ٤ بجو باندې وشو. له دې څخه هر ادنی فهم او پوه لرونکی سړی هم په ښه توګه پوه کیدلی شي چه د کراچۍ په زړو نقشو کښې د صبح صادق تر عنوان لاندې ورکړ شوي وختونه په حقیقت کښې صبح صادق نه بلکه دا د صبح کاذب وختونه دي.

د نومړي مشاهداتو پر بناء حضرت مفتي محمد شفیع صاحب رحمه الله د یوه سوال په ځواب کښې لاندینۍ فتوی لیکلې ده.

## د حضرت مولانا مفتي محمد شفیع صاحب

## صدر دار العلوم کراچۍ فتوی ۳۶/۳۶۰

حامداً و مصلیا، دومره خبره خو یقیني ده چه په نقشو او جنتریو کښې چه کوم وخت د صبح صادق لیکل شی دی هغه د صبح صادق اصلي وخت نه دی بلکه غالباً دا وخت د صبح کاذب دی. کوم چه د سهار د انتهاء لپاره د احتیاط له وجې لیکل شوی دی. له دې وروسته څه وخت وي چه اندازه ئې په هر ځای کښې ۱۲ دقیقې نه وي بلکه په هر موسم او هرې علاقې کښې د تفاوت څرنګوالی بیل دی لهذا دنقشو مطابق فوراً د آذان په ورکولو سره د سړي یا د ښځې لپاره د لمانځه ادا کول صحیح نه دي. د نقشو له وخت څخه شل دقیقې وروسته د سهار د آذان ورکولو او له هغه وروسته د سهار د لمانځه ادا کول په هر موسم کښې له شبهې او شک پرته لمونځ صحیح کیږي. لهذا په دې باندې باید عمل وشي.

**مهر دار الافتاء دار العلوم کراچي**

**بنده محمد شفیع عفي عنه، دار العلوم کراچي ۱۴،**

**۱۳۹۰/۱۱/۲۸ هجري**

## د تحقیق د مجلس د فیصلې اقتباسات (غورچاڼ)

### منعقده دار العلوم کراچي ۱۳ ذي قعده سـ۹۲ـــه هجري

په دې مجلس کښې حضرت مولانا مفتي رشید احمد صاحب د صبح صادق د رسالې دلائل باندې غور وشو او د اړوندو کتابونو ته مراجعت وشو. همدارنګه د مسئلې د تحقیق او مشاهداتو لپاره د ټنډو آدم چه کوم سفر شوی وو د هغه نتائج تر غور لاندې راغلل. له بحث او تمحیص وروسته لاندینۍ خبرې د ثبوت تر مرتبې ورسیدلې.

د مسئلې د غور لاندې تر راتلو وروسته په مختلفو ورځو کښې چه څومره مشاهدات شوي وو په هغو کښې یوه هم د مروجه جنتریو په مطابق صبح صادق و نه شو بلکه صبح صادق د هغو تر

وخت وروسته پیل شو.

له دغو ټولو امورو څخه دا ثابتیږي چه په مروجه جنتریو کښې د صبح صادق په نامه چه کوم وخت لیکل شوی دی هغه په حقیقت کښې صبح کاذب دی.

حضرت مولانا مفتي رشید احمد صاحب چه د صبح صادق کوم وختونه ایستلي دي هغه د ټنډو آدم له مشاهداتو سره مقابله شول فرق یواځي یوه دقیقه وو.

په هر صورت له پورتني نومورړي تحقیق څخه هم دا ظن غالب راځي چه مولانا مفتي رشید احمد صاحب په حسابي طریقې سره کوم وختونه را ایستلي دي هغه صحیح دي.

**احقر محمد تقي عثماني عفي عنه ۱۴ ذي قعده سـ۹۲ـه هجري**

**محمد شفیع رشید احمد محمد عاشق الهی محمد رفیع عثماني عفا الله عنه**

## په مشاهده کښې د غلط فهمۍ اسباب

۱ - د اګست له نیمائي څخه د اکتوبر تر نیمائي پورې د مشرق په طرف تر صبح کاذب ډیر مخکښې زوډیکل لائټ ښکاریږي کوم چه له سهار سره هیڅ اړه نه لري. همدارنګه دا رڼا د مغرب په طرف د فروري له نیمائي څخه د اپریل تر نیمائي پورې ښکاریږي. جارج ایبل پخپل کتاب "ایکس پلوریشن آف دي یونیورس" مطبوع سـ۱۹٦٤ـۀ کښې د زوډیکل لائټ په اړه لیکلي دي چه "دې ته کله کله صبح کاذب هم ویل کیږي" له دې څخه دا غلط فهمي کیدلی شي چه تر دې وروسته ښکاریدونکی ایسټرو نو میکل ټوائیلائټ به صبح صادق وي. لهذا په دې باندې ښه پوه شی چه د شریعت په اصطلاح کښې د سهار په ابتداء کښې له افق څخه په پوره لوړوالي سره ښکاریدونکې مستطیل شکله رڼا ته صبح کاذب ویل کیږي. بیا همدغه رڼا چه کله لاندې راشي نو په عرض یعني پلنوالي وغوړیږي او له طول (اوږدوالي) څخه ئې عرض (پلنوالی) زیاتیږي او څه ناڅه د سوروالي اثر هم پرې راځي نو دې ته صبح صادق ویل کیږي.

عن سمرة بن جندب رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ لا یغرنکم اذان بلال ولا بیاض الافق المستطیل هٰکذا حتی یستطیر هٰکذا (رواه مسلم) عن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه عن النبی ﷺ لیس ان یقول الفجر او الصبح و قال باصابعه و رفعها الی فوق وطأطأ الی اسفل حتی یقول هکذا و قال زهیر بسبابتیه احدٰهما فوق الاخرٰی ثم مدها عن یمینه و عن شماله. (رواه البخاری) قول (وطأطأ) ای خفض اصبعیه الی اسفل و هذا هو الاشارة الی کیفیة الصبح الصادق. (عمدة القاری ۵، ص۱۳۵) الفجر الصادق یطلع معترضا ثم یعم الافق ذاهبا یمینا و شمالا بخلاف الفجر الکاذب و هو الذی تسمیه العرب ذنب السرحان فانه یظهر فی اعلی السماء ثم ینخفض و الی

ذٰلك اشار بقوله رفع وطأطأ رأسه. (فتح الباری ج۲، ص۸۷) وفی حدیث طلق بن علی وکلوا واشربوا حتی یعترض لکم الاحمر، اخرجه ابن ابی شیبة واحمد وابو داؤد والترمذی وحسنهٗ واخرج احمد لیس الفجر المستطیل فی الافق ولکنه المعترض الاحمر. (در منثور ج۱، ص۲۰۰/ ابن کثیر ج۱، ص۲۲۲) قال الخطابی معنی الاحمر ههنا ان یستبطن البیاض المعترض اوائل حمرة. (الفتح الملهم ج۳، ص۱۱۹) و ما روی عن الخلیل انه قال رأیت البیاض بمکة شرفها الله تعالی فما ذهب الا بعد نصف اللیل محمول علی بیاض الجو وذٰلك یغیب اٰخر اللیل واما بیاض الشفق و هو رقیق الحمرة فلا یتأخر عنها الا قلیلا قدر ما یتأخر طلوع الحمرة عن البیاض فی الفجر. (زیلعی ج۱، ص۸۱) و الصبح ما جمع بیاضا و حمرة. (المغنی لابن قدامة ج۱، ص۳۸۵) قال الازهری و لون الصبح الصادق یضرب الی الحمرة قلیلاً کانها لون الشفق الاول فی اول اللیل. (لسان العرب) قال فی التصریح فیری الضوء مرتفعاً عن الافق مستطیلاً ویری ما بینه وبین الافق مظلما وهو الصبح الکاذب لکذبه فی الاخبار عن قرب الشمس لان الافق بعد مظلم، وفی الحاشیة (قوله لکذبه) واندفع به ما قیل سمی بذٰلك لانه یعقبه ظلمة یکذبه فانه اذا طلع الصبح الثانی انعدم ضوء الصبح الاول وجه الاندفاع انه لا یعقبه ظلمة بل یخفی عن البصر لضعفه وغلبة الضوء الشدید الطاری علیه کما یخفی ضیاء المشاعل و الکواکب فی ضوء الشمس آه. مولانا ابو الفضل محمد حفیظ الله (تصریح ص۶۹) یسمی با لصبح الکاذب کأن کون الافق بعد مظلما یکذب کونه نور الشمس. (شرح چغمینی ص۱۶۵) والنوع الثانی منبسط فی عرض الافق مستدیر کنصف دائرة یضیء به العالم فینتشر له الحیوانات والناس للعادات و تنعقد به شروط العبادات. (القانون المسعودی لابی ریحان البیرونی ج۲، ص۹۳۹) فاما بیاض الصبح الصادق فهو بیاض مستدیر فی الافق. (تفسیر کبیر ج۲، ص۲۰۳)

دا خبره د هیئت د علماوو له تصریحاتو برسیره له مشاهداتو څخه هم ثابته شوې ده چه د لمر په اتلسو درجو کښې تر افق لاندې مستطیله رڼا ظاهرېږي کوم چه لړ غونډې سوروالی هم پکښې نه وي. په پلنوالي خپرېدونکې د صبح صادق رڼا پنځلس درجې تر افق لاندې وي. په حقیقت کښې عرفي ورځ د لمر له ختلو څخه شروع کیږي لیکن شریعت په زمکې باندې د لمر د شعاعو ظهور لره هم حکماً ورځ ګڼلی دی. او له پنځلسو درجو تر افق لاندې څخه مخکښې د لمر شعاعوې په زمکې باندې قطعاً نه ښکارېږي نو ځکه دا صبح کاذب دی کوم چه د عرف په مطابق شرعاً په شپه کښې داخل دی. د لمر د شعاعو یواځې په فلک باندې ظهور لره هم شریعت د ورځې حکم نه دی ورکړی او که نه نو صبح کاذب به هم بیا په ورځ کښې شمار وای.

لنډه دا چه د زوډیکل لائټ اصطلاح له شریعت سره هیڅ تعلّق نه لري بلکه دا د قوس قزح

غوندې يوه انعکاسي رڼا ده کوم چه په ټول کال کښې پواځې دوه مياشتې د اګست له نيمائي د اکتوبر تر نيمائي پورې په ځينو ځايونو کښې ښکارېږي او ايسټرونوميکل ټوائيلائټ څخه ډير مخکښې پاى ته رسيږي همدارنګه اورورا، ګګن شين لائټ او نورې څو ډوله رڼاوې په مختلفو زمانو کښې په مختلفو ځايونو باندې په مختلفو سمتونو کښې د شپې په مختلفو برخو کښې ښکاريدونکې وي کومې چه سهار سره هيڅ ډول تعلق نه وي وګورى ايکس پلوريشن آف دي يونيورس د جارج ايبل تصنيف چاپ شوى ۱۹٦٤ء، ص ۳۱۵ او ص ۳۳۸، د پان بک آف ايسټرو نومي د جيمس ميوريډن ايف. آر. اے. ايس تصنيف چاپ شوى ۱۹٦٤ء، ص ٦۹ دى ايلمنينټس آف ايسټرونومي د ايډورډ آرتخر فيتهـ تصنيف. چاپ شوى ۱۹۵۵ء ص ۲۱۲۔

د خليل غوندې ځينې نور حضرات هم د زوډيکل لائټ او کهکشان د صبح کاذب په ګنيلو کښې په مغالطه کښې لويدلي دي چه اهل تحقيقو د هغه ترديد کړى دى چنانچه علامه حطاب مالکي رحمه الله فرمايي:

قال فى الذخيرة و كثير من الفقهاء لا يعرف حقيقة هذا الفجر و يعتقد انه عام الوجود فى سائر الازمنة وهو خاص ببعض الشتاء و سبب ذلك انه المجرة فمتى كان الفجر بالبلدة و نحوها طلعت المجرة قبل الفجر و هو بيضاء فيعتقد انها الفجر فاذا باينت الافق ظهر من تحتها الظلام ثم يطلع الفجر بعد ذلك و ام فى غير الشتاء فتطلع المجرة اول الليل او نصفه فلا يطلع أخر الليل الا الفجر الحقيقى انتهى و نازعه غيره فى ذلك و قال انه مستمر فى جميع الازمنة وهو الظاهر. (مواهب الجليل شرح مختصر خليل ج۱، ص۳۹۹)

وقال العلامة ابن حجر الهيتمى الشافعى رحمه الله فى تحفة المحتاج بشرح المنهاج ونقل الاصبحى ابراهيم ان بعضهم ذكر انه يذهب بعد طلوعه ويعود مكانه ليلا وان اباجعفر البصرى بعد ان عرفه بانه عند بقاء ساعتين يطلع مستطيلاً الى نحو ربع السماء كأنه عمود وربما لم ير اذا كان الجو كدرا صيفا اعلاه دقيق و اسفله واسع و تحته سواد ثم بياض ثم يظهر ضوء يغشى ذلك كله ثم يعترض رده بانه رصده نحو خمسين سنة فلم يره غاب و انما ينحدر ليلتقى مع المعترض فى السواد و يصير ان فجرا واحدا او زعم غيبته ثم عوده و هم او رأه يختلف باختلاف الفصول فظنه يذهب وبعض الموقتين يقول هو المجرة اذا كان الفجر بالسعود ويلزمه انه لا يوجد الا نحو شهرين فى السنة اه قال الشيخ عبد الحميد الشروانى فى حاشيته على تحفة المحتاج (قوله بالسعود) منزل للقمر كردى عبارة القاموس وسعود النجوم عشرة سعد بلع وسعد الاخبية وسعد الذابح وسعد السعود وهذه الاربعة من منازل القمر ثم قال بعد ذكر البقية وهذه الستة ليست من المنازل كل منها كوكبان بينهما نحو

فراع. آه (تحفة المحتاج ج۱، ص۴۲۷)

وعلامه شیرازی در تحفۂ شاہی می آرد وجه تسمیه اش بصبح صادق آنست که روشنیش از اول صادق تر است نه ازین جهت که سیاهی طار بر صبح اول مکذب می شود نه بر ثانی زیرانکه صحیح آنست که روشنی اوّل معدوم نه می شود بلکه روشنی ثانی مغلوب و مخفی میگردد مثل روشنی چراغ پیش پر تو آفتاب. (حاشیۂ مالا بد منه ص۲۹)

له پورتنیو عبارتونو څخه ثابته شوه چه کوم حضراتو تر صبح کاذب وروسته بیا د پوره تیاره کیدو قول کړی دی هغوی د زوړیکل لائټ یا کهکشان سره په مغالطه کښې لویدلي دي، یا د هغو مقصد دا دی چه د صبح صادق په رڼا کښې د صبح کاذب د ورکیدو له وجې هلته تیاره په نظر راځي.

وذكر الامام الغزالي رحمه الله في آداب المسافر من الاحياء ولفظ الاحياء مع شرحه "الاتحاف" ويبقى بين الصبحين قدر ثلثي منزلة بالتقريب يشك فيه من وقت الصبح الصادق والكاذب. (معارف السنن ج۲، ص۲۹)

له دې څخه هم ثابته شوه چه د صبح صادق او صبح کاذب تر منځ کوم بیلتون نشته بلکه دواړه پخپل منځ کښې په یوه او بل پسې دي.

۲- د علامه حطاب مالکي او علامه هیثمي شافعي له تحقیق څخه کوم چه پورته نقل شو دا څرګنده شوه چه په ژمي کښې تقریباً دوه میاشتې کهکشان د سهار په وخت کښې د مشرفق په طرف را خیژي او تر هغه وروسته فوراً د سهار د رڼا د را ښکاریدو له وجې کهکشان ورکیږي او لیدونکي ته دا احساس نه کیږي چه دا رڼا د کهکشان وه بلک د سهار رڼا ئي ګڼي.

له حساب او مشاهداتو څخه ثابته شوه چه په عرض شمالي کښې دا کیفیت په جنوري او فروري کښې وي، همدارنګه په جولائي او اګست کښې د مغرب خوا ته د کهکشان د ډوبیدو هم باید همدغه حالت وي او په عرض جنوبي کښې به بیا معامله برعکس (سرچپه) وي.

۳- په دسمبر سنـ۱۹۷۱ـۀ کښې د پاکستان او هندوستان د جنګ په دوران کښې د بندیز له وجې په ښار کښې د اوسیدو له مخې د مشاهداتو بهترینه موقع په لاس راغله. زه ډیر حیران شوم چه تر صبح کاذب ډیر مخکښې د مشرق خوا ته او له ماسخوتن څخه ډیر وروسته د مغرب خوا ته مستطیله رڼا په نظر راتله. ما د دې عقدې د حلولو خاص اهتمام وکړ. د ۱۹ دسمبر په ماښام کښې تر مغرب وروسته، فوراً ما د غربي افق مراقبه شروع کړه، و مې لیدل چه د لمر د ډوبیدو له ځای څخه لږ غوندې د جنوب خوا ته یوه غیر معمولي غوندې روښانه سیّاره (زهره) خاص په همدې ځای باندې دی چیرته چه په لومړي ورځ تر ماسخوتن وروسته هم رڼا په نظر راتله. دا سیاره پاو کمې انه بجې ډوبه شوه لیکن په سر باندې ئې مستطیله رڼا تقریباً تر لس نیمو بجو پورې په څرګنده توګه

په نظر راتله په داسې حال کښې چه په دې ورځ پنځلس درجې تر افق لاندې (د ماسخوتن وخت د صبح صادق مقابل) وخت ٦/٥٥ او ١٨ درجې تر افق لاندې (د صبح کاذب مقابل) وخت ٧/٩ دی. تر دې وروسته داسې محسوس شول چه له دې مقام څخه تر ثریا پورې د کهکشان غوندې لیکن تر دې هم سپینوالي ته ډیر نژدې سرک دی، په دې ټولې مشاهدې کښې له ما سره یو بل ملګری هم وو. له ۲۰ تر ۲۲ دسمبره پورې مو د وریځ له وجې د سهار مشاهده و نه شوای کړی. ۲۳ دسمبر چه که ٤ نیمې بجې را پورته شولو و مو کتل نو د مشرق خوا ته مستطیله رڼا موجوده نه، په ۲٤ دسمبر باندې ما د شپې په درې بجې باندې کار شروع کړ. له مشاهدې څخه را ته محسوسه شوه چه له مشرق څخه د کهکشان غوندې لیکن له هغه څخه پوره مدهم سپین والی پورته روانه وه او د ثریا په برابر له مشهور کهکشان سره لګیږي. تقریباً تر ٤ نیمو بجو وروسته د مشرق په طرف په دې سپین والي کښې څه زیاتوالی او له پاسه څه کموالی محسوس شو او د صبح کاذب تر وخته پورې همدا کیفیت پاتې وو. د صبح کاذب د ابتداء څه احساس مې و نه شوای کړی. د حساب له مخې په دې ورځ د صبح کاذب وخت ٥/٤٩ او د صبح صادق وخت ٦/٦ دی. تر څلور نیمو بجو وروسته په رڼا کښې له زیاتوالي څخه اندازه ولګیده چه د مغرب غوندې د شرقي افق لاندې هم کومه غیر معمولي روښانه ستوری د دې باعث جوړیږي. لکه څرنګه چه په جنوري کښې دا ستوری د سهار په وخت کښې په نظر راتللو کوم چه ذنب عقرب (د لړم لکی) ته نژدې د مشهور کهکشان په دننه کښې واقع دی. نتیجه دا ووتله چه تر مشهور کهکشان پرته یو بل مدهم کهکشان هم شته چه له هغه سره د ځینو نورو معمولي روښانه ستورو رڼا هم شاملیږي کوم چه د مغالطې باعث یا سبب جوړیږي.

## د صبح صادق په اړه د مغالطې وجوهات

۱- ځینو علماوو د سهار د پای او د لمر د ختلو تر منځ څه وخت (مثلاً یو نیم ساعت یا کم او زیات) ټاکلی دی. له دې څخه د هغوی هیڅکله دا مقصد نه دی چه په هر موسم کښې په هر ځای باندې دطلوع او صبح صادق تر منځ همدومره وقفه وي ځکه چه دا خبره خو په ښکاره توګه غلطه ده هر سړی پوهیږي چه دا وقفه په هر تاریخ او ځای کښې مختلفه وي او تصدیق ئې په مشاهدې سره هم کیدلی شي او د مختلفو ځایونو د لمانځه له زړو نقشو څخه هم. لهذا د هغو حضراتو له لیکنې څخه د هغو مقصد دا دی چه د هغوی په ملک کښې چه په کوم ځای او کوم تاریخ کښې له زیات څخه زیاته وقفه وي هغه دې د سهار پای وټاکل شي نو د پوره ملک د حدودو په دننه کښې په هر ځای او هر موسم کښې له شبهې پرته روژه به صحیح وي او له غروب څخه همدومره ځنډ وروسته د ماسخوتن لمونځ له شبهې پرته صحیح کیږي. مثلاً د متحد هندوستان په زمانه کښې

که چیرته کوم یوه عالم د دې وخت اندازه وټاکله نو هغه د متحد هندوستان (په شمول د خیبر، مردان، مالاکنډ، چترال او داسې نور) له حدودو څخه په کوم ځای او کوم تاریخ کښې چه له زیات څخه زیاته وقفه وه هغه ئې د سهار پای ټاکلې. چنانچه حضرت حکیم الامت حضرت مولانا تهانوي قدس الله سرّه د امداد الفتاویٰ په دویم جلد ص٧٥ کښې فرمایي چه "د هیئت د قاعدې له مخې د لمر د طلوع له وخت څخه یو نیم ساعت مخکښې پوې پیشلمی کولی شي". بیا په حاشیه کښې لیکي "په ځینو موسمونو کښې له دې څخه هم زیات ګنجایش شته. دا مې احتیاطاً ولیکله".

لنډه دا چه له دې څخه هیڅکله هم دا مقصد نه دی چه په هر ځای باندې او هر تاریخ کښې په دې وخت باندې صبح صادق کیږي او فوراً په آذان ورکولو سره د سهار د لمانځه ادا کول هم جائز دی او نه دا مقصد دی چه په هیڅ یوه ځای او موسم کښې هم تر غروب وروسته د دومره وخت له تیریدو څخه مخکښې د ماسخوتن وخت نه وي. له دې څخه ثابته شوه چه کوم حضرات زما تحقیق د اکابرو د تحقیق په خلاف ګڼي هغو د اکابرو په خبرو کښې د غور د نه کولو له وجې په غلط فهمۍ کښې لویدلي دي او که نه نو حقیقت دا دی چه زما د تحقیق هیڅ یوه برخه هم د اکابرو د هیڅ یوې لیکنې په خلاف نه دی.

٢- ځینو مصنفینو لیکلي دي چه د صبح صادق ټول وخت د ټولې شپې له وخت سره کوم ځانګړی نسبت لري. د دې حقیقت هم هغه دی چه کوم چه پورته په اول نمبر شماره کښې تیر شو.

٣- د فلکیاتو د مخکښینیو علماوو دا معمول دی چه هغوی لومړی مطلقاً د صبح یا د سهار وخت یادوي او په آخر کښې د دې تصریح کوي چه دا د صبح کاذب وخت دی او صبح صادق له دې څخه درې درجې وروسته وي چه له دې څخه د هغوی مقصد دا وو چه خلک له مخکښې څخه د صبح صادق لپاره تیار و اوسي لیکن د لمانځه د وختونو د خپروني شوق لرونکو حضراتو کم نظریو مطلق سهار لره صبح صادق وباله او تر وروسته راتلونکې تصریح پورې و نه رسیدل

٤ - د دین د اهل فن علماوو چه کله د لمانځه د وختونو نقشې جوړې کړې نو په هغو کښې د مذکوره احتیاط او مصلحت پر بناء د صبح صادق په ځای په قصد سره ئې د صبح کاذب وختونه ولیکل. لکه څرنګه چه د منجم خیر الله نقشه چه د مشکوٰة شریف د شرح په مظاهر حق کښې د مطلق صبح تر عنوان لاندې ١٨درجې تر افق لاندې وختونه لیکلي دي کوم چه په اجماع سره صبح کاذب دی لیکن د کراچۍ په یوې جنترۍ کښې ئې دې نقشې لره د شیخ عبد الحق دهلوي رحمه الله خوا ته منسوب کړې ده او مطلق صبح ئې صبح صادق ګرځولی دی او د دهلي نقشه ئې په کراچۍ باندې جاري کړې ده بیا ئې د ګړۍ او ثانیې په ساعتونو او دقیقو جوړولو کښې هم غلطي کړې ده همدارنګه ئې د معیار الاوقات په نقشه مطبوع حیدر آباد دکن کښې د ١٨ درجې تر افق لاندې وختونه ورکړې دي، په داسې حال کښې چه په دې کتاب کښې په څلورو مختلفو ځایونو باندې د

لمونځ نه وشو. او د' مسائل د خلکو له ځانه جوړې کړې مسائل دي. مهرباني وکړی له صحیح مسئلې څخه مو خبر کړی. د آذان په اړه هم که چیرته په کیڼ طرف کښې ادا شي نو صحیح به وي او که نه؟ ډیره مهرباني به مو وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د اقامت لپاره کوم خاص ځای نه دی ټاکل شوی لهذا کیڼې خوا ته د اقامت په ویلو باندې اعتراض و په ښي طرف باندې ئې د کولو اصرار ټول بدعت او په دین کښې زیاتوالی دی. په خاصه توگه چه کومو خلکو دا فتوی ورکړې ده چه لمونځ و نه شو په هغو باندې توبه لازمه ده. همدارنگه د آذان لپاره هم کوم خاص ځای نه دی ټاکل شوی. له جوماتونو څخه د باندې که ښي خوا ته وي او که کیڼې خوا ته. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۱ جمادی الثانی ۸۸ھجری

## ښځه دې بې له اقامته لمونځ وکړي

**سوال**: ښځه که چیرته یواځې لمونځ کوي یا که د ښځو جماعت وي نو په هغې کښې د دوی لپاره اقامت شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : ښځه دې له اقامت پرته لمونځ کوي. د ښځو جماعت مکروه تحریمی دی. سره له دې که چیرته دوی جماعت وکړي نو اقامت پکښې نشته.

قال فی العلائیة ولا یسن ذلك فیما تصلیه النساء اداء وقضاء ولو جماعة کجماعة صبیان وعبید وقال ابن عابدین رحمه الله وکان الاولی للشارح ان یقول ولو منفردة لان جماعتهن الآن غیر مشروعة فتفطن. (رد المحتار ج۱، ص۳۶۳) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۱ رجب ۸۹ھجری

## په اُجرت باندې د اذان او امامت ثواب ورکول کیږي او که نه؟

**سوال**: د آذان او امامت د اجرت اخیستلو خو متاخرینو اجازه ورکړې ده لیکن آیا د آذان ورکولو او امامت کولو ثواب ورکول کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د ثواب حاصلیدل د کار کوونکي تر نیت پورې اړه لري. که چیرته ئې نیت یواځې د پیسو لاس ته راوړل وي نو ثواب نه ورکول کیږي او که نیت ئې د عبادت وي لیکن د ضرورت له وجې اجرت قبلوي نو ثواب هم ورکول کیږي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۴ صفر ۸۹ھجری

## د اذان په وخت کښې چپ اوغلی اوسیدل مستحب دي

**سوال**: د آذان په وخت کښې دنیوي خبرې څنگه دي؟ آیا مکروه دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**جواب**: د آذان په وخت کښې غلی اوسیدل مستحب دي. له دې وجې له ضرورت پرته خبرې باید

څوک و نه کړي.

قال ابن عابدین رحمه الله تحت (قوله لا یرد السلام) قال فی المعراج وفی التحفة وینبغی للسامع ان لا یتکلم و لا یشتغل بشیء فی حالة الأذان والاقامة ولا یرد السلام ایضاً لان الکل یخل بالنظم آه اقول یظهر من هذا ان قوله لا یرد السلام لیس للوجوب وانه یتفرع علی القولین (وجوب اجابة الاذان وندبها) والالزم وجوب ذلك فی الاقامة مع ان اصل اجابة الاقامة مستحبة الخ. (رد المحتار ج۱، ص۳۷۱)

فقط والله تعالی اعلم غره جمادی الاولی ۸۹ هجری

## د اذان په وخت په غوږونو کښې د ګوتو د نه نیولو حکم

**سوال**: ۱ - آیا د آذان ورکوونکي لپاره ضروري دي چه د آذان ورکولو په وخت غوږونو ته ګوتې واچوي؟ آیا داسې کول سُنت دي؟

۲ - که چیرته مؤذن د آذان کولو په وخت کښې ګوتې غوږونو ته ور نه وړي بلکه یواځې لاس پرې کیږدي نو صحیح به وي او که نه؟

۳ - که چیرته مؤذن د آذان ورکولو په وخت لاسونه خلاص و نیسي نو صحیح به وي او که نه؟ نن صبا اکثره لاسپیکر استعمالیږي که چیرته غوږونو ته ګوتې ور نه وړي نو څه پروا لري؟

٤ - غوږونو ته د مؤذن ګوتو په نه وروړلو باندې په هغه باندې حمله کول، ښکنځا کول او سخت مخالفت کول شرعاً جائز دي او که نه؟ او د داسې خلکو په اړه څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**جواب**: ۱ - د آذان په وخت کښې غوږونو ته د ګوتو وروړل مستحب دي، ضروري نه دي.

۲ - په دواړو غوږونو یا یوه غوږ باندې د لاس کیښودلو باندې هم دا استحباب ادا کیږي.

۳ - که چیرته لاس همداسې خلاص ونیسي او آذان وکړي نو بیا هم هیڅ پروا نه لري. په غوږونو باندې د لاس نیولو حکمت دا دی چه آواز پرې لوړیږي. د لاسپیکر په صورت کښې د دې حاجت نشته سره له دې د تشبّه په غرض سره په غوږونو کښې ګوتې ورکول بهتر دي.

قال فی شرح التنویر ویجعل ندباً اصبعیه فی صماخ اذنیه فأذانه بدونه حسن وبه احسن وفی الشامیة (قوله ویجعل اصبعیه الخ) لقوله ﷺ لبلال رضی الله عنه اجعل اصبعیك فی اذنیك فانه ارفع لصوتك وان جعل یدیه علی اذنیه و کذا احدی یدیه علی ما روی عن الامام امداد و قهستانی عن التحفة. (قوله فأذانه) تفریع علی قوله ندباً قال فی البحر والامر ای فی الحدیث المذکور للندب بقرینة التعلیل فلذا لو لم یفعل کان حسناً فان قیل ترك السنة کیف یکون حسناً قلنا ان الأذان معه احسن فاذا ترکه بقی الأذان حسناً کذا فی الکافی آه فافهم. (رد المحتار ج۱، ص۳٦۰)

٤. په دې فعل باندې مؤذن مجبوروول او د هغه بې عزتي کول کبیره ګناه ده، په حاکم باندې لازم دي چه داسې جاهلانو ته سخته سزا ورکړي تر څو چه په راتلونکي کښې دا ډول ظلم او لویه ګناه و نه کړي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۷ جمادی الآخر ۸۹ھ هجری

## د اذان په کلماتو کښې وړاندې والی او وروسته والی

**سوال**: که چیرته مؤذن آذان یا اقامت غلط ووائي مثلاً حیّ علی الفلاح تر حیّ علی الصلوة مخکښې ووائي نو د آذان بیرته را ګرځول سنت دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د حیّ علی الفلاح د مخکښې ویلو په صورت کښې دې تر حیّ علی الصلوة وروسته بیا حیّ علی الفلاح ووائي د ټول آذان بیرته را ګرځول پرې نشته.

قال فی شرح التنویر ولو قدّم فیهما مؤخراً اعاد ما قدم فقط. وفی الشامیة کما لو قدم الفلاح علی الصلوة یعیده فقط ای ولا یستأنف الآذان من اوّله. (ردالمحتار ج۱، ص۳۶۱)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ رجب ۸۹ھ هجری

## که چیرته د اذان کومه کلمه پاتې شي نو څه به کوي؟

**سوال**: په آذان او اقامت کښې که چیرته کوم لفظ په هیره پاتې شي او تر آذان او اقامت وروسته ور په یاد شي نو آذان او اقامت هم هغه کافي دی او که به ئې بیرته را ګرځوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته تر آذان او اقامت فوراً وروسته ور په یاد شي نو چه کومه کلمه پاتې شوې وي له هم هغه ځایه دې بیرته له سره ووائي او که چیرته څه وخت وروسته ور په یاد شي نو بیا دې ټول له سره بیرته را ګرځوي.

قال فی العلائیة ویترسل فیه بسکتة بین کل کلمتین ویکره ترکه وتندب اعادته. (ردالمحتار ج۱، ص۳۵۹)
ثم قال ولو قدم فیهما مؤخراً اعاد ما قدم فقط ولا یتکلّم فیهما اصلا ولو ردّ سلام فان تکلّم استأنفه وفی الشامیة (قوله اعاد ما قدم فقط) کما لو قدم الفلاح علی الصلوة یعیده فقط ای ولا یستأنف الآذان من اوله (قوله استأنفه) الا اذا کان الکلام یسیراً خانیة. (ردالمحتار ج۱، ص۳۶۱)

په دغو عباراتو کښې د صفت له نقص څخه د بیرته را ګرځولو حکم مذکور دی. پس د ذات د نقص په صورت کښې به په طریقهٔ اولی سره بیرته را ګرځول کیږي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۰ صفر ۹٤ھ هجری

## که چیرته الصّلوٰةُ خَيرٌ مِّنَ النّوم پاتې شي نو څه به کوي؟

**سوال**: د سهار په آذان کښې که چیرته الصلوٰة خیر من النوم ویل د چا هیر شي نو آیا آذان وشو او که دوباره به ئې کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د سهار په آذان کښې د الصلوٰةُ خیر مّنَ النّوم ویل سنت مؤکد نه بلکه مندوب دي. له دې څخه څرګندیږي چه که چیرته تر آذان فوراً وروسته ور په زړه شي نو بهتره دا ده چه د دې کلماتو په ویلو سره تر دوی وروسته نور کلمات هم له سره ووائي او که چیرته ئې وروسته ور په زړه شي نو بیا دې نه را ګرځوي.

قال فی شرح التنویر و یقول ندباً بعد فلاح اذان الفجر اَلصَّلٰوۃُ خَیْرٌ مِّنَ النَّوْمِ مرّتین و قال ابن عابدین رحمه الله فیه رد علی من یقول ان محلّه بعد الآذان بتمامه و هو اختیار الفضلی بحر عن المستصفی. (رد المحتار ج۱،ص۳۶۰)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۵ رجب ۹٤ هجری

## که چیرته د اذان په کلماتو کښې توقف و نه شي نو اعاده مستحبه ده

**سوال**: په آذان کښې ترسل او په اقامت کښې حدر مسنون دی. د دې سنت په ترک سره د آذان او اقامت بیرته را ګرځول شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**جواب**: د آذان تر هر کلمې وروسته دومره توقف ‹دریدل یا ځنډ کول› چه په هغه کښې ځواب ورکوونکی ځواب ورکړی شي مسنون دی، د دې سنت پرینښودل مکروه دی. او په دې صورت کښې د آذان بیرته را ګرځول مستحب دي. د اقامت په کلماتو کښې سنت دا دی چه توقف و نه کړي بلکه زر زر دې وائي. لیکن په اقامت کښې د دې سنت په پرینښودو سره اعاده مستحبه نه ده.

قال فی العلائیة ویترسل فیه بسکتة بین کل کلمتین ویکرہ ترکه وتندب اعادته ثم قال ویحدر فیها فلو ترسل لم یعدها فی الاصح وفی الشامیة بخلاف مالو حدر فی الآذان حیث تندب اعادته کما مرّ لان تکرار الاذان مشروع ای کما فی یوم الجمعة بخلاف الاقامة وعلیه فما فی الخانیة من انه یعید الاقامة مبنی علی خلاف الاصح و تمامه فی النهر. (ردالمحتار ج۱،ص۳۶۱)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۸ ربیع الآخر ۹۹ هجری

## تر اذان مخکښې د اعوذ با لله او بسم الله ویلو حکم

**سوال**: تر آذان مخکښې د اعوذ با لله او بسم الله الخ په پټه یا په زوره ویل جائز او مسنون دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**جواب**: د دې هیڅ ثبوت نشته. د دې لپاره دې اعوذ با لله او بسم الله الخ نه په پټه وائي او نه په

زوره. فقط و الله تعالی اعلم ٤ذی الحجة ۸۹ سنه هجری

## د فاسق اذان او اقامت دواړه مکروه تحريمي دی

**سوال**: د فاسق د آذان او اقامت ورکولو حکم څه دی؟ آيا بيرته را ګرځول ئې ضروري دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**جواب**: د فاسق آذان او اقامت مکروه تحريمي دي. د آذان بيرته را ګرځول مستحب دي ليکن د اقامت نه

قال فی شرح التنویر ویکرہ آذان جنب واقامته واقامة محدث لا اذانه علی المذهب وامرأة وفاسق (الی قوله) ویعاد اذان جنب ندبا وقیل وجوبا لا اقامته لمشروعیة تکرارہ فی الجمعة دون تکرارها وقال فی الشامیة تحت (قوله ویکرہ آذان جنب) وظاهرہ ان الکراهة تحریمیة بحر. (قوله ویعاد اذان الجنب الخ) زاد القهستانی والفاجر والراکب والقاعد والماشی والمنحرف عن القبلة وعلل الوجوب فی الکل بانه غیر معتد به والندب بانه معتد به الا انه ناقص قال وهو الاصح کما فی التمرتاشی. (ردالمحتار ج۱، ص۳٦۵)

فقط والله تعالی اعلم ۲ محرم ۹۰ سنه هجری

## د ږيرې د خريونکي اذان او اقامت دواړه مکروه تحريمی دی

**سوال**: د ږيرې د خريونکي او انګريزي ويښتانو د پرېښودونکي سړي آذان او اقامت صحيح دي او که نه؟ بينواتوجروا.

**جواب**: د ږيرې د خريونکي يا لنډوونکي او انګريزي ويښتانو پرېښودنکی فاسق دی. د دې لپاره د داسې سړي آذان او اقامت مکروه تحريمي دی. د آذان بيرته را ګرځول مستحب دي ليکن د اقامت مستحب نه دی.

قال فی التنویر ویکرہ آذان جنب واقامته واقامة محدث لا آذانه وامرأة وفاسق (الی قوله) ویعاد آذان جنب لا اقامته وفی الشرح ندبا وفی الحاشیة زاد القهستانی والفاجر الخ. (ردالمحتار ج۱، ص۳٦۵)

فقط والله تعالی اعلم ١٤ جمادی الثانی ۹۱ سنه هجری

## سود خور او ږيرې خريونکی او لنډونکې اذان نه شي ورکولی

**سوال**: څه فرمائي د دين علماء کرام و د شرع متين مفتيان کرام د دې مسئلې په باره کښې چه زيد او عُمر دواړه لمونځ ګذاره دي، عُمر حاجی دی او زيد حاجی نه دی. زيد ږيره خريي او عمر ئې نه خريي ليکن سود خور دی. په ډاک خانه کښې روپۍ جمع کوي او بيا ئې سود اخلي. اوس په

دغو دوارو کښې د آذان لپاره کوم يو بهتر دی؟ يو مولوي صاحب وائي چه زيد بهتر دی هغه اګر که فاسق دی ليکن سود قطعي حرام دی. په داسې حال کښې چه څو څو ځلی ورته ويل شوي هم دي خو بيا هم سود خوري نو ځکه د ده آذان بهتر نه دی. اوس پوښتنه دا ده چه د کوم يوه آذان بهتر دی؟ د کتابونو په حوالې سره ځواب وليکی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دواړه فاسقان دي، د دې لپاره په دواړو کښې يوه ته هم د آذان ورکولو اجازه نشته. د دواړو ګناهونه ډير لوی دي. د سود لعنت خو ښکاره دی. همدارنګه د ږيرې خريل او لنډول هم ډيره لويه ګناه ده. بلکه دا په علانيه سره د مطهره شريعت توهين دی. د نبي کريم ﷺ وينا ده چه په ښکاره يا علانيةً سره ګناه کوونکی د عفو لائق نه دی. **(كل امتى معافى الا المجاهرين)** حضرات فقهاء کرام رحمهم الله فرمايي په رمضان شريف کښې په ښکاره خوړونکی واجب القتل دی، د ږيرې خريونکی او لنډوونکی خو په رمضان شريف کښې د ښکاره خوړونکي نه هم زيات مجرم دي. د خوراک کوونکي لره خو يو څو کسان ويني او هغه هم په يوه وخت کښې، ليکن د ږيرې خريونکی يا لنډوونکی دومره بې حياء دی چه هميشه شپه او ورځ د ټولو له مخې له شريعت څخه دبغاوت اوسرکشی اظهارکوي. الله تعالی دې مونږ ته د آخرت ويره را په برخه کړي. آمين.

فقط و الله تعالی اعلم. **۲۵ محرم ۹۸ هجری**

## د اذان په وخت کښې د تلاوت پريښودل مستحب دي

**سوال**: د تلاوت په دوران کښې که چيرته آذان شروع شي نو په تلاوت باندې مشغوله پاتې کيدل صحيح دي او که تلاوت پريښودل او آذان ته غوږ نيول، او له آذان نه وروسته بيا تلاوت شروع کول؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مستحبه دا ده چه تلاوت پريښودل شي او د آذان خوا ته سړی متوجه شي او د هغه ځواب ورکړي.

نقل العلاء رحمه الله عن النهر معزياً الى المحيط و غيره انه لا يردّ السلام و لا يسلم و لا يقرأ بل يقطعها و يجيب ولا يشتغل بغير الاجابة وقال ابن عابدين رحمه الله فى المعراج وفى الحفة وينبغى للسامع ان لايتكلّم ولا يشتغل بغير الاجابة وقال ابن عابدين رحمه الله فى المعراج وفى التحفة وينبغى للسامع ان لا يتكلّم ولا يشتغل بشئ فى حالة الآذان و الاقامة ولا يرد السلام ليس للوجوب و انه يتفرع على القولين (وجوب اجابة الآذان و ندبها) والالزم وجوب ذلك فى الاقامة مع ان اصل اجابة الاقامة مستحبة الخ. (ردالمحتار ج۱،ص۲۷۱)

فقط والله تعالى اعلم **۲۰ شوال ۹۲ هجری**

## د نابالغ هلک اذان د اولی خلاف دی

**سوال**: د نابالغ هلک کوم چه د آذان کلمات صحیح ادا کوي آذان ئې د فقهې له مخې خو جائز دی لیکن پوښتنه دا ده چه د هغه له اجازې پرته چه بالغ سړی اقامت ووائي نو جائز به وي او که نه؟ ځکه چه که چیرته دی پخپله اقامت ووائي نو د صف په منځ کښې د ده په دریدو سره د صف انقطاع (پریکړون) راځي نو آیا د دې نابالغ مؤذن اقامت ویل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په سوال کښې څو خبرې اصلاح غوښتونکي دي:

۱- د بالکل ناپوهه هلک آذان صحیح نه دی، او د پوه هلک آذا د اولی خلاف دی.

۲- د اقامت لپاره د لومړي صف ځانګړتیا وجود نه لري. له دې امله هلک چه شا ته ولاړ هم وي بیا هم اقامت ویلی شي.

۳- د اقامت د ویلو لپاره له مؤذن څخه د اجازې اخیستل کومه ضروري خبره نه ده بلکه یواځې بهتري لري.

٤- پوه هلک چه کله د لویانو په صف کښې ودریږي نو د صف انقطاع نه راځي یواځې د بهتري یا اولی خلاف دی هغه په هغه صورت کښې چه څو هلکان وي، که چیرته هلک یو وي نو هغه ته د لویانو په صف کښې دریدل لازم دي.

لنډه دا چه د نابالغ په آذان باندې په سوال کښې یاد شوي اشکالات نه واردیږي. البته پوښتنه پیدا کیږي چه په دې صورت کښې بهتره طریقه کومه یوه ده؟ اقامت هم که چیرته همدغه نابالغ ووائي یا کوم بالغ اقامت ووائي؟ د بنده په خیال کښې د بالغ اقامت ترجیح لري. فقط و الله تعالی اعلم.

۲۵ جمادی الاولی ۱۳۹۱ هجری

## د یوه سړي په دوو جوماتونو کښې د اذان ورکولو حکم

**سوال**: یو مؤذن په دوو جوماتونو کښې په یوه وخت آذان ورکولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**جواب**: د یوه سړي لپاره په یوه وخت کښې په دوو جوماتونو کښې آذان ورکول مکروه تحریمي دي که دا سړی د کوم جومات مؤذن وي او که نه؟

قال فی العلائیة یکره له ان یؤذن فی مسجدین وفی الشامیة لانه اذا صلّی فی المسجد الاول یکون متنفلاً بالاذان فی المسجد الثانی یصلّی النافلة فلا ینبغی ان یدعوالناس الی المکتوبة وهو لا یساعدهم فیها آه. بدائع الصنائع (ردالمحتار ج۱، ص۲۶۲)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ جمادی الاولی ۱۳۹۲ هجری

## په اذان کښې د "الله" د لفظ زيات اوږدول غلط دی

**سوال**: نن صبا آذانونه په عمومي توګه په داسې ډول وي چه د الله او اله لفظ ښه زيات اوږدوي او نور کلمات هم په همدې ډول اوږدوي نو آيا داسې کول جائز دي؟ بينوا توجروا

**جواب**: د الله او اله د لفظ لام د يوه الف له اندازې څخه زيات اوږدول غلط دي

قال ابن عابدين رحمه الله ان المدّان كان فی الله فاما فی اوّله او وسطه او آخره. (الی قوله) وان كان فی وسطه فان بالغ حتّی حدث الف ثانية بين اللام والهاء كره قيل والمختار انها لا تفسد وليس ببعيد. (رد المحتار ج۱، ص۳۴۸) همدا ډول په الصّلوة خيرمّنَ النّوم کښې د الصلوة لام له يوه الف څخه زيات اوږدول غلط دي

فقط و الله تعالى اعلم. ۲۰ شوال ۹۲ هجری

(نور تحقيق په تتمه کښې دی)

## د تر وخت مخکښې اذان بيرته راګرځول ضروري دي

**سوال**: يوه سړي د سهار آذان د وخت له شروع کولو څخه مخکښې وکړ او څه الفاظ ئې په وخت کښې د ننه ادا کړ نو آيا داسې آذان به بيرته راګرځوي او که څنګه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته د آذان يوه کلمه هم له وخت څخه مخکښې ادا شي نو د ټول آذان راګرځو ضروري دي.

قال فی العلائية فيعاد آذان وقع بعضه قبله كالاقامة خلافا للثانی فی الفجر وفی الشامية (قوله خلافا للثانی) هٰذا راجع الی الآذان فقط فان ابا يوسف رحمه الله يجوّز الآذان قبل الفجر بعد نصف الليل. (رد المحتار ج۱، ص۳۵۸)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۵ رجب ۹۴ هجری

## د تهجدو لپاره اذان منسوخ دی

**سوال**: د تهجد لپاره آذان مسنون دی او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: حضرت بلال رضی الله عنه له صبح صادق څخه څه مخکښې آذان کاوه تر څو چه په تهجد کښې مشغول خلک څه نا څه آرام وکړي او ويده خلک را پورته شي او د سهار لپاره تياري وکړي. ليکن وروسته دا آذان منسوخ شو. د دې لپاره صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم په دی باندې عمل نه دی کړی

قال ابن نجيم رحمه الله وعند ابی حنيفة و محمد رحمهما الله تعالیٰ لا يؤذن فی الفجر قبله لما رواه البيهقی انه عليه الصلوٰة والسلام قال يا بلال لا تؤذن حتّی يطلع الفجر قال فی الامام رجال اسناده ثقات. (البحر الرائق ج۱، ص۲۶۳) واخرج الامام ابو جعفر الطحاوی رحمه الله عن ابراهيم قال شيعنا علقمة الی مكة فخرج بليل

فسمع مؤذنا يؤذن بليل فقال اما هٰذا فقد خالف سنّة اصحاب رسول الله ﷺ لو كان نائماً كان خيراً له فاذا طلع الفجر اذن، قال الطحاوى رحمه الله فاخبر علقمة ان التأذين قبل طلوع الفجر خلاف لسنّة اصحاب رسول الله ﷺ . (شرح معانى الآثار ج۱، ص۶۹)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۱ رمضان ۹٤ھ هجری

## تر اذان وروسته له جومات څخه د تللو حکم

**سوال**: تر آذان وروسته پرته له کوم شرعي عذر څخه له جومات څخه وتل څنګه دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: کوم سړی چه د جومات په حدودو کښې د ننه وي د هغه لپاره تر آذان وروسته پرته له کوم سخت ضرورت څخه وتل مکروه دي. البته که چیرته بیرته د راتلو او په جومات کښې د لمانځه د ادا کولو اراده ولري نو بیا ئې وتل پرته له کراهیت جائز دي که چیرته د جومات له شرعي حدودو څخه د باندې وي یا په جومات کښې د ننه یواځې وي نو بیا هم تلل پرته له کراهیت څخه جائز دی فقط و الله تعالیٰ اعلم ۱۱ ذی قعده ۹٤ھ هجری

## په ګنو اذانونو کښې به سړی د کوم یوه ځواب ورکوي؟

**سوال**: که چیرته له څو جوماتونو څخه د آذان آوازونه اوریدل کیده نو د کوم جومات د آذان ځواب به ورکوي؟ آیا یواځې د خپل کلي د جومات ځواب ورکول کافي دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بهتره دا ده چه د ټولو آذانونو ځواب ورکړي. که چیرته په دې کښې تکلف وي نو د لومړي آذان زیات حق دی د هغه ځواب دې ورکړي که د خپله کلي د جومات آذان وي او که د بل ځای.

قال فى العلائية ولو تكرّر اجاب الاول وفى الشامية سواء كان مؤذن مسجده او غيره بحر عن الفتح بحثا (الى قوله) و يظهر لى اجابة الكل بالقول لتعدد السبب وهو السماع كما اعتمده بعض الشافعية. (ردالمحتار ج۱، ص۲۶۹)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۲ ربیع الآخر ۹۹ھ هجری

(نور تحقیق په تتمه کښې دی)

## که چیرته له اذان سره یو ځای جواب و نه ویل شي نو بیا دې وروسته ورکړي

**سوال**: یوه چا د غلفت له مخې له آذان سره یو ځای د هغه ځواب ور نه کړ او آذان پای ته ورسید. نو آیا اوس د ټول آذان ځواب ورکولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**جواب**: که چیرته تر آذان وروسته ډیر وخت نه وي تیر شوی نو ځواب ورکول مندوب دي

قال فى العلائية ولو لم يجبه حتّٰى فرغ لم اره وينبغى تداركه ان قصر الفصل وفى الشامية (قوله لم اره الخ)

البحث لصاحب البحر وصرّح به ابن حجر فی شرح المنهاج حیث قال فلو سکت حتی فرغ کل الاذان ثم اجاب قبل فاصل طویل کفی فی اصل سنة الاجابة کما هو ظاهر آه.(ردالمحتار ج۱،ص۳۶۹)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۳ ربیع الآخر ۹۹ هجری

## د نفل کوونکي اقامت مکروه دی

**سوال**: یوه سړي که چیرته فرض ادا کړی وي او بیا له جماعت سره یو ځای شي نو آیا اقامت ویلی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**جواب**: له لاندیني عبارت څخه څرګندیږي چه د نفل کوونکي اقامت مکروه دی

قال فی العلائیة یکره له ان یؤذن فی مسجدین وفی الشامیة لانه اذا صلی فی المسجد الاول یکون متنفلاً بالأذان فی المسجد الثانی والتنفل بالأذان غیر مشروع ولان الأذان للمکتوبة وهو فی المسجد الثانی یصلّی النافلة فلا ینبغی ان یدعوا الناس الی المکتوبة وهو لا یساعدهم فیها آه. بدائع (ردالمحتار ج۱،ص۳۶۲)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۳ ربیع الاول ۹۵ هجری

## په لاسپیکر باندې په اذان ورکولو کښې هم ښی او کیڼې خوا ته کتل سنت دي

**سوال**: په لاسپیکر باندې د آذان ورکولو په وخت ښی او کیڼې خوا ته مخ ګرځول ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**جواب**: د حی علی الصلوة او حی علی الفلاح ویلو په وخت کښې ښی او کیڼې خوا ته کتل په آذان او او قامت کښې په هر حال سنت دي، تر دې پورې چه د کوچني په غوږ کښې د آذان ورکولو په وخت هم ښی او کیڼې خوا ته کتل سنت دي، په لاسپیکر باندې د آذان کولو هم همدغه حکم دی.

فقط و الله تعالی اعلم. ۲۹ ربیع الآخر ۹۷ هجری

## په اقامت کښې هم ښی او کیڼې خوا ته کتل سنت دي

**سوال**: د آذان غوندې په اقامت کښې د حی علی الصلوة او حی علی الفلاح ویلو په وخت کښې ښی او کیڼې خوا مخ ګرځول سنت دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! په اقامت کښې هم سنت دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۳ ربیع الآخر ۹۹ هجری

## په ریل ګاډي کښې د اذان د ورکولو حکم

**سوال:** په ریل ګاډي کښې که چیرته په جماعت سره لمونځ ادا شي نو آیا آذان ورته سنت دی او که نه؟ که چیرته سنت وي نو په هرې خانې یا ډبې کښې ئې ځان ځان ته آذان مستحب دی او که د یوې خانې یا ډبې آذان د ټول ریل ګاډي د خلکو لپاره به کافي وي؟ که ئې د نورو ډبو خلک واوري او که ئې وا نه وري؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** سفر که شرعي وي یا لغوي چه ټول ملګري یو ځای وي نو آذان کول مستحب دي. او اقامت سنت مؤکد دی. په سفر کښې د یواځې لمونځ کولو هم همدغه حکم دی. د ریل په خانه یا ډبه کښې لکه څرنګه چه خلک یو ځای وي د دې لپاره که یواځې لمونځونه کوي او که په جماعت سره په دواړو صورتونو کښې آذان مستحب دی او اقامت سنت مؤکد دی. په روان ریل ګاډي کښې د یوې خانې مسافرین د بلې خانې له مسافرینو سره هیڅ ډول تعلق نه لري نو ځکه په هرې ډبې کښې به مستقل آذان او اقامت کیږي اګر که دویمې ډبې ته د آذان آواز رسیدلی وي.

فقط و الله تعالی اعلم. ۲۸ صفر ۹۸ هجری

## د جومات په داخل کښې د اذان ورکولو حکم

**سوال:** په بهشتي ګوهر کښې لیکلي دي چه د جومات په دننه کښې آذان ورکول مکروه تنزیهي دي او نوره تشریح ئې نه ده لیکلې، د مهربانۍ له مخې د دې له تشریح او تفصیل څخه مو خبر کړی چه د مکروه والي سبب څه دی؟ بینوا توجروا.

**جواب:** په بهشتي ګوهر کښې مسئله صحیح لیکل شوې ده. په جومات کښې آذان ورکو د اولی خلاف دی ځکه چه له آذان څخه مقصد دا دی چه تر ټولو زیات خلک په دې خبر شي چه د جماعت لمونځ کیدونکی دی. او ښکاره خبره ده چه د جومات په دننه کښې د آذان په ورکولو سره آواز دومره لرې نه ځي څومره چه د جومات له باهر څخه په یوه لوړ ځای باندې د آذان په ورکولو سره ځي.

قال فی الهندیة وینبغی ان یؤذن علی المأذنة او خارج المسجد ولا یؤذن فی المسجد کذا فی قاضی خان والسنّة ان یؤذن فی موضع عال یکون اسمع لجیرانه و یرفع صوته ولا یجهد نفسه کذا فی البحر الرائق. (عالمگیریة ج۱، ص۵۵) وفی الشامیة تحت (قوله فی مکان عال) فی القنیة و یسن الأذان فی موضع عال و الاقامة علی الارض (الی قوله) وفی السراج وینبغی للمؤذن ان یؤذن فی موضع یکون اسمع للجیران ویرفع صوته ولا یجهد نفسه لانه یتضرّر آه. (ردالمحتار ج۱، ص۳۵۷)

له دغو عباراتو څخه څرګندیږي چه د جومات په خارج کښې د آذان له ورکولو څخه مقصد

یواځې د آواز رسول دي. لکه څرنګه چه د جُمعې د ورځې دویم آذان په جومات کښې دننه کیږي ځکه چه په دې آذان کښې یواځې تر حاضرینو پورې د آواز رسیدل مقصود دي. نن صبا په عامه توګه په لاسپیکرونو کښې آذانونه کیږي چه له دې وجې په جومات یا کوم بل تیټ ځای کښې آذان ورکول کیږي. په دې کښې په هر حال د آواز د لوړوالي مقصد پوره کیږي نو ځکه په لاسپیکر باندې په جومات کښې د ننه د آذان په ورکولو کښې هیڅ ډول کراهیت نه څرګندیږي. همدارنګه د قاضي په مذکوره عبارت کښې **(على المأذنة او خارج المسجد)** على سبيل الترديد څرګنده شوه چه آذان على المأذنة په صورت کښې د جومات نه د باندې د آذان کولو ضرورت پاتې نه شو. بلکه عام عادت هم همدغه دی چه مأذنة د جومات پر سر باندې وي او د جوماتِ نه د باندې نه وي.

**و يؤيده العبارات الآتية قال ابن عابدين رحمه الله قلت و الظاهر ان هذا فى مؤذن الحى اما من اذن لنفسه او لجماعة حاضرين فالظاهر انه لا يسن له المكان العالى لعدم الحاجة تأمل (ردالمحتار ج۱،ص۳۵۷) وفى الهندية و يكره الآذان قاعداً و ان اذان لنفسه قاعداً فلا بأس به. (عالمگيرية ج۱،ص۵۳) وفى الشامية وقال ابن سعد با لسند الى أم زيد بن ثابت رضي الله عنه كان بيتى اطول بيت حول المسجد فكان بلا يؤذن فوقه من اول ما اذن الى ان بنى رسول الله ﷺ مسجده فكان بعد يؤذن على ظهر المسجد وقد رفع له شئ فوق ظهره. (ردالمحتار ج۱،ص۳۶۰)**

د شامي له دې آخري عبارت څخه په ښه توګه څرګنده شوه چه په جومات کښې د ننه د آذان د مکروه والي علت یواځې د آواز نه رسیدل دي او که نه نو که چیرته له نفس جومات سره د کراهیت کوم تعلق وای نو د جومات په سر باندې به هم آذان مکروه وای. حالانکه د نبي کریم ﷺ په زمانه کښې په همدې باندې عمل کیده. همدارنګه د جُمعې د ورځې دویم آذان په اتفاق سره په جومات کښې دننه جائز دی. چه له دې څخه هم ثابتیږي چه د نورو آذانونو لپاره د خارج المسجد حکم یواځې د آواز د رسیدنې لپاره دی.

**وفى اعلاء السنن واعلم ان الاذان لا يكره فى المسجد مطلقاً كما فهم بعضهم من بعض العبارات الفقهية و عموه هذا الاذان (الآذان بين يدى الخطيب) بل مقيدا بما اذا كان المقصود اعلام ناس غير حاضرين (الى قوله) فى الجلابى انه يؤذن فى المسجد او ما فى حكمه لا فى البعيد عنه قال الشيخ قوله فى المسجد صريح فى عدم كراهة الاذان فى داخل المسجد وانما هو خلاف الاولى اذا مست الحاجة الى الاعلان البالغ وهو المراد بالكراهة المنقولة فى بعض الكتب فافهم. (اعلاء السنن ج۸،ص۴۹)**

البته په جومات کښې دننه جهر مفرط (یعني ډیر لوړ آواز) په ځانګړې توګه مسقّف (چت) ته نژدې برخه کښې د ادب خلاف څرګندیږي د دې لپاره بهتره دا ده چه لاسپیکر له جومات څخه د

باندې کېښودل شي که چیرته د باندې د کېښودلو کوم انتظام نه وي نو بیا په جومات کښې دننه ئې هم کېښودل څه پروا نه لري فقط و الله تعالی اعلم ۳ ربیع الاول ۹۶ هجری

## د اذان او اقامت صحیح طریقه

**سوال** : په عامه توګه قاریان صاحبان اقامت داسې وایي اَللّٰهُ اَکْبَرُ اللّٰهُ اَکْبَرْ یعنې د لومړي تکبیر راء مرفوع ادا کوي او په دویم تکبیر کښې د الله د نامه الف ساقطوي او له راء سره ئې لګوي او ادا کوي ئې. همدارنګه په هرې لومړۍ کلمې باندې اعراب لګوي. اَشْهَدُاَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ. اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ. اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ. همدارنګه حی علی الصلوةِ. حیّ علی الفلاحِ. قد قامتِ الصلوةُ وایي دا طریقه خو د اصولو مطابق ده لیکن څرګندیږي چه تاسو دې ته خلاف سنت وایی لهذا د دې وضاحت مطلوب دی. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د آذان او اقامت مسنونه طریقه دا ده چه هره کلمه ساکنه وویل شي. په آذان کښې په هرې کلمې باندې وقف وشي او په اقامت کښې له هرو دوو کلمو وروسته باید وقف وشي لیکن لومړۍ کلمه به هم د وقف په نیت سره ساکنه ادا کوي. قد قامت الصلوة به هم دوه وارې همداسې وایي. په آذان او اقامت کښې دوه تکبیرنه یوه کلمه ګڼل کیږي. په آذان کښې په هرو دوو تکبیرونو کښې لومړی تکبیر او په اقامت کښې د مخکښینیو دریو تکبیرونو په راء باندې رفع (پیښ) لګول د سنتو خلاف دی. دا باید ساکن وویل شي یا د فتحې په لګولو سره له دویم تکبیر سره لګولی ادا شي.

قال فی شرح التنویر وبفتح راء اکبر والعوام یضمونها وقال ابن عابدین رحمه الله بعد ذکر النقول المختلفة والحاصل ان التکبیرة الثانیة فی الآذان ساکنة الرّاء للوقف حقیقة ورفعها خطأ واما التکبیرة الاولی من کل تکبیرتین منه وجمیع تکبیرات الاقامة فقیل محرکة الراء بالفتحة علی نیة الوقف وقیل بالضمة اعراباً وقیل ساکنةٌ بلا حرکةٍ علی ما هو ظاهر کلام الامداد والزیلعی والبدائع وجماعة من الشافعیة (وبعد اسطر) ثم رأیت لسیّدی عبد الغنی رسالة فی هذه المسئلة سمّاها تصدیق مَنْ اخبر بفتح راء الله اکبر اکثر فیها النقل وحاصلها ان السنة ان یسکن الراء من الله اکبر الاول او یصلها بالله اکبر الثانیة فان سکنها کفی وان وصلها نوی السکون فحرّك الرّاء بالفتحة فان ضمها خالف السنة لان طلب الوقف علی اکبر الاول صیرهٔ کالساکن اصالة فحرك بالفتح. (ردالمحتار ج۱ ص۳۵۸)

فقط والله تعالی اعلم ۱۳ ذی قعده ۹۸ هجری

## د اذان او اقامت په تکبیر کښې په راء باندې پیښ لوستل غلط دي

**سوال**: څه فرمايي د دين علماء كرام او د شرع متين مفتيان كرام د دې مسئلې په باره كښې چه د اكبر د لفظ راء د جلاله د اسم سره وصل كول صيح دي او كه نه؟ كه چيرته صحيح وي نو راء به مفتوح ادا كيږي او كه مضموم؟ كه چيرته مفتوح ادا كيږي نو وجه ئې بيان كړئ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دې دوه صورتونه دي، يو دا چه راء دې ساكنه ادا شي، په دې صورت كښې د الله د لفظ همزه نه ساقطيږي، دويم صورت دا دى چه راء ته فتحه وركړ شي او د الله له اسم سره دې وصل شي او همزه ساقطه شي. راء لره مرفوع ادا كول غلط دي. ځكه چه د الآذان جزم حديث له وجې راء د اصلي ساكن په حكم كښې ده. لهذا د وصل په حالت كښې د ساكنينو د التقاء څخه د حفاظت لپاره په راء باندې فتحه ادا كيږي. و التفصيل فى الشامية.

فقط والله تعالى اعلم. ۲۱ جمادى الاولى ۹۹ھ هجرى

## د اقامت په وخت كښې د لاسونو تر نامه لاندې نيول د سنتو خلاف دي

**سوال**: چه كله مؤذن اقامت وايي نو په دې وخت كښې عام مقتديان لاسونه تر نامه لاندې تړي او دريږي ليكن سنت ئې نه ګڼي، بيا تر تكبير تحريمه وروسته د سنتو مطابق لاسونه تړي. ښكاره ده چه دا كار كوي او كه نه؟ څرګنديږي چه تاسو له دې څخه خلک منع كوئ، آيا دا خبره صحيح ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تر تكبير تحريمه مخكښې د لاسونو تړل ثابت نه دي. كه چيرته سنت هم و نه ګڼل شي نو بيا هم چونكه د شريعت په حدودو باندې زياتوالى دى ځكه مكروه دى. برسيره پر دې زوړند لاسونه د تكبير تحريمه په وخت كښې غوږونو ته په پورته كولو كښې چه څومره د احكم الحاكمين ذات د شان د عظمت اظهار كيږي د تړلو لاسونو په پورته كولو كښې دومره نه كيږي. لهذا د دې رسم پريښودل او نور خلک له دې څخه منع كول لازم دي. فقط و الله تعالى اعلم.

۵ ذى قعدة ۹۸ھ هجرى

## تر اذان وروسته په دعاء كښې د لاسونو پورته كول ثابت نه دي

**سوال**: د اكابرو علماوو له معمول څخه څرګنديږي چه تر آذان وروسته دعاء كښې لاسونه نه پورته كوي. په داسې حال كښې چه په ګڼو حديثونو كښې د لاسونو پورته كول د دعاء له آدابو څخه دى.

عن الفضل بن عباس رضى الله تعالى عنهما قال قال رسول الله ﷺ مثنى مثنى تشهد فى كل ركعتين و تخشع وتضرع وتمسكن ثم تقنع يديك يقول ترفعهما الى ربك مستقبلاً ببطونهما وجهك و تقول يارب يارب من لم يفعل ذلك فهى كذا و كذا رواه الترمذى والنسائى وابن خزيمة فى صحيحه ورجاله ثقات. (اعلاء السنن ج۳ ص۲۰۸)

نور هم څو حديثونه شته د حافظ سيوطي رحمه الله مستقله رساله "فض الوعاء في احاديث رفع اليدين فى الدعاء". هيله ده چه د مفصل ځواب په ليكلو سره مونږ ته تسلي راكړئ. جزاكم الله

تعالی احسن الجزاء

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دعاء دوه ډولونه دي يوه دا چه پرته له وظيفې د مخصوصو الفاظو مطلقاً د کوم حاجت غوښتنه. دويمه دا چه د وظيفې الفاظ که چيرته له کوم خاص وخت سره متعين وي او که مطلق وي، په احاديثو کښې د دعاوو د مواقعو له پلټنې څخه ثابتيږي چه د لاسونو پورته کول د احاديثو له مخې په اول ډول پورې اړه لري، په دويم ډول پورې هيڅ تعلق نه لري الا ما ورد فيه النص.

لکه څرنګه چه تر اوداسه وروسته. جومات ته د ننوتلو او وتلو. کور ته د وتلو او ننوتلو، بيت الخلاء د ننوتلو او وتلو. د سفر ابتداء او انتهاء، موټر ته د سپريدو په وخت. بازارته د ننوتلو په وخت، د کوم شي د اخيستلو په وخت، دکوم مصيبت وهلي د ليدو په وخت. د مريض پوښتنه او داسې نورو امورو په اړه په ماثوره دعا ګانو کښې هيڅوک د فع اليدينو قائل نه دي د جماع او انزال په وخت پورې تړلي دعاګانې هم منقول دي، په هغو کښې د لاسونو د پورته کولو حکم همداسې هم مستبعد دي. له بي بي سره په لومړي خلوت کښې او د غلام. وينځې يا ځناور د اخيستلو په وخت باندې راغلي دي چه د هغه د تندي ويښتان به په لاس کښې نيول کيږي او دا دعاء به ويل کيږي چه **(اللهم انی اسئلك من خيرها وخير ما جبلتها عليه واعوذبك من شرها وشر ما جبلتها عليه)** په دې وخت کښې د لاسونو د پورته کولو په ځای د تندي د ويښتانو د نيولو حکم دی بلکه په دې صورت کښې لاسونه پورته کيدلی هم نه شي.

همدارنګه د کوم فوري حاجت لپاره لنډه دُعا او د چا په غوښتنې باندې د هغه لپاره په دُعائيه کلماتو کښې د لاسونو پورته کول ثابت نه دي بلکه د نبي کريم ﷺ دا عمل وو چه پرته د لاسونو د پورته کولو د دُعا غوښتونکي د اورولو په مقصد په لوړ آواز سره به ئې دا کلمات ويل چه

**روی البخاری رحمه الله عن جرير رضي الله عنه قال کنت لا اثبت علی الخيل فضرب النبی ﷺ فی صدری حتی رأيت اثر اصابعه فی صدری وقال اللهم اجعله هادياً مهدياً.**

په دې موقعه باندې نبي کريم ﷺ د حضرت جرير رضي الله عنه لپاره په دعا کښې د رفع يدين په ځای د هغه په سينې باندې د لاس په وهلو سره دعائيه کلماتِ لوستل.

د مثال په توګه باندې دا يوه واقعه را نقل شوې ده او که نه نو په احاديثو کښې د دې مثالونه بيخي زيات دي چه نبي کريم ﷺ د چا له خوا څخه د دُعا په غوښتنې باندې هغه ته په ور اورولو سره لنډې دعائيه کلمې لوستلې، په دې مواقعو کښې د لاسونو نه پورته کول ثابت دي او د ابن جرير رضي الله عنه په کيسه کښې د لاسونو نه پورته کول متيقن دي للمنافاة الظاهرة بين الرفع والضرب فی الصدر.

فقط والله تعالی اعلم. ۳ ذيقعده ۹۹ هـ

**قال رسول الله ﷺ**

**اذا سمعتم النداء فقوموا فانها عزمة من الله (رواه السيوطي عن الحلية)**

# ارشاد الانام

## بجواب ازالة الاوهام

حدیث، فقه، تعامل صحابه رضی الله تعالی عنهم او له څلورگوني مذاهبو څخه د دې ثبوت چه مقتدیان به د اقامت د لومړي تکبیر په اوریدو سره لمانځه ته باید را ولاړ شي.

- تاریخ تالیف ———— ۳ / صفر، سنه: ۱۳۷۲ هـ
- اول اشاعت: ———— سنه: ۱۳۷۹.
- موضوع: ———— مقتدی باید د اقامت په کوم لفظ ویلو سره ودریږی.

- په عقلی طریقې سره بحث
- د احادیثو په طریقې سره بحث
- د فقهې په طریقې سره بحث
- د صحابه کرامو رضی الله عنهم تعامل
- د فقهاء کرامو رحمهم الله نصوص
- د څلور واړه مذاهبو تعامل.

د دې رسالې وروسته له تالیف نه یو څو کاپیانې د ازالة الاوهام مؤلف اونورو حضراتو ته لیږل شوې وې په دې اراده چه دا فتنه په همدې ځائ ختمه شی. له همدې وجهې نه په هغه وقت کښې د هغې عمومی اشاعت او خپرونه ودریدلې وه لیکن متأسفانه چه دا سلسله ختمه نشوه. لهذا په کال: (۱۳۷۹) کښې دا شائع او خپره شوه.

بسم الله الرحمٰن الرحیم

**حامداً و مصلیاً و مسلماً**

**اما بعد:** بنده رشید احمد لدهیانوي عفا الله عنه د پوهې او فراست د خاوندانو په خدمت کښې د دې خبرې څرګندونه کوي چه د فتنې په دې ډک دور کښې د دجل او الحاد وريځ په ځلور کنجه دُنيا باندې را خپره شوې ده، د ارتداد باد او طوفان عالمګير دی. د صداقت بيړۍ د باطل د صرصر باد له موجونو څخه په لړزان دی. د مسلمه امت بيړۍ د کفر او ارتداد خطرناکې کندې ته لويدلی دی د انګريزانو د وقار د ساتنې لپاره د انګريزانو د نبي غلامان د سيد الکونين، ختم المرسلين، آقائ نامدار (فداه ابي و امي) ﷺ مبارک نوم او د ناموسِ رسالت له دُنيا څخه د ختمولو منصوبې جوړوي، په داسې حالت کښې په مسلمانانو فرض دی چه ټول جزئي اختلافات پريږدي او سره يو شي او د ناموسِ رسالت د ساتنې لپاره د خدای او د هغه د رسول ﷺ نوم په دنيا کښې د لوړ ساتلو لپاره، د خدای په زمکه کښې د خدای په مخلوق باندې د خدائي قانون د نافذولو لپاره، همدارنګه د خپل محبوب ملک پاکستان د استحکام او د خپل ځان، مال، عزت او خويندو لونړو د عصمت او پردې د محفوظ ساتنې لپاره هر ډول عيش او آرام، سکون او راحت پريږدي او سر تر پايه مستعد يعنې تيار او سر په ورغوي کښې کښيږدي. زمانې مونږ لره له دوارو اوږو نيولي يو او کشوي مو ليکن مونږ يو چه تر اوس پورې د غفلت له خوب څخه نه را ويښيږو. ليکن په ياد ولرئ چه ((زمانه بهترين استاذ دی)) که چيرته خدای مکړه د مرزائي امت د منحوسو او سپيرو خوبونو تعبيرونه پوره شول نو په ياد ولرئ چه له مسلمانانو سره به تر دې زيات کومه معامله کيږي کومه چه په مشرقي پنجاب کښې تر سره شوه.

نہ سمجھو گے تو مٹ جاؤ گے اے اربابِ پاکستان

تمہاری داستاں تک بھی نہوگی داستانوں میں

افسوس او سل افسوسه چه مونږ تر اوسه پورې د زمانې په رفتار باندې پوه نه شولو او خپل منځي جزئي اختلافاتو باندې (هغه هم با لکل معمولي يعنې مستحب او مندوب مسائلو باندې) جګړې کوو او فتنې فسادونه برپا کوو. نن زمونږ بعينه هغه حالت دی په کوم وخت کښې چه له عيسايانو څخه بادشاهي لاندې کيدلې او د هغوی پادريان په دې وخت کښې د مسيح عليه السلام د بول و براز (غټې او وړې متيازې) په باره کښې پخپل منځ کښې مناظرې کولې. او همدغه حالات د مسلمانانو په لاس د دوی د اقتدار د واګيو د سلب کيدو باعث وګرځيدل ـــ

جب چلی بغداد میں تاتار کی تیغ نیام مفتیانِ شرع میں جاری تھی اک جنگِ کلام

ایک کہتا تھا کہ کوّا ثابت و سالم حلال     دوسرا کہتا کہ کالی چونچ سے تا دم حرام

اس زمانے کے مؤرخ نے جو دیکھا تو کہا     مفتیاں را مژدہ کارِ ملّتِ بیضا تمام

ليکن څه وکړو مجبوره يو، تر څو پورې چه د مسلمه امت د تعامل په خلاف يوه نه يوه مسئله را پورته نه شي تر هغه وخته پورې شهرت نه راځي. عنايت الله مشرقي د ټولو مسلمانانو د قبلې سمت غلط او لمونځونو لره ئې د فاسد بللو له مخې د علامه لقب پيدا کړ چه غابښ ماتوونکی ځواب ئې مونږ پخپلې رسالې «المشرفي على المشرقى» کښې ورکړې دی او بيا د تعجب خبره دا ده چه د دې ډول د شهرت غوښتونکي حضرات د دې په ښکارولو سره چه دا مسئله تر ټولو مخکښې يواځې مونږ دا مسئله را پورته او حل کړې ده. له عوامو څخه د مجدد د خطاب لاس ته راوړلو غواړي. په داسې حال کښې چه د قبلې سمت، د کارغه حلال والی او حراموالی. د جُمعې دويم آذان په جومات کښې کيدل، په اقامت کښې د حی علی الفلاح د ويلو په وخت لمانځه ته را پورته کيدل او داسې نورې پوښتنې څو څو ځلې را پورته شوي دي او حقاني علماوو هغه فتنې په هم هغه وخت له منځه وړي دي. اوس دا د تجديد يا نوي والي مدعيان يا خو د خپل جهالت له وجې د دغو فتنو په ماضي کښې له شويو فيصلو څخه ناخبره دي او يا د معلوم والي تر څنګ ځان په ناپوهي کښې د اچولو په ذريعې سره ځان مشهورول غواړي. د دې سلسلې يوه سخته رساله «ازالۀ اوهام» ده چه په هغې کښې د دې د ثابتولو ناکام کوشش شوی دی چه کله مؤذن د اقامت ويلو په وخت کښې حی علی الفلاح ووائي نو د مقتديانو لپاره په دې وخت دريدل په اتفاق سره سنت دي او له دې څخه مخکښې دريدل ګناه ده. مونږ تر يوه وخته پورې خو دا بحث د بې فائدې ګڼلو له وجې دې خوا ته هيڅ توجه و نه کړه او په دې باره کښې چه کومې پوښتنې راتلې هغه مو هم ځنډولې. البته په دې مضمون باندې حيران خو خامخا وم.

سر خدا که عابد و زاہد کسے نہ گفت     در حیرتم کہ بادہ فروش از کجا شنید

اوس په داسې حال کښې چه دا فتنه له حد څخه زياته شوه او د دې په باره کښې د پوښتنو يوه کوږه زما په مخکښې پرته ده نو د مجبورۍ له مخې په نه زړه مې په دې باره کښې قلم را پورته کړ. څرګنده دې وي چه په دې مسئله کښې په دريو طريقو سره بحث او استدلال کيدلی شي. عقل، حديث. فقه لهذا په دريواړو طريقو سره لنډ او په قدر د ضرورت ليکنې کيږي.

## بحث په طريقه د عقل

شرعاً. عرفاً. وضعاً لنډه دا چه د هر حيثيت له مخې امام امير دی. د لمانځه قائمول د هغه په اختيار کښې دی. له دې امله اقامت او د خلکو دريدل دواړه د امام تابع دي د خلکو دريدل د

اقامت له یوه لفظ سره هم تړاو نه لري. البته په اقامت کښې د امام امر د اقامة الصلوة اعلام یا خبرداري ده. د دې لپاره د مقیم د الله اکبر په ویلو سره مقتدي پوهیږي چه امام د اقامتِ صلوة امر کړی دی. لهذا د امام د امر د په ځای کولو لپاره باید فوراً خلک ودریږي.

## بحث په طریقه د حدیثو

د حدیثو دذخیرې له پلټنې څخه هم دا څرګندیږي چه د اقامت له هیڅ یوه لفظ سره د خلکو د دریدو هیڅ تعلق نشته. بلکه دا دواړه د امام تابع دي. لکه څرنګه چه د صحیح مسلم له دې روایت څخه ښکاره ده چه اقامت د امام تابع دی.

**عن جابر بن سمرة رضي الله عنه قال کان بلال رضي الله عنه یؤذن اذا دحضت الشمس فلا یقیم حتی یخرج النبی ﷺ فاذا خرج الامام اقام الصلوٰة حین یراه. (مسلم)**

او په دې حدیث کښې مذکور دي چه د خلکو دریدل هم د امام تابع دي: **عن عبدالله بن ابی قتادة عن ابیه رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ اذا اقیمت الصلوٰة فلا تقوموا حتی تروني. (بخاری)**

څرګنده شوه د خلکو دریدل د اقامت په له یوه لفظ سره تعلق نه لري. چنانچه حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله په فتح الباري کښې فرمایي:

**وقوله حتی تروني تسویغ للقیام عند الرؤیة وهو مطلق غیر مقید بشیء من الفاظ الاقامة ومن ثم اختلف المشائخ فیه کما سیأتی.**

د مقیم (اقامت ویونکي) الله اکبر ویل د اعلان دی چه د لمانځه د اقامت امر شوی دی. په دې باندې دا حدیث دلیل دی:

**عن عبد الرزاق عن ابن جریج عن ابن شهاب ان الناس کانوا ساعة یقول المؤذن الله اکبر یقومون الی الصلوٰة فلا یأتی النبی ﷺ مقامه حتی تعتدل الصفوف. (فتح الباری)**

او امام سیوطي رحمه الله له حلیه ابي نعیم څخه روایت کړی دی: **اذا سمعتم النداء فقوموا فانها عزمة من الله.** د دې حدیث په شرح کښې علامه مناوي رحمه الله فرمایي: **ای اسعوا الی الصلوٰة او المراد بالنداء الاقامة والعزمة بالفتح الامر.**

اوس دا سوال پاتې شو چه کله حضرت بلال رضي الله عنه به د نبي کریم ﷺ تر وتلو وروسته اقامت وایه او صحابهٔ کرام رضی الله عنهم د اقامت تکبیر لره د نبي کریم ﷺ د وتلو خبرداري ګڼله او دریدل نو د **(اذا اقیمت الصلوٰة فلا تقوموا حتی تروني)** څه مطلب شو؟ ځکه چې له دې حدیث څخه څرګندیږي چه اقامت د نبي کریم ﷺ تر وتلو مخکښې ویل کیده نو د اقامت تکبیر د نبي کریم ﷺ د خروج اعلام

نه شو د دې لپاره د خلکو دریدل ئې د نبي کریم ﷺ له خروج (وتلو) سره متعلق کړ؟ د دې څواب دا دی چه په ابتداء کښې حضرت بلال رضی الله عنه کله کله د نبي کریم ﷺ تر وتلو مخکښې اقامت وایه نو د دې په اړه دا "اذااقیمت الصّلوة" وویل شول. چنانچه په فتح الباري کښې دي:

**وبأن صنيعهم في حديث ابي هريرة رضی الله عنه كان سبب النهي عن ذلك في حديث ابي قتادة رضی الله عنه وانهم كانوا يقومون ساعة تقام الصلوة ولو لم يخرج النبي ﷺ فنهاهم عن ذلك.**

وروسته د حضرت بلال همدغه معمول شو چه د بني کریم ﷺ تر وتلو وروسته به ئې اقامت وایه لکه څرنګه چه د مسلم شریف په تیر شوي حدیث کښې ښکاره دی. لهذا تر دې وروسته به خلک له دې وجې دریدل چه د اقامت له تکبیر څخه به دا خبرداري وه چه نبي کریم ﷺ را وتلی دی لکه څرنګه چه د عبد الرزاق په حدیث کښې تیر شول.

لنډه دا چه امام که له جومات څخه د باندې وي یا له محراب سره نژدې وي په هر صورت کښې ئې د خلکو دریدل د امام له دریدلو سره تړلی دی.

د همدې لپاره په فیض الباري شرح د بخاري کښې فرمایي: **(ان الامام ان كان خارج المسجد ينبغي للمقتدين ان يقوموا التسوية الصفوف اذا دخل المسجد وان كان في المسجد فالمعتبر قيامه من موضعه).**

او امام مالک په موطاء کښې فرمایي: **(لم اسمع في قيام الناس بحد محدود الا اني ارى ذلك على طاقة الناس فان منهم الثقيل والخفيف).**

له دې څخه څرګنده شوه چه د خلکو دریدل د اقامت له هیڅ یوه لفظ سره نه دی تړلی لیکن صحابهٔ کرامو رضوان الله علیهم چونکه د اقامت تکبیر د امام د دریدلو علامه ګڼله نو ځکه د هغوی تعامل په دې ډول باندې وو چه د الله اکبر د لفظ په اوریدو سره به و دریدل.

د امام له وتلو څخه مخکښې د دریدلو ممانعت کوم چه په حدیث کښې راغلی دی هغه هم تنزیهي دی. د لاندیني دلائلو له مخې دا خبره څرګندیږي.

۱ - په فیض الباري شرح د بخاري کښې دي: **(اما القيام قبل رؤيته فعده عبثاً كما قال مرةً اربعوا على انفسكم انكم لا تدعون اصم ولا غائبا حين راهم يبالغون في الجهر فليس فيه ان الجهر ممنوع كما فهمه بعضهم بل فيه ايذان يكون الجهر عبثاً فهكذا القيام من قبل).**

۲ - حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله په فتح الباري کښې فرمایي: **واما حديث ابي هريرة رضی الله عنه الآتي قريباً بلفظ اقيمت الصلوة فسوى الناس صفوفهم فخرج النبي ﷺ ولفظه في مستخرج ابي نعيم فصف الناس صفوفهم ثم خرج علينا ولفظه عند مسلم اقيمت الصلوة فقمنا فعدلنا الصفوف قبل ان يخرج الينا النبي ﷺ**

فاتی فقام مقامه الحدیث و عنه فی روایة ابی داؤد ان الصلوٰة کانت تقام لرسول الله ﷺ فیأخذ الناس مقامهم قبل ان یجیء النبی ﷺ فیجمع بینهٗ و بین حدیث ابی قتادة رضی الله عنه بان ذٰلک ربما وقع لبیان الجواز.

همدا ډول مضمون په عمدة القاري او داسې نورو کښې هم شته. له دې څخه ثابته شوه چه د امام له وتلو څخه مخکښې هم دریدل جائز دي له دې امله لا محاله نهی په تنزیه باندې محمولیږي.

۳- علامه بدر الدین عینی رحمه الله په عمدة القاري کښې فرمايي: قال العلماء والنهی عن القیام قبل ان یروه لئلا یطول علیهم القیام. او په فتح الباري شرح د بخاري کښې دي: فنهاهم عن ذٰلک لاحتمال ان یقع لهٗ شغل یبطئ فیه عن الخروج فیشق علیهم انتظارهٗ.

له دې څخه څرګنده شوه چه دا نهی محض د شفقت پر بناء ده.

د ټولو حدیثونو خلاصه دا شوه چه د امام له دریدو څخه مخکښې د خلکو دریدل مکروه تنزیهي دی. بهتره دا ده چه خلک د امام تر دریدو وروسته ودریږي او د امام د دریدلو اعلام (خبرداري) د اقامت له شروع (د الله اکبر له لفظ) څخه کیږي د دې لپاره مقتدي دې باید د الله اکبر د لفظ په اوریدو سره ودریږي. په همدې باندې د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم اجمعین تعامل وو.

عن کهمس قال قمنا الی الصلوٰة بمنی و الامام لم یخرج فقعد بعضنا فقال لی شیخ من اهل الکوفة ما یقعدک قلت ابن بریدة قال هٰذا السمود فقال لی الشیخ حدثنی عبد الرحمٰن بن عوسجة عن البراء بن عازب رضی الله عنه قال کنا نقوم فی الصفوف علی عهد رسول الله ﷺ طویلا قبل ان یکبر الخ قال ابو الحسن السندی هٰذا لا یدل علی ان قیامهم کان لانتظار النبی ﷺ بل یجوز ان یکون بعد حضوره ﷺ (فتح الودود) و قال فی البذل فثبت بهٰذا ان القیام فی انتظار الامام غیر منهی عنه و ثبت ان ما قال ابن بریدة رضی الله عنه ان هٰذا السمود المنهی عنه غیر صحیح. (بذل المجهود)

## بحث د فقهې په طریقې سره

لکه څرنګه چه په حدیثو کښې ئې د خلکو دریدل د امام د دریدلو تابع وګرځاوه د دې لپاره په فقهې کښې ئې هم همدا معمول به بللی دی. چنانچه په عالمګیري کښې دي:

فاما اذا کان الامام خارج المسجد فان دخل المسجد من قبل الصفوف فکلما جاوز صفا قام ذٰلک الصف و الیه مال شمس الائمة الحلوانی و السرخسی و شیخ الاسلام خواهر زاده و ان کان الامام دخل المسجد من قدامهم یقومون کما رأوا الامام. همدا مضمون په رد المحتار. بدائع الصنائع او تبیین الحقائق کښې هم شته. په بدائع کښې دا عبارت هم شته: و لان القیام لاجل الصلوٰة و لا یمکن اداءها بدون

الامام فلم یکن القیام مفیداً.

له دغو عبارتونو څخه څرګنده شوه چه د خلکو دریدل له اقامت سره هیڅ تړاو نه لري بلکه د امام د دریدلو تابع دي. چنانچه پخه د ازالهٔ اوهام مؤلف هم دا تسلیم کړی دی او د ازالهٔ اوهام په اولسم (۱۷) مخ کښې فرمایي "دا د دې لپاره چه د جماعت لمونځ پرته له امام څخه ناممکن وي او خلک د لمانځه لپاره دریږي نو د امام له دریدلو پرته دریدل لا حاصل او دا د مسلمان شان نه دی چه په لا حاصل (بې فائدې کار) پسې شي" نو څرګنده شوه چه د امام د دریدو په حالت کښې د مقتدي په دریدلو کښې هیڅ کراهیت نشته اګر که له اقامت څخه مخکښې وي.

بله دا پوښتنه پاتې شوه چه که چیرته امام په جومات کښې موجود وي نو هغه به د اقامت په کوم لفظ باندې دریږي چه د هغه په متابعت کښې مقتدي هم د هغه لفظ په اویدو سره ودریږي. په دې باره کښې چونکه په حدیث کښې کوم حد نه دی ټاکل شوی د دې لپاره امام مالک رحمه الله او جمهورو علماوو کوم حد نه دی ټاکلی البته د اقامت لومړي تکبیر لره د اعلام په ګڼلو سره هغو د اقامت له ابتداء څخه دریدل مستحب ګڼلی دی. علامه بدر الدین عینی رحمه الله په عمدة القاري کښې فرمایي: فذهب مالك وجمهور العلماء الى انه ليس لقيامهم حد ولكن استحب عامتهم القيام اذا اخذ المؤذن فى الاقامة.

سعید بن المسیب او عمر بن عبد العزیز رحمهما الله دا خیال وکړ د اعلام تکبیر د امام په قیام پورې اړه لري، همدارنګه د صحابهٔ کرامو رضوان الله علیهم تعامل هم په همدې باندې دی چه د الله اکبر د لفظ په اوریدو سره به دریدل. له دې امله د مؤذن د الله اکبر په ویلو سره د دریدلو د وجوب قول کړی دی.

وعن سعيد بن المسيب وعمر بن عبد العزيز رحمهما الله تعالى اذا قال المؤذن الله اكبر وجب القيام واذا قال حى على الصلوة اعتدلت الصفوف واذا قال لا إله الا الله كبر الامام. (عمدة القارى)

له امام اعظم رحمه الله څخه د حی علی الفلاح په وخت د دریدلو مندوب والی راغلی دی لیکن له دې څخه دا مقصد نه دی چه له دې څخه مخکښې دریدل د مندوب خلاف دی بلکه له دې څخه ناوخته دریدل ئې د ندب خلاف ګڼل منظور دي.

قال الطحاوى رحمه الله (تحت قوله والقيام لامام ومؤتم الخ) والظاهر انه احتراز عن التأخير لا التقديم حتى لو قام اول الاقامة لا بأس وحرّر. (طحطاوى على الدر المختار)

له حی علی الفلاح څخه مخکښې د دریدلو د کراهیت قول نه له امام څخه چیرته منقول دی او نه له حنفي مشائخو څخه. د در المختار د باب الاذان جزئیه (دخل المسجد والمؤذن يقيم قعد الى قيام

**الامام فی مصلاه)** او په دې باندې چه په شامیه کښې له مضمراتو څخه د هندیه په واسطه را نقل کړی دی: **(ویکره له الانتظار قائما ـ الخ)** همدارنګه طحطاوي علی مراقی الفلاح کې هم د مضمراتو جزئیه راغلې ده. دا جزئیات له هغه صورت سره مخصوص دي چه امام دریدلی نه وي یا له جومات څخه د باندې وي. په دې باندې څو دلائل وجود لري۔

۱- د دې عباراتو له سیاق څخه دا تخصیص ښکاره دی

۲- په در مختار کښې **(الی قیام الامام)** لفظ د دې وضاحت کوي.

۳-په شامیه او طحطاوي کښې چه د مضمراتو کومه جزئیه ده په هغې کښې د انتظار لفظ قرینهٔ بیّنه ده.

٤- همدا صورت د مذکوره حدیثونو مطابق دی چه د خلکو د دریدلو تعلق د امام له دریدلو سره دی نه د اقامت د الفاظو سره.

٥- علامه طحطاوي رحمه الله **(و القیام لامام و مؤتم)** لاندې فرمایلي دي: **(و الظاهر انه احتراز عن التأخیر ـ الخ)** په داسې حال کښې چه د مراقی الفلاح په حاشیه کښې پخپله هم له مضمراتو څخه د کراهیت د جزئیې تر نقل کولو وروسته کراهیت لره په ډیر اهتمام سره بیانوي او و ئي فرمایل: **(و الناس عنه غافلون)** نو لا محاله د علامه طحطاوي دواړه قولونه له تدافع او تعارض څخه د ساتلو لپاره ضروري شوه چه د دواړو محمل جلا جلا شي.

٦- که چیرته له حی علی الفلاح څخه مخکښې دریدل مطلقاً مکروه وای نو د امام له جومات څخه د باندې د راتللو په صورت کښې د امام په لیدلو سره دریدل (اګر که مؤذن حی علی الفلاح ته نه وي رسیدلی) به مندوب نه وای. له دې څخه څرګنده شوه چه دکراهیت جزئیه د امام له عدمِ قیام سره مخصوصه ده او بیا دا کراهیت هم تنزیهي ده. د در مختار د حاشیې د باب الاذان په آخر کښې طحطاوي رحمه الله فرمایي: **(قوله قعد) لم یبین حکمهٔ والظاهر انه مندوب.** بیا په کراهیت تنزیهي کښې هم طحطاوي صاحب اعتراض کړی دی: **و فیه ان قیامه تهیؤ للعبادة فلا مانع منه (طحطاوی علی الدر المختار ج۱،ص۱۸۹)**

لنده دا چه د امام اعظم رحمه الله مذهب دا دی چه تر حی علی الفلاح پورې دریدل مندوب دي او له دې وروسته دریدل د ادبو خلاف دی، مخکښې دریدل خلاف نه دي. او که چیرته امام و نه درید یا له جومات څخه د باندې وو نو د دریدلو کراهیت له حنفي ائمه وو څخه منقول نه دي. البته حنفي مشائخو په دې صورت کښې دریدلو ته مکروه تنزیهي ویلي دي لیکن علامه طحطاوي رحمه الله په دې باندې اعتراض کړی دی. پس حنفي مشائخ د دې په تنزیهي کراهیت کښې مختلف دي.

که چيرته على سبيل التنزل د امام طحطاوي رحمه الله د تصريح خلاف د امام اعظم رحمه الله د قول هم هغه مطلب را واخلو کوم چه مؤلف په ازالهٔ اوهام کښې را اخيستى دى نو بيا په دې صورت کښې لاندينۍ خبرې د غور قابلې دي:

۱- په مندوب باندې اصرار او په پرېښودونکي باندې ئې انکار گناه او بدعت دى.

**كما صرح به الطيبى فى شرح المشكوة تحت حديث ابن مسعود رضي الله عنه فى التزام الانصراف عن اليمين بعد الصلوة ما نصهٔ فيه ان من اصرّ على مندوب وجعله عزماً ولم يعمل بالرخصة فقد اصاب منه الشيطان.**

په تنوير الابصار کښې دې مسئلې لره په آدابو کښې ذکر کړې ده او په در مختار کښې د ادب تعريف په دې الفاظو سره کوي:

**تركه لا يوجب اساءة ولا عتابا كترك سنة الزوائد لكن فعله افضل** او په فيض الباري شرح د بخاري کښې دي: **و كيف ما كان ليست المسألة من مسائل نفس الصلوة بل من الأداب فان قام احد قبله لا يكون عاصياً.**

۲- د لمانځه له آدابو څخه دا هم دى چه د قد اقامت الصلوة د ويلو په وخت امام تکبير تحريمه ووائي ليکن د يوه عارض له وجې تأخير افضل دى. هغه عارض دا دى چه مؤذن په تکبير تحريمه کښې له امام سره شامليدلى شي. په در مختار کښې دي:

**وشرع الامام فى الصلوة مذ قيل قد قامت الصلوة ولو اخّر حتى اتمها لا بأس به اجماعاً وهو قول الثانى و الثلاثة وهو اعدل المذاهب كما فى شرح المجمع لمصنفه وفى القهستانى معزيا للخلاصة انه الاصح** او په رد المحتار کښې دي **(قوله انه الاصح) لان فيه محافظة على فضيلة متابعة المؤذن واعانة له على الشروع مع الامام.**

همدارنګه د دريدو په مسئله کښې هم د يوه عارض له وجې کوم چه د عوامو د لحاظ له مخې لکه واجب داسې دى. له اقامت څخه مخکښې دريدلو ته افضل ويل کيږي او دا عارض د صفونو د برابرولو اهتمام او تاکيد او په عوامو کښې سستوالى او تکاسل (لټي) ده.

که چيرته وويل شي چه په موطاء امام مالک رحمه الله کښې روايت دى چه حضرت عمر او حضرت عثمان رضى الله تعالى عنهما تر اقامت وروسته صفونه برابرول نو ځواب ئې دا دى چه د هغو تر اقامت وروسته د صفونو برابرول د عذر له وجې وو. دا هيچرته هم ثابت نه دى چه خلک به اول منتشر (تيت پرک) ناست وو او د حى على الفلاح په وخت به ودريدل او بيا به ئې صفونه برابر کړل بلکه پورته ثابت شول چه په صحابهٔ کرامو رضى الله عنهم اجمعين کښې تعامل دا وو چه د الله اکبر د لفظ په اوريدو سره به دريدل او د صفونو برابرول به ئې شروع کړل. بيا که چيرته د اقامت تر پايه پورې صفونه برابر نه شول نو د اقامت او تکبير تحريمه تر منځ جدا والى به د همدې عذر له

وجې وو، په دې کښې هیڅ کراهیت نشته په خلاف د دې صورت چه لومړی دې په آرام سره خلک ناست وي او تر اقامت ویلو وروسته دې د صفونو برابرول شروع کړي نو دا جلا والی د اقامت او تکبیر تحریمه تر منځ پرته له عذر څخه دی نو ځکه مکروه دی

۳ - لاندیني شیان له آدابو څخه دي:

۱- د حی علی الفلاح په وخت کښې دریدل

۲- د اقامت ځواب ورکول

۳- د قد قامت الصلوة په وخت د امام لپاره تکبیر تحریمه ویل

٤- د مقتدي تکبیر تحریمه د امام له تکبیر تحریمه سره متصل کیدل

٥ - تر تکبیر تحریمه مخکښې إِنِّیْ وَجَّهْتُ وَجْهِیَ لِلَّذِیْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَ الْأَرْضَ حَنِیْفاً وَّ مَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِکِیْنَ إِنَّ صَلَاتِیْ وَنُسُکِیْ وَمَحْیَایَ وَمَمَاتِیْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ویل

٦- د امام د قرائت له شروع کولو څخه مخکښې د مقتدي له ثناء څخه فارغیدل او داسې نور له دغو سره سره د صفونو برابرول هم ډیر مؤکد یا ضروري دی. ښکاره خبره ده چه دا ټول آداب په یوه وخت سره څنګه ادا کیدلی شي له دې وجې خامخا د ځینو آدابو پریښودل لازم راځي

٤- د صفونو د برابرولو په غرض سره په دوه ادبونو «د حی علی الفلاح په وخت دریدل، او د قد قامت الصلوة په وخت د امام لپاره تکبیر تحریمه ویلو» کښې یو ئې خامخا پریښودل کیږي. پس لومړی په ادا کولو او د دیم په پریښودلو کښې د ترجیح وجه څه ده؟

٥ - پورتني دواړو ادبونو په ځای کول لکه څرنګه چه مشکل وو د دې لپاره د حی علی الفلاح په وخت د دریدلو ادب اُمت پریښود او په دویم باندې ئې عمل جاري وساته. اوس په ټولو اسلامي بلادو کښې په اتفاق سره معمول به ادب لره متروک او متروک لره معمول به په جوړولو او په دې باندې زور اچول او د فتنې د پیدا کولو څه ضرورت دی؟

دا ټولې خبرې مې یواځې علی سبیل الفرض ولیکلې او که نه نو د ندب د معنی حقیقت پورته د علامه طحطاوي رحمه الله په الفاظو کښې تیر شول شه له حی علی الفلاح څخه تاخیر نه کول د آدابو له جملې څخه دی. نه دا چه له دې څخه مخکښې دریدل د ادبو خلاف دی

تر دې وروسته د ازالهٔ اوهام د رسالې د حقیقت را برسیره کول هم غواړو. نو څرګنده دې وي چه د رسالې زیاتره برخه یعني تر کومه ځایه چه د احادیثو مضمون دی هغه د مصنف له دعوې سره لږې تعلق هم نه لري. د ټولو حدیثونو مطلب دا دی چه تر څو پورې امام نه وي راغلی مقتدیان باید و نه دریږي. کیدای شي مصنف محض د تبرک یا یواځې د رسالې د حجم د زیاتوالي په غرض سره د دغو روایتونو د نقل کولو تکلیف پورته کړی وي. داسې یو حدیث ئې هم نه شوای وړاندې کړی

چه د ده د دعوې ثابتوونکی وي.

تر دې وروسته د فقهې د کتابونو عبارتونه دي چه په هغو کښې تصريح دی چه په حی علی الفلاح باندې خلک باید ودرېږي ليکن په هغو کښې چيرته هم دا نه دي راغلي چه په دې وخت کښې دريدل مسنون دي او تر دې مخکښې گناه دی بلکه فقهاوو رحمهم الله تعالی دا په دې معنی سره په ادابو کښې شمار کړی دی چه له دې څخه تاخير و نه شي چه بيان ئې پورته ليکل شوی دی.

له دې وروسته د فقهې هغه عبارتونه دي چه په هغو کښې د امام په نه موجودوالي کښې دريدلو لره مکروه ليکلی دی. دا عبارات هم د ده له دعوې سره هيڅ سر او کار نه لري.

مخکښې حضرت مصنف صاحب فرمايي:

«سره له دې چه په امامانو کښې سل گونه اختلافات دي ليکن د اقامت په ناستې سره د اوريدلو په سنت والي کښې د هيڅا اختلاف نشته. امام مالک، امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمهم الله او د دوی متبعين ټول د دې د سنت والي قائل دي او د احنافو د امامانو تصريحات د کفايت له اندازې څخه زيات پورته نقل شوي دي» .

معاذ الله څومره لوی بهتان عظيم دی د ملت په بزرگانو باندې. مونږ له عمدة القاري، فتح الباری او داسې نورو د حديثو له شروح څخه په تفصيل سره بيان کړل چه ځينې حضرات په اقامت کښې د الله اکبر د لفظ په ويلو سره دريدلو ته واجب وائي او د امام مالک رحمه الله په نزد د دريدو هيڅ حد نشته. له موطاء څخه د ده قول هم پورته راوړل شو او مونږ د حديثو له مخې ثابته کړه چه د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم عمل په همدې باندې وو چه په اقامت کښې د الله اکبر د لفظ په اوريدو سره به دريدل. بيا نادره خو دا ده چه د احنافو فقهاوو رحمهم الله خو دا په آدابو کښې شماروي هغه هم د ترک تاخير په معنی سره، ليکن د ازالهٔ اوهام مؤلف په فقهاوو باندې د سنيت د قول الزام لگوي او له نورو ائمهٔ کرامو څخه د کومې تصريح يا اشارې له نقل کولو پورته په هغو باندې خپلې نظريه ور اړوي. له دې څخه لوی ظلم به څه وي؟ او په حقيقت کښې خو دا ظلم پخپل نفس باندې دی.

مخکښې فرمايي:

«اوس پاتې شو د ځينو ناپوهانو دا جاهلانه اعتراض چه که چيرته د اقامت په وخت کښې خلک ناست وي او په حی علی الفلاح يا تر دې وروسته ودرېږي نو صفونه به کله جوړوي؟ د دې ازاله هم له احاديثو او د ائمه وو له تصريحاتو څخه واخلی» .

له دې وروسته ئې د موطاء دوه حديثونه نقل کړي دي چه په هغو کښې راغلي چه حضرت عمر او حضرت عثمان رضی الله عنهما تر اقامت وروته د صفونو د برابرولو انتظار کاوه. د دې ځواب مونږ مخکښې ورکړی دی چه له دغو حديثونو څخه دا هيچرته هم نه ده ثابته چه خلک له مخکښې

ښخه په آرام سره به تیت پرک ناست وو او له اقامت ښخه وروسته به ئې د صفونو برابرول شروع کړل بلکه صحابهٔ کرام رضوان الله علیهم اجمعین د عمل له طرز ښخه ثابته شوې ده چه د اقامت له پیل ښخه به ئې د صفونو برابرول شروع کړل اګرکه د صفونو برابرول به کله کله د اقامت تر ختمیدو پورې هم اوږد شو.

حضرت علامه با لکل په آخر کښې په حاشیه باندې داسې خبره لیکلې ده چه کومه چه د ده د لیاقت د پردې پاتې برخه هم ښیرلې ده او مرکب جهالت ئې ور پاشلې ده. مطالعه ئې کړی: **قال محمد ینبغی للقوم اذا قال المؤذن حیّ علی الفلاح ان یقوموا الی الصلوٰة الخ.**

په حاشیه کښې لیکي:

«ښینو حضراتو ته د امام د **(ینبغی)** لفظ په شبهه کښې وا نه چوي له دې امله د دې معنٰی د علامه شامي رحمه الله له ژبې ښخه واورئ چه فرمایي: **ینبغی فی عرف المتأخرین غلب استعماله فی المندوبات واما فی عرف القدماء فاستعماله فی عام حتی یشمل الوجوب ایضاً.**

له حضرت علامه ښخه مونږ دا پوښتنه کوو چه د امام محمد رحمه الله قول «ینبغی» لره تاسو په «یندب» باندې محمول کوئ او که په «یجب» باندې. که چیرته په «یندب» باندې محمول وي نو د دغې دوه لیکې حاشیې بلکه د دوو صفحو د کتاب چاپولو ښه ضرورت وو؟ او که چیرته ئې په «یجب» باندې محمول کوئ لکه ښرنګه چه د بیان له طرز ښخه مو ښرګندیږي نو بیا مو دعوٰی خاص ده او دلیل مو عام

مونږ اګر که د «ینبغی» د لفظ په اړه د ښه لیکلو ضرورت نه لرو ښکه چه دا د مدعي فریضه ده. البته مونږ دا خبرداري ورکوو چه ټولو فقهاء کرامو رحمهم الله دې مسئلې لره په آدابو کښې شمار کړې ده د دې لپاره دلته «ینبغی» په معنٰی د «یجب» سره هیښکله نه شي کیدلی.

د دویم سوال په ښواب کښې لیکي:

«داسې شرعي مسئلې ته چه په هغې کښې د هیښ یوه فرد اختلاف نه وي بدعت او حادث ویل سخت حرام دي».

مونږ پورته دا ثابته کړې ده چه په دې کښې اختلاف شته او دا د جمهورو په خلاف ده. همدارنګه تر حی علی الفلاح پورې یا له حی علی الفلاح ښخه وروسته دریدل او دا د ادب خلاف بلل او دې ته بدعت ویل اګر که ګناه ده لیکن له دې ښخه مخکښې دریدلو ته د ادب خلاف ویل لنډ نظري او سنت یا واجب ورته ویل او په دې باندې اصرار او په تارک باندې ئې انکار کول یقیناً بدعت او ضلالت دی.

مخکښې فرمایي:

((د نبي کريمﷺ وينا ته يا په هغه باندې عمل کوونکي ته د عمل کولو له وجې معاذ الله د ذلت په سترګه کتل کفر دی)).

په دې عبارت کښې مؤلف دا دعوه کړې ده چه په حی علی الفلاح باندې دريدل د نبي کريمﷺ مبارکه وينا ده. په داسې حال کښې چه دا په سيد الکونينﷺ باندې دروغ او بهتان دی. له کوم ضعيف څخه ضعيف حديث څخه هم دا نه ده ثابته. نبي کريمﷺ فرمايلي دي: **من كذب علی متعمداً فليتبوأ مقعده من النار.** پس د تاليف په شوق کښې له ځانه حديث جوړوونکی او په نبي کريمﷺ باندې دروغ لګوونکی دې بايد خپل موعود ځای د ورتلو ته انتظار وباسي. (اعاذنا الله منه)

**مونږ په آخر کښې له مؤلف څخه يواځې د لاندينيو دريو پوښتنو ځوابونه غواړو:**

۱- کوم له ضعيف څخه ضعيف حديث وړاندې کړی چه په هغه کښې دا راغلی وي چه د امام په موجودوالي کښې دې مقتديان بايد په حی علی الفلاح باندې ودريږي. مونږ له يوه قولي حديث څخه دا ثابته کړې ده چه په اقامت کښې دې بايد د الله اکبر د لفظ په ويلو سره خلک ودريږي. او له يوه فعلي حديث څخه مو واضحه کړې ده چه صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم به په اقامت کښې د الله اکبر د لفظ په اوريدو سره دريدل.

۲- له امام اعظم څخه کوم له ضعيف څخه ضعيف روايت را وښايي چه ده مبارک له حی علی الفلاح څخه مخکښې دريدلو څخه منع کړې وي يا ئې دا مکروه بللی وي.

۳- د فقهې د يوه کتاب څه عبارت وړاندې کړی چه په هغه کښې په حی علی الفلاح باندې د دريدلو سنت والی راغلی وي. ټول فقهاء کرام ئې مندوب ليکي او په آدابو کښې ئې ذکر کوي سنت هيڅوک هم نه ورته وايي او مندوب هم په دې معنی چه له دې څخه تاخير مه کوی.

په آخر کښې له مؤلف څخه دويم ځل هيله ده چه د اوږدو او ګنو تقريرونو په ځای په لنډه توګه د دغو دريو پوښتنو ځوابونه راکړی. او دا غوښتنه هم ده چه که چيرتي د جُمعې د آذان په باره کښې مو هم د څه ليکلو اراده وي نو هغه هم زر چاپ کړی تر څو چه ستاسو د حضور له قطعي دلائلو په مطالعې باندې مونږ هم مشرف شو. **فقط والله الهادی الی سبيل الرشاد والعاصم من ظلمات الفتن والفساد.**

۳صفر ۷۲ هـ

# باب استقبال القبلة

## حدّ الانحراف عن القبلة (له قبلې څخه د انحراف اندازه)

**سوال**: یو جومات د قبلې له سمت څخه ډیر منحرف (گرځېدلی) دی. د داسې جومات شرعي حکم څه دی؟ بینوا بیانًا شافیاً توجروا اجراً وافیاً.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له بیت الله څخه تر پنځه څلویښتو درجو پورې انحراف د لمانځه مفسد نه دی. له دې څخه زیات انحراف مفسد دی. لهذا د ریاضیاتو له کوم عالم څخه معلومات وکړی چه دا جومات له قبلې څخه څومره درجې منحرف دی. که چیرته کوم ریاضي پوه په لاس در نه شي نو د قبلې خوا ته د دیوال اوږدوالی او قطب نما پرې کښیږدی او د دیوال د دواړو خواوو تفاوت (فرق) په ډیر احتیاط سره اندازه کړی او احقر ته ئې را ولیږی. د دیوال د اوږدوالي او شمالي او جنوبي تفاوت د اندازه کولو لپاره د کوم پوه او معتبر شخص ضرورت دی. فقط والله تعالی اعلم.

دربیع الآخر اوله ۷٤ هجری

## د شکاگو د قبلې سمت

**سوال**: په شکاگو کښې لمونځ باید کومې خوا ته ادا شي؟ دلته په دې کښې اختلاف دی. او ستاسو فیصلې ته خلک انتظار دي.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مکه مکرمه: طول شرقي = °۹/۳۹، عرض شمالی= °۲/۲۱

شکاگو (امریکه) طول غربی= °۸/۸۷، عرض شمالی= °۸/۴۲، سمت قبله= °۴/۴۸ له شمال څخه د مشرق خوا ته.

مم عرض موقع - مم عرض مکه جم فرق طول،

مس: سمط قبله - جم عرض موقع مس فرق طول قم (عرض موقع - عرض البلد)

۴۰۶۸ ء + ۱۷۸۶۴ (−) = ۱۹۳.۲ ء (−) = °۷ / ۳۲(−) = عرض موقع − °۸ / ۴۲ =

۵ / ۷۵ (−) ۹۲۵۱ / أ + ۱۱۹ أ/ . + ۱۴۱ . / . (−) = ۵۱۱ . / . = °۴ / ۴۸ .

**خبرداری**: څرگنده شوه چه هلته خلک د مشرق خوا ته مخ اړوي او لمونځ کوي کوم چه با لکل غلط دی. خلکو ته د قبلې د صحیح سمت د ورښوولو تدبیر وکړی.

فقط و الله تعالی اعلم.

درمضان المبارك شروع ۱ هجری

## د هوستن د قبلې سمت

**سوال:** د ټیکساس (U.S.A) د ښار هوستن (Houston) کښې زما زوی زده کړه کوي. لهذا د مهربانۍ له مخې د هغه ځای د قبلې صحیح سمت معلوم کړی او را وئې لیږی. چه څومره کیدلی شي خواب زر راکړی. الله تعالی دې تاسو ته جزائے خیر درکړي.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د هوستن د ښار د قبلې سمت له شمال څخه مشرق خوا ته په ۴۵ درجې او ۳۲ دقیقو باندې پروت دی، یعنې د شمال او مشرق تقریباً په منځ کښې واقع دی.

مکه مکرمه ، طول شرقی = ۳۹ / ۹ عرض شمالی = ۲۱/ ۴.

هوستن : طول غربی = ۹۵ / ۲ ، عرض شمالی = ۲۹ / ۸ؤ سمتِ قبله = ۴۵ /۵ .

مم عرض موقع = مم عرض مکه جم فرق طول .

مس، سمت قبله جم عرض موقع مس فرق طول، قم (عرض موقع – عرض البلد).

(-) ۵۸ / ۱۸ = ۲۹ / ۸ عرض موقع - (-) ۲۹° = / - ) . / ۲۵۷۰ = ۷ - ) آ /۸۵۰۲ + / ۴۰۶۸

۱/ ۹۴۱۸ + ۱/ ۹۹۸۵ / ۱ (-) + ۰۶۷۸ (-) = ۸۱ .. / = ۴۵۶۵° ، له شمال نه د مشرق طرفته .

فقط و الله تعالی اعلم. ٤ رجب المرجب ۹۳ هجری

## د نیویار د قبلې سمت

**سوال** : د نیویارک د قبلې سمت وښائی، دلته خلک له مشرق څخه لس درجې د جنوب خوا ته مخونه اړوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا سمت غلط دی، د لاندیني صحیح سمت خلکو ته تبلیغ او خپرونه وکړئ.

مکه مکرمه ، طول شرقی = ۳۹ / ۹ عرض شمالی = ۲۱/ ۴.

نیویارك طول غربی = ۷۴/۱۰، عرض شمالی = ۴۰/ ۴۸ سمت قبله = ۵۸/ ۲۲ له شمال څخه مشرق خوا ته .

مم عرض موقع = مم عرض مکه جم فرق طول .

مس، سمتِ قبله = جم عرض موقع مس فرق طول قم (عرض موقع – عرض البلد) .

۳۶ /۸۴° - ۴۸ /۴۰° - عرض موقع - (-) ۴۸ /۴۳° - (-) آ ۶۰۱۸۳ ۰ ۶۶۱۰۴ + ۶۴۰۷۹

(-) ۸۵۸۴، ۱ + ۰،۳۵۰۱ (-) + ۱۹ ۰۰ ۰، ۰ (-) - ۲۱۰۴، ۰ - ۵۸° / ۲۲ فقط و الله تعالی اعلم.

۲۹ ذی الحجة ۹۳ هجری

## د جهلم د قبلې سمت

**سوال:** په جهلم کښې يو ځای د نوي جومات د جوړولو ضرورت دی. مونږ ئې د قبلې د سمت د صحيح کولو کوشش کوو، د اکثرو قديمي جوماتونو د قبلې خوا په ۹۰ درجو باندې کيښودل شوی ده. که چيرته مونږ د دې نوي جومات د قبلې سمت ۹۰ درجې ولگوو نو د مدرسې ډيره زمکه له ضائع کيدو څخه ساتل کيږي. له تاسو څخه هيله ده چه د مهربانئ او کرم له مخې د جومات د قبلې د صحيح سمت د ځرگندولو لپاره صحيح طريقه را وښائی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جهم د قبلې صحيح سمت ل شمال څخه په ۱۰۲° – ۳۲ درجو باندې دی. د تخريج لپاره د بنده د "ارشاد العابد" رساله مطالعه کړی، په جهلم کښې مقناطيسي قطب ۱۔ ۱۰ له حقيقي قطب څخه د مشرق خوا ته دی. لهذا د قطب نما په ذريعې سره چه سمت قائم کړی شي نو صحيح سمت له شمال څخه ۱۰۳°۔ ۴۲ درجې کيږي. ليکن شرعاً د دې پابندي ضروري نه ده. له صحيح سمت څخه تر دواړو خواوو ته تر ۴۵° درجو پورې له انحراف څخه هم لمونځ صحيح کيږي. لهذا له شمال څخه په ۹۰ درجو باندې د جومات د جوړيدو گنجائش شته. البته بهتره دا ده چه صحيح سمت ته څومره نژدې کيدلی شي هغه غوره کړی. له ضرورت پرته انحراف مه کوی. فقط و الله تعالی اعلم۔

۲۴ جمادی الاولی ۹۳ هجری

## د ټورنټو د جزيرې د قبلې سمت

**سوال**: د ټورنټو د جزيرې د قبلې سمت وليکئ؟

الجواب باسم ملهم الصواب: د ټورنټو جزيرې طول غربی -° ۷۰/ ۲۲َ ، عرض شمالی-° ۳۸/۴۳َ ، سمتِ قبله -° ۳۵/ ۵۴َ له شمال څخه د مشرق خوا ته.

مم عرض موقع - مم عرض مکه جم فرق طول ، مس، سمتِ قبله- جم عرض موقع مس فرق طول قم (عرض موقع – عرض البل).

۴۰۷۹ ء ۰ + ۶۸۹۲ ء ۱ (-) = ۹۷۱ ۰ ء ۰ (-) = ۳۸° / ۳۹َ (-) = عرض موقع.

۳۸° / ۳۹َ (-) - ۴۳° / ۳۸َ = ۸۲° / ۱۷َ (-).

۸۹۲۶ ء ۱ + ۲۵۱۵ ء ۰ (-) + ۳۹ ۰۰ ء ۰ (-) = ۴۸۰ ء ۰ (+) - ۵۴° / ۳۵.

فقط و الله تعالی اعلم

۳۰ جمادی الاولی ۹۶ هجری

## د نيو جرسي د قبلې سمت

**سوال**: د نيو جرسي د قبلې سمت را وباسئ او را وې لیږئ مهرباني به مو وي؟

الجواب باسم ملهم الصواب: طول غربی ۷۴/ ۳۰ . عرض شمالی - ۴۰/ ۱۵ . سمت قبله - ۵۸/ ۸ له شمال څخه د مشرق خوا ته.

مم عرض موقع - مم عرضِ مکه، جم فرقِ طول.

مس، سمت قبله - جم عرض موقع مس فرق طول قم (عرض موقع - عرض البلد).

۴۰۷۹ ء ۰ + ۶۱۶۱ ء ا (-) = ۲۳۰ ۰ ء ۰ (-) = ۲۹ / ۴۳ (-) = عرض موقع.

۲۹ /۴۳ (-) ـ ۱۵/۴۰ = ۴۴/۸۳ (-).

۸۶۰۵ ء ا + ۳۴۳۳ ء ۰ (-) + ۲۶ ۰۰ ء ۰ (-)= ۲۰۶۴ ء ۰ (+) = ۸ /۵۸.

فقط و الله تعالی اعلم. **۳۰ جمادی الاولی ۹۶ھ هجری**

## د لندن د قبلې سمت

سوال: د لندن (مغرب ۰ - ۵. شمال ۵۱ - ۳۱)، د قبلې سمت ولیکئ؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مکه مکرمه طول شرقی = ۳۹/۹، عرض شمالی ۳۵ ء ۲۱.

لندن (طول غربی = ۸ ۰ ء ۰) عرض شمالی ۵۲ ء ۵۱ سمتِ قبله ۱۱۹ له شمال څخه د مشرق خوا ته

فقط و الله تعالی اعلم.

**۲۹ شوال ۹۹ھ هجری**

## د ونیپگ (کاناډا) د قبلې سمت

احسن الفتاوی جلد ۲ ۳۱۷ باب استقبال القبلة

## سمت قبلہ ونّیپگ (کینیڈا)

LN 58 ASQ883

LT 332P CR WINNIPGE MAN 7 38

LT

MUFTI RASHID AHMED LUDHAMVI DAR AL-IFTA'E WAL-IRSHAD

NAZIM ABAD NO.4

KARACHI

DETERMINE THE DIRCTION OF QIBLA FOR WINNIPEG 97 DEGREE 15 MINUTES WEST 49 DEGREE 54 MINUTES NORTH INFORM BY CABLE URGENT PLEASE

AYUB HAMID 529 STYLES STREET WINNIPEG

الجواب باسم ملهم الصواب

LT

800P-9

AYUB HAMID

529 STYLESSTREET

WINNIPEG

WINNIPEG WEST 97.25° NORTH 49.9° QIBLA DIRECTION 39.93° NORTH TO EAST

REFER MY BOOK IRSHADULABID FORMULA NO: 1/2

MUFTI RASHID AHMAD.

۸ ذی الحجہ ۹۸ھ

## حطيم ته په مخ اړولو سره لمونځ نه كيږي

**سوال**: حطيم ته د مخ په اړولو سره لمونځ كيږي او كه نه؟ كه چيرته نه كيږي نو وجه ئې څه ده؟ په داسې حال كښې چه حطيم هم په حقيقت كښې خاص د بيت الله شريف يوه برخه ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ټول حطيم د بيت الله شريف برخه نه ده بلكه په دې كښې شپږ ذراع (گزه) د بيت الله حصه ده. لومړى د بيت الله شريف حصه توب او دويم اندازه كول ئې په شپږو گزونو دا دواړه ظني خبرې دي او د استقبال حكم (قبلې ته د مخ اړولو حكم) قطعي دي د دې د لپاره حطيم ته لمونځ نه صحيح كيږي.

**قال فى الشامية فانه اذا استقبله المصلى لم تصح صلاته لان فرضيّة استقبال القبلة ثبتت بالنص القطعي و كون الحطيم من الكعبة ثبتت بالآحاد فصار كأنه من الكعبة من وجه دون وجه الخ. (رد المحتار ج۱، ص۱۸۲، مبحث الطواف) فقط والله تعالىٰ اعلم**

**۱۱ محرم الحرام ۸۸ هجرى**

## كه چيرته قبله معلومه نه وي نو څه به كوي؟

**سوال**: زيد د بې خبرۍ له مخې د قبلې خوا ته د مخ په اړولو سره لمونځ ادا نه كړ بلكه څه فرق پاتې شو. وروسته څرگنده شوه چه غلطې خوا ته ئې مخ گرځولى دى. نو آيا د لمانځه را گرځول پرې واجب دي او كه نه؟ په داسې حال كښې چه زيد ته قبله معلومه نه وي، كه له دې واقعې سره په سفر كښې مخامخ شوى وي او كه په كور كښې نو حكم ئې څه دى؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: كه چيرته د قبلې د معلومولو هيڅ يوه ذريعه نه وي لكه نه د جومات له محراب څخه. نه له ستورو څخه نه د قطب نما او داسې نورو څخه او نه هلته يو داسې څوك موجود وي چه د قبلې لارښوونه وكړى شي نو په دې صورت كښې تحرّى فرض دى. يعنې د وس مطابق د غور. فكر او پلټنې باندې چه كومې خوا ته زړه گواهي وركړي هغې خوا ته دې لمونځ وكړي. له لمانځه څخه تر فارغيدو وروسته كه چيرته د قبلې خوا غلطه ثابته شي نو د لمانځه را گرځول واجب نه دي. او كه چيرته د قبلې د معلومولو يوه نه يوه ذريعه موجوده وي او سره له دې ئې له هغې څخه كار وا نه خيست بلكه تحرّى ئې وكړه او لمونځ ئې ادا كړ نو په دې صورت كښې كه چيرته ئې قبلې ته مخ كړى وي يعنې د بيت الله شريف دواړو خواوو ته د ٤٥ درجو په دننه كښې ئې لمونځ كړى وي نو لمونځ ئې شوى دى او كه نه نو د لمانځه بيرته را گرځول پرې واجب دي. كه چيرته د قبلې د معلومولو د هيڅ يوې ذريعې د نه موجودوالي په حالت كښې له تحرّى پرته لمونځ وكړي نو دا لمونځ به ئې صحيح نه وي اگر كه ئې د قبلې صحيح سمت خوا ته ئې ادا كړى هم وي

بلکه که چیرته د لمانځه په حالت کښې ئې دا یقین هم جوړ شي چه مخ ئې د صحیح سمت خوا ته رولی دی نو بیا ئې هم لمونځ نه کیږي. البته که چیرته له لمانځه څخه تر فارغیدو وروسته ئې د سمت د صحیح والي یقین وشو نو بیا د دې لمانځه را گرځول واجب نه دي

قال فی العلائیة ویتحرّی هو بذل المجهود لنیل المقصود عاجز عن معرفة القبلة بما مرّ فان ظهر خطؤه لم یعد و فی الشامیة (قوله بما مرّ) متعلق بمعرفة والذی مرّ هو الاستدلال بالمحاریب و النجوم و السؤال من العالم بها فافاده انه لا یتحرّی مع القدرة علی احد هذه حتی لو کان بحضرته من یسئله ولم یسأله ان اصاب القبلة جاز لحصول المقصود والا فلا الخ. (رد المحتار ج۱، ص۴۰۲) و فی العلائیة و ان شرع بلا تحرّ لم یجز و ان اصاب لترکه فرض التحرّی الا اذا علم اصابته بعد فراغه فلا یعید اتفاقاً و قال ابن عابدین رحمه الله (قوله و ان شرع) الضمیر راجع الی العاجز ای اذا اشتبهت علیه القبلة و عجز عن معرفتها بالادلّة المارة فقبلته جهة تحریه فلو شرع بلا تحر لم تجز صلوته ما لم یتیقن بعد فراغه انه اصاب القبلة لان الاصل عدم الاستقبال استصحاباً للحال فاذا تبیّن یقیناً انه اصاب ثبت الجواز من الابتداء و بطل الاستصحاب حتی لو کان اکبر رأیه انه اصاب فالصحیح انه لا یجوز کما فی الحلیة عن الخانیة ولو تیقن فی اثناء صلوته لا یجوز خلافاً لابی یوسف رحمه الله لان حاله بعد العلم اقوی وبناء القوی علی الضعیف لا یجوز (رد المحتار ج۱، ص۴۵۱)

فقط والله تعالی اعلم ۱۶ رجب ۸۸ هجری

## په مکه مکرمه کښې کعبې مبارکې ته د مخ گرځولو حکم

**سوال**: د مکې مکرمې په ښار کښې له مسجد حرام څخه د باندې د قبلې د سمت تعین او استقبال باید څرنگه وشي په داسې حال کښې چه مخې ته لوړ لوړ عمارتونه د دې لپاره خنډ یا حائل دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: کوم سړی چه لوړ ځای ته په ختو سره کعبه مبارکه لیدلی شي نو د هغه لپاره عین کعبې ته مخ اړول ضروري دي او که نه نو په تحرّی سره د کعبې مبارکې د جهت تعیین کافي دی.

قال فی شرح التنویر فللمکی اصابة عینها لیعم المعاین وغیره لکن فی البحر انه ضعیف والاصح ان ما بینه و بینها حائل کالغائب، و فی الحاشیة عن الفتح وعندی فی جواز التحری مع امکان صعوده اشکال لان المصیر الی الدلیل الظنی وترک القاطع مع امکانه لا یجوز وقد قال فی الهدایة والاستخبار فوق التحرّی فاذا امتنع المصیر الی الظنی لامکان ظنی اقوی منه فکیف یترک الیقین مع الظن آه. (رد المحتار ج۱، ص۳۹)

فقط والله تعالی اعلم ۱۷ رجب ۹۰ هجری

## په لمانځه کښې له قبلې څخه د سینې د ګرځیدلو حکم

**سوال**: د دې مسئلې په باره کښې د شریعت څه حکم دی چه په لمانځه کښې د ننه د عذر له مخې یا پرته له عذر څخه د چا سینه له قبلې څخه واوړي نو آیا لمونځ ئې فاسدیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له بیت الله شریف څخه که چیرته د ٤٥ درجو په منځ کښې انحراف شوی وي نو په هر صورت سره لمونځ ادا کیږي. لې دې څخه زیات انحراف که چیرته قصداً وي نو په هر صورت سره ئې لمونځ فاسدیږي، او که چیرته پرته لې اختیار څخه سینه له قبلې څخه واوړي نو او بیا د درې ځله سبحان الله ویلو په اندازه همداسې پاتې شي نو لمونځ ئې فاسدیږي او که نه وي نو نه فاسدیږي.

فی مفسدات الصّلوٰة من التنویر و تحویل صدرہ فسدت و ان کان فی المسجد اذا کان من غیر عذر کما علیه عامّة الکتب آہ. و اطلقه فشمل ما لو قلّ او کثر و ھٰذا لو باختیارہ و الا فان لبث مقدار رکن فسدت و الا فلا، کما فی شرح المنیة من فصل المکروھات. (ردالمحتار ج۱، ص۵۸۶)

فقط واللہ تعالیٰ اعلم

۱۸ ذی قعدہ ۹۵ سنہ ہجری

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

بنما بصاحب نظرے گوھر خود را عیسی نتوان گشت بتصدیق خرے چند

# المشرفی علی المشرقی

## عنایت الله مشرقی او د قبلې طرف

((عجیبه جهل مرکب))

**المشرفی:**

د تالیف تاریخ: ـــــــــ ۲۹/ کال: ۱۳۶۳ھ

اول ځل خپریدنه: ـــــــــ : ۱۳۶۳ھ

دبحث عنوانات:

- په لمونځ کښې د استقبال قبلې ضروری حد.
- په لرې پرتو هیوادونو کښې د قبلې د معلومولو شرعی طریقه.
- د سمت قبلې په تخریج کښې د ریاضی د قواعدو استعمال.
- بی مثاله جهل مرکب.
- مستر مشرقی او علم ریاضی.
- د غرور له وبال نه سمتونه سرچپه شول.
- سرسری دماغو د ځمکې کُره سرسری جوړه کړه.
- انف فی الماء واست فی السماء.
- له مشرق او مغرب نه دجهالت یو بل سند.
- له عرض البلد نه نابلد.
- لګی لرونکی ستوری په ځمکې باندې.
- مستر مشرقی او جغرافیه.
- مستر مشرقی او تاریخ.
- پخپله مشرقي لیکن په زړه کښې مغربي.
- مستر معمی.
- مغرور مستر او مسکین مُلاّ.

# عنايت الله مشرقي او د قبلې طرف (سمت)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**وربسته له الحمد او صلوة نه** : د اخبار مدينه بجنور په ۲۵مارچ سنه۱۹۴۴ء كښې يو مضمون په عنوان د (قبله چيرې ده) په نامه مې له نظره تير شو. چه په هغه كښې د مستر عنايت الله مشرقي د قبلې په سمت باندې اعتراض را نقل شوی وو.

ښائي چه ځينو خلكو ته د پريشانۍ سبب جوړ شوی وي د دې لپاره د شرعي حيثيت له مخې په دې مسئلې باندې په لنډه توګه رڼا اچول ضروري بولم. تر مقصده مخكښې لومړی په دې باندې پوهيدل ضروري دي چه دا اعتراض كوم نوې اعتراض نه دی چه مشرقي صاحب پرې وياړي بلكه له پيړيو څخه په دې مسئلې باندې بحث را روان دی. د شرعي او فلكياتي حيثيت له مخې د اُمت د علماء كرامو په دې باندې ګڼ تصنيفونه په مختلفو ژبو سره پيدا كيږي. حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهي صاحب او د حضرت مولانا محمد لدهيانوي صاحب تر منځ د پنجاب د يوه جومات په اړه مكالمه هم شوې وه.

دويم دا چه غلطي خو له انسانه كيږي ليكن په غلطۍ باندې الوتل او فخر كول د دې مثال مې له مشرقي څخه مخكښې په چا كښې نه ليدلی او نه اوريدلی دی. البته څرګنده دې وی چه په دې مسئلې كښې د نظر وړ شيان درې دي

۱ - استقبال قبله كوم چه په لمانځه كښې فرض دی د دې ضروري حد څه دی؟

۲- په لرې پرتو ښارونو كښې د قبلې د ضروري سمت د معلومولو شرعي طريقه څه ده؟

۳- د رياضي قواعدو استعمال د دې كار لپاره جائز او معتبر دي او كه نه؟ كه چيرته وي نو تر كومې درجې پورې؟ دا درې واړه مسئلې جلا جلا په ذهن كښې كښينوئ نو د بحث لاندې مسئله پخپله حل كيږي:

**لومړی مسئله**: د دې په اړه قرآني حكم دی چه: (فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ) او (فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ) يعنې د لمانځه په وخت كښې خپل مخونه د مسجد حرام خوا ته واړوی. په دې آيت كښې د بيت الله په ځای د مسجد حرام (كوم چه تر بيت الله ډير وسيع دی) خوا ته د مخ د ګرځولو له حكم وركولو څخه څرګنديږي چه د قبلې د استقبال په مسئله كښې سهله شريعت تضييق (تنګوالی) نه دی اينښی بلكه څه نا څه وسعت (پراخي) شته چه تائيد او تحديد ئې له راتلونكي بيان څخه كيږي

د مدينې منورې او همدارنګه له مکې معظمې څخه په نورو شمالي علاقو په اړه د نبي کريم ﷺ ارشاد دی چه ((ما بين المشرق والمغرب قبلة)) يعنې ستاسو لپاره د مشرق او مغرب منځ قبله ده. له دې حديث څخه د مشرق او مغرب منځنی قوس يعنې نيمه دائره (۱۸۰ درجه) د اندازې متعلق د قبلې د جهت د موجودوالي دعوی کيدله ليکن د اُمت محققينو د دومره وسعت مراد ترې وا نه خيست بلکه حديث ئې په عام عرف باندې محمول کړ له مشرق او مغرب څخه ئې د مشرق او مغرب د نقطې په ځای د مشرق او مغرب د جهت مراد واخيست د دې منځنی جهت د جنوب څلورمه برخه دائره (۹۰ درجې) مراد ئې ترې واخيست. يعنې د بيت الله دواړو خواوو ته ۴۵-۴۵ درجو پورې. او د همدې تفصيل مطابق د مشرق د خلکو لپاره د شمال او جنوب په منځ کښې د مغرب جهت قبله ده. دا شی فقهاء کرامو رحمهم الله تعالی داسې بيان کړی دی چه د لمونځ کوونکي د تندي له منځنۍ برخې څخه د مستقيم خط په را ايستلو سره چه خط په عين کعبه باندې تير شي نو دا قبله مستقيمه ده او که چيرته د تندي له منځنۍ برخې څخه را ايستونکی خط خو په عين کعبه باندې و نه رسيږي ليکن د مصلي د تندي له اطرافو څخه له هر يوه طرف څخه را وتونکی خط په عين کعبه باندې ورسيږي نو دا لږ انحراف دی او که نه نو ډير انحراف دی کوم چه د لمانځه فاسدوونکی دی او د هيئت او رياضي علماوو د لږ او ډير انحراف تعين داسې کړی دی چه تر ۴۵ درجو پورې انحراف وي نو لږ دی او که تر دې زيات وي نو بيا ډير دی او د لمانځه مفسد دی (كما في الخيرية) د قبلې د استقبال په مسئله کښې د شريعت له پورتني وسعت څخه دا هم څرګنده شوه چه لږ انحراف کوم چه په عامه توګه باندې کله کله شمالاً او کله کله جنوباً واقع کيږي نو دا د التفات وړ نه دي له دې وجې څخه نه د کوم جوماټ د قبلې د جهت د بدلولو ضرورت دی او نه په همدې حالت کښې ئې کوم طرف ته د مائل کولو حاجت دی. ليکن د چا طبيعت چه له تنګي څخه ډک وي او د شريعت له سماحت او وسعت څخه بې خبره وي نو هغه د ټول اُمت د لمونځونو د فاسدوالي او د جوماتونو د ورانولو حکم ورکوي:

سرّ خدا که عابد و زاهد کسے نه گفت — در حیرتم که باده فروش از کجا شنید

**دويمه مسئله**: په لرې پرتو ښارونو کښې د قبلې د سمت د معلومولو شرعی طريقه څه ده او صحابهٔ کرامو، تابعينو او د اُمت جمهورو په دې باندې څه ډول تعامل وو؟ په دې باره کښې تر ټولو مخکښې د مقدمې په توګه دا ويل مناسب دي چه د شريعت د ټولو حکمونو بنياد په يُسر، سهولت (آسانتيا)، سادګي او بې تکلفي باندې دی. په فلسفيانه تدقيقاتو (مشکلو پلټنو) باندې نه دی ځکه چه د دې شريعت د حکومت دائره د ټول عالم په وچه او لمده، تورو او سپينو، ښاري او بانډه چي آباديو او د هغو په اوسيدونکو باندې چارپير دی. اسلامي فرائض يعنې لمونځونه او

روژي لکه څرنګه چه په ښاريانو باندې عائد دي همدا رنګه په بانده چيانو، کليوالو، غرونو، درو او جزائرو په اوسيدونکو باندې چه هيڅ ئې زده نه وي او با لکل ناخبره وي هم عائد دي او کوم احکام چه دومره عام وي په هغو کښې د عقل او حکمت او رحمت تقاضا همدغه ده چه هغه په فلسفي تدقيقاتو، رياضي قواعدو يا په رصدي آلاتو اسبابو باندې موقوف نه شي تر څو چه هر خاص او عام که ئې په زده وي او که نه په آسانۍ سره خپل فرائض سر ته و رسولی شي د رمضان د روژې مدار د مياشتې په ليدو باندې موقوف دی او رياضي حسابونو ته پکښې اعتبار نه دی ورکړ شوی مياشتې ئې قمري وټاکلې چه مدار ئې په رؤيت هلال (د مياشتې په ليدو) باندې دی شمسي مياشتې ئې و نه ټاکلې د دې لپاره چه د هغو مدار په رياضي حسابونو باندې دی همدارنګه د اسلامي احکامو له پلټنې څخه د دې مثالونه ډير څرګندېدلی شي. د دې لنډې مقدمې نه وروسته د بحث لاندې مسئلې کښې هم دا فيصله آسانه شوه چه د قبلې د سمت کوم چه هر مسلمان په ورځ کښې پنځه ځلې په دې باندې مامور دی چه مخ ور واړوي. د دې لپاره به خامخا شريعت مبارکه کومه آسانه او ساده طريقه غوره کړې وي چه هر ښاري او بانده چي سړی ئې په آسانۍ سره په عمل کښې راوستلی شي. لکه څرنګه چه د دې په اړه د نبي کريمﷺ او صحابهٔ کرامو رضی الله تعالی عنهم د عمل طرز ته لږ ځير شئ.

۱- په دې باندې اتفاق دی چه تر مسجد حرام وروسته تر ټولو لومړی جومات کوم چه په اسلام کښې جوړ شوی دی هغه مسجد قبا دی. د دې جومات بُنياد په هغه وخت کښې کيښود شوی وو چه د مسلمانانو قبله لا بيت المقدس وه. بيا چه کله د قبلې د بدلولو آيات نازل شو نو دا خبره يوه صحابي په داسې وخت را ورسوله چه د قبا په جومات کښې خلک په لمانځه ولاړ وو. د دې خبرې په اوريدو سره امام او ټول جماعت د بيت الله خوا ته مخونه واړول. دا واقعه د حديثو او تفاسيرو په عامو کتابونو کښې راغلې ده. د دې واقعې اطلاع نبي کريمﷺ ته وشوه نو هغه د دغو خلکو دا فعل او عمل تصويب کړ. ښکاره خبره ده چه د لمانځه په حالت کښې چه د قبا خلکو د قبلې کوم سمت غوره کړ په هغه کښې د رياضي آلاتو او اسبابو او اصطرلاب دخل نه شي کيدلی. يواځې د تخمين او تحرّی له مخې د قبلې سمت تعين شو او بيا تر لمانځه وروسته هم چيرته دا نه دي راغلي چه د دې تحرّی او تخمين نه پرته کوم بل انتظام نيول شوی وي

۲- حضرت عمرؓ د خپل خلافت په دوره کښې په ټول اسلامي قلمرو کښې د هر ولايت د عامل په نامه فرمان وليږه چه په هر ولايت کښې دې جوماتونه جوړ شي. د حکومت عمالو حکم په ځای راوړ ليکن د قبلې د سمت دمعلومولو لپاره نه حضرت عمرؓ کوم انتظام وکړاو نه د حکومت عمالو د رياضي حسابات استعمال کړل بلکه د تحرّی او تخمين له مخې جوماتونه جوړ شول

۳. علامه مقريزي په کتاب الخطط ص٢٤٦ جلد ٢ کښې له پوره وضاحت سره ليکلي دي چه حضراتو صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم په مصر او نورو ښارونو کښې په همدا ډول لويو لويو آثارو او نښانو کښې د لمر او سپوږمۍ په ذريعې سره د اندازې او تحری له مخې کار واخيست او جوماتونه ئې آباد کړل او عامو مسلمانانو د هغو اتباع وکړه. البته احمد بن طولون چه کله په مصر کښې د جامع جومات بنياد کيښود نو مدينې طيبې ته ئې سړی وليږه او د نبوي جومات د قبلې سمت ئې په ځانګړې توګه معلوم کړ او د هغه موافق ئې جومات جوړ کړ کوم چه د عمرو بن العاص فاتح مصر له جامع جومات څخه لږ غوندې منحرف دی ليکن علماوو د عمرو بن العاص د جامع جومات اتباع بهتره وګڼله او د مصر او شاوخوا عام جوماتونه د همدې مطابق دي. په داسې حال کښې ه د مصر غوندې ښار د رياضي قواعدو له پوهانو څخه خالي نه شي کيدلی.

٤. د اُمت د علماوو اتفاق دی چه د دُنيا ټول جوماتونه صرف د تخمين او تحرٰی له مخې جوړ شوي دي ليکن د نبوي جومات سمت د وحی او مکاشفې له مخی قائم شوی دی. حق تعالیٰ ﷻ د نبي کريم ﷺ په مخ کښې بيت الله شريف د معجزې په توګه حاضره کړه د هغې په ليدو سره ده مبارک ﷺ د نبوي جومات بنياد کيښود. (کذا فی البحر الرائق و رد المحتار) د دې لپاره د اُمت د اجماع له مخې د نبوي جومات سمت با لکل يقيني دی. ليکن د رياضي حساباتو له مخې چه کله وکچل شو نو هغه هم صحيح ثابت نه شو. چنانچه د مصر امير ابن طولون چه کله په مصر کښې د خپل جامع جومات د جوړولو اراده وکړه نو د هندسې څو ماهرين يا پوهان ئې مدينې منورې ته وليږل لومړی ئې د نبوي جومات د قبلې سمت په رياضي آلاتو باندې وکاچه نو څرګنده شوه چه د آلاتو په ذريعې سره را ايستل شوی خط د قبلې له سمت څخه د نبوي جومات سمت لس درجې جنوب خوا ته مائل دی لکه څرنګه چه مقريزي په کتاب الخطط ج٢. ص٢٥٦ کښې په لاندينيو ټکو کښې د دې يادونه کړې ده.

((ان احمد بن طولون لمّا عزم علی بناء هذا المسجد بعث الی محراب رسول الله ﷺ من اخذ سمته فاذا هو مائل عن خط سمت القبلة المستخرج بالصناعة نحو عشر درج الی جهة الجنوب)) [1] انتهٰی.

اوس هغه خلک چه په رصدي آلاتو باندې د قبلې مدار کيښودل غواړي او په هغو باندې فخر کوي هغه دې وګوري چه د هغو په تجويز سره خو د نبوي جومات قبله هم پوره ثابته نه شوه معلومه نه ده چه مشرقي صاحب چه په کومو هندوستاني جوماتونو کښې د همدې حساباتو پر بناء

[1] - د دغو ماهرينو تخريج غلط وو. صحيح تخريج د نبوي جومات د قبلې د سمت عين مطابق وو ١٢ رشيد احمد عفا الله عنه

لمونځ ناجائز بولي د نبوي جومات په اړه به کومه فتویٰ ورکوي چه مشرقي صاحب هر څه وائي لیکن پورتنی یاد شوی تعامل د مسلمانانو لپاره انشاء الله کافي او وافي ده.

تر دې ځایه پورې د تقریر خلاصه دا ده چه د قبلې د سمت په معلومولو کښې د سلفو طریقه دا ده چه په کومو ښارونو کښې چه قدیمي جوماتونه موجود وي د هغو پیروي دې وشي او په کومو ځنګلاتو یا نوي آبادیو کښې چه پخواني جوماتونه موجود نه وي هلته دې د لمر، سپوږمۍ، قطب او داسې نورو مشهورو او معروفو ذرائعو له مخې د اندازې په قائمولو سره سمت تعین شي که په دې کښې لږ غوندې میلان او انحراف پاتې هم شي نو هغه به له نظره غورځول کیږي ځکه چه د تصریح مطابق د بدائع الصنائع مصنف په دغو لرې پرتو ښارونو کښې د تحرّی او اندازې څخه قائم شوی جهت د کعبې قائم مقام دی او په همدې باندې احکام دائر دي. لکه څرنګه چه شریعت خوب لره د ریح د را وتلو قائم مقام ګرځولی او د اوداسه د ماتوالي حکم ئې پرې کړی دی یا ئې سفر لره د مشقت قائم مقام ګرځولی او مطلقاً رخصت ئې پرې مرتب کړی که په حقیقت کښې مشقت وي او که نه همدارنګه په لرې پرتو ښارونو کښې د مشهورو او معروفو نښانو په ذریعې سره چه د قبلې کوم سمت د تحرّی او اندازې له مخې ټاکل کیږي هغه به د کعبې قائم مقام وي.

**دریمه مسئله** د قبلې د معلومولو لپاره د ریاضي آلاتو استعمال جائز دی او که نه؟ د دې په اړه نتیجې ته تر رسیدو مخکښې څو مقدمې د یادونې وړ دي (

(۱) - پورته ذکر شول چه د شریعت هر فعل په آسانۍ او سهولت باندې مبني دی. چه څومره یو کار عام کیږي هم هغومره په هغه کښې سهولت زیاتیږي او ریاضي آلات او حسابات دومره عام نه دي چه هر سړي ته په هر ځای کښې په لاس ورشي.

(۲) د ریاضي حسابونو او آلات رصدیه په ذریعې سره هم عین کعبې ته مخ کول یا مسجد حرام ته بلکه مکې مکرمې ته هم استقبال یقیني نشی کیدې د لاندې وجوهو په بنا باندې:

۱ د فلکیاتو په عامو کتابونو کښې چه د قبلې د سمت کومې طریقې لیکل کیږی اویا د سمت قبلې کومې نقشې مرتب کیږی هغه ټولې تقریبي وی.

۲- د قبلې د سمت د معلومولو لپاره که چیرته هغه طریقې استعمال هم شي کومو ته چه تحقیقي ویل کیږي نو بیا هم با لکل صحیح سمت نه شي را ایستل کیدلی ځکه چه د هر ځای با لکل صحیح طول البلد او عرض البلد معلومول مشکل دي له لږ غوندې تفاوت څخه هم نتیجه مختلفه کیږي او په نتیجه کښې لږ غوندې فرق هم چه کله لرې لاړ شي نو په میلونو فرق لویږي.

۳- په یوه ښار کښې د یوه مخصوص ځای طول او عرض چه را واخیستل شي او د قبلې سمت ترې را و ایستل شي نو د همدې ښار د نورو ځایونو طول او عرض له همدې ځای سره د مختلف والي له وجې د هغو د قبلې سمت هم د دې ځای د قبلې له سمت سره به مختلف وي او د دې ښار د

شاوخوا د قبلې په سمت کښې خو به نور زیات فرق وي او د هر هر ځای جلا جلا د قبلې سمت ایستل ناممکن دي.

۴- که چیرته بالکل صحیح سمت هم فرض کړی شي نو په عملي توګه د کعبې یا مسجد حرام بلکه مکې مکرمې ته د استقبال هم یقین نه شي کیدلی ځکه چه کومې خوا ته د ویښته په اندازه هم انحراف وشي نو د لمونځ کوونکي مخ له مکې مکرمې څخه په میلونو میلونو لرې اوړي

(۳) - په دې فن کښې د ماهرینو په نسبت د مشرقي مستر غونډې د مدعینو تعداد ډیر زیات دی کوم چه د قبلې د سمت د ایستلو شوق لري ځکه چه دوی په دې کار کښې تر ټولو مخکښې مخکښې وي لیکن په فن کښې د مهارت د نه درلودو له وجې غلط سمت را باسي. یا د فلکیاتو د عامو کتابونو په مطابق تقریبي طریقې او اندازې استعمالوي او یا د تقریبي نقشو په ذریعې سره د قبلې سمت معلوموي د دې لپاره په هغو کښې اختلاف پیدا کیږي بلکه د طول البلد او عرض البلد د لږ غونډې مختلف را اخیستلو له وجې د فن د ماهرینو را ایستل شوی د قبلې سمت هم له یوه او بل سره مختلف وي چه له دې وجې په عوامو کښې اختلاف او انتشار پیدا کیږي.

(۴) - پرته له کومې وجې په فلسفي او ریاضي شبهاتو کښې لویدل د شریعت له مخې بد او د تشویش موجب دي. ډیر ځله په دغو تدقیقاتو کښې د لویدلو نتیجه دا را ووځي چه په نبي کریم ﷺ. صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم اجمعین، تابعینو رحمهم الله تعالی او عامو مسلمانانو باندې بدګمانی هم را منځ ته کیږي چه د دوی لمونځونه او قبله صحیح نه دي. په داسې حال کښې چه دا محض باطل او د دین په کارونو کښې سخت جسارت یعني زړورتیا ده.

له دغو مقدماتو څخه د رڼا ورځې غونډې څرګنده شوه چه د قبلې په سمت کښې د ریاضي آلاتو یا اسبابو التزام مذموم یعنې بد دی. د اتمې هجري پیړۍ مشهور او معروف عالم علامه ابن رجب حنبلي رحمه الله په همدې بناء باندې د قبلې په سمت کښې په رصدي آلاتو او ریاضي تدقیقاتو پسې لویدل منع کړي دي. له امام احمد څخه هم د قبلې په سمت کښې د رصدي آلاتو د استعمالولو منع راغلې ده.

مذکور الصدر مضمون د یوه سالم طبعیت لرونکي او حق غوښتونکي مسلمان لپاره کافي او وافي ده. البته د چا په طبعیت کښې چه ضد. عناد و اعتساف ځای نیولی وي نو د هغه هیڅ علاج نشته. ((ومن یضلل الله فلا هادی له))

مشرقی صاحب علماء له علم ریاضي څخه ناخبره ګڼي او خپل ځان په دې فن کښې تر ټولو پوه او عالم بولي او خیني سادګان خلک ئې د علامه په لقب سره یادوي. هغه ته دې څرګنده وي چه د د سمت د شرعي حیثیت له مخې تعین او د هغه له مخې د لمانځه د صحت یا فساد حکم لګول

يواځې د شريعت د علماوو کار دی. مشرقي صاحب اګر که په شرعي علومو کښې هم پخپل ګومان سره خپل مثال نه ويني ليکن حقيقت دا دی چه هغه په شرعي علومو کښې د مدرسې د يوه کوچني طالب يا چړي حيثيت هم نه لري. البته که چيرته رسول الله ﷺ (فداه ابي و امي) او د ده صحابهٔ کرام او تابعين او ټول امت د ګمراهی. خوا ته منسوبولو ته علم ويل کيږي نو داسې علم دې ده ته مبارک وي "و نعوذ با لله من ذالک". د مشرقي صاحب علمي مرتبه هغه خلک په ښه توګه پيژندلی شي چه په عربي علومو کښې څه ناڅه خبرتيا ولري ليکن ځينې داسې شيان دي چه معمولي غوندې پوه سړی ئې هم چه ووينې د مشرقي صاحب قابليت ترې څرګندولی شي. د نمونې په توګه يواځې يو مثال ستاسو په مخکښې وړاندې کوم.

د دې قرآني آيت چه ﴿وَ كَفَى اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ الْقِتَالَ﴾ ترجمه داسې بيانوي:

((د مؤمن لپاره يواځې يو عمل کفايت کوي او هغه دا شه عسکر جوړ شي او وجنګيږي))

دا قطع نظر له دې چه د ماثور تفسير او الهي مراد په خلاف دی بلکه يو ادنی غوندې د صرف او نحو طالب علم هم پوهيدلی شي چه د دې عبارت هيڅکله دا ترجمه نه شي کيدلی.

## بې شانه جهل مرکب

د مسټر مشرقي په اړه خو له مخکښې څخه دا څرګنده وه چه له ديني علم څخه با لکل خالي دی، له ديني علم سره لرې واسطه هم نه لري. د اکبر مرحوم دا شعر په هغه باندې با لکل صحيح تطبيقيږي چه :

انہوں نے دین کب سیکھا ہے رہ کر شیخ کے گھر میں

پلے کالج کے چکر میں مرے صاحب کے دفتر میں

ليکن د هغه د ډول په آواز سره دعوې. د مختلفو علومو او فنونو له ولايت څخه په درځنو ډګری د حاصلولو تشهير (مشهورتيا) او د بې بصيرته (ناپوهو) عوامو له خوا څخه تر لاسه شوی خطاب "علامه" له مخې دا خيال ورته وشو چه دی په دنيوي فنونو کښې خو په يقين سره مهارت لري. ليکن د ده په رساله "د مولوي غلط مذهب" په نهم مخ کښې د قبلې د سمت په اړه د ده د مضمون په ليدو سره زمونږ دا خوش فهمي هم په حيرانتيا او تعجب بدله شوه او دا حقيقت روښانه شو چه په دنيوي فنونو کښې هم د ده د علم قيمت يواځې تر څو اصطلاحي الفاظو پورې محدود دی. البته که چيرته په واقعيت کښې هم دی د څو ولايتي ډګريو مالک دی نو د دې پرته له دې چه د اروپا خلکو له داسې احمق څخه د اسلام د تخريب او په اسلام کښې د ارتداد د خپرولو کار اخيستل مقصود وو بله وجه نه وه.

**اوس په مختلفو فنونو کښې د ده د قابلیت څو نمونې وګورئ:**

## مستر مشرقي او د رياضي علم

ده يواځې په يوه مضمون ((د قبلې سمت)) کښې د رياضي په علم کښې څو ښکاره غلطی کړي دي

۱. **د غرور له وبال څخه سمتونه سرچپه شول**: وايي: ((د لاهور د جوماتونو محرابونه له صحیح سمت څخه تقريبا ۲۵ درجې جنوب خواته اووښتی دی)).

د ده مقصد دا دی چه د لاهور د جوماتونو سمت د مغرب د نقطې خوا ته دي کوم چه د قبلې له صحیح سمت څخه ۲۵ درجې د جنوب خوا ته دي، يعنې د لاهور د قبلې صحيح سمت له مغرب څخه ۲۵ درجې د شمال خوا ته دی.

تر ننه پورې هيچا بلکه دکمې پوهې درلودونکی هم د لاهور د قبلې د سمت انحراف شمالي نه دې بللی. په مُلايانو باندې مسخره کوونکی له غروره ډک دماغ څخه الله تعالى د جنوب او شمال فرق له منځه يوړ او کوږ دماغ د کږې پوهې د ښکارولو لپاره مستر مشرقي په خيال کښې له شمال څخه جنوب او له جنوب څخه شمال جوړ کړ.

۲. **د لاهور د قبلې سمت**:

دی فرمائي چه د لاهور جوماتونه د مغرب د نقطې خوا ته دي او له صحیح سمت څخه ۲۵ درجې منحرف دي. يعنې د ده په خيال کښې د لاهور د قبلې صحيح سمت د مغرب له نقطې څخه ۲۵ درجې منحرف دی. په داسې حال کښې چه د لاهور د قبلې سمت د مغرب له نقطې څخه ۲۵ درجې نه بلکه ۹/۹ درجې جنوب ته مائل دی. د تخريج صورت ئې ملاحظه کړئ.

مکه مکرمه. طول = ۳۹ / ۹ْ. عرض = ۲۱ / ۴ْ.

لاهور. طول = ۷۴ / ۳ْ. عرض = ۳۱ / ۶ْ. سمت قبله = ۹ / ۹ْ د جنوب طرفته.

مم عرض موقع = مم عرض مکه جم فرق طول.

مس > سمت قبله = جم عرض موقع مس فرق طول قم (عرض موقع – عرض البلد).

۴۰۶۸ / ۰ + ۹۱۶۵ = ۳۲۳۳ / ۰ – ۴ْ / ۲۵ (عرض موقع). ۶ / ۳۱ = ۲ْ / ۶ (–).

۹۵۵۸ / آ – ۸۳۵۵ / آ – ۹۶۶۶ / ۰ (–) = ۷۵۷۹ / ۰ (–) = ۱ْ / ۸۰ (–) = ۹ْ / ۹۹ – ۹۰ْ = ۹ْ / ۹

جنوبی طرفته.

۳. **له لاهور څخه د مکې مکرمې فاصله**:

ده له لاهور څخه تر مکې مکرمې پورې ټوله فاصله ۲۳۰۰ میله بیان کړې ده په داسې حال کښې چه صحیح فاصله ۲۲۳۰.۵ میله ده د تخریج صورت ئې دا دی مابین البلدین - جم عرض مکه. طول قم > د قبلې سمت

۹۶۹۰ / آ + ۷۵۲۰ آ + ۰۰۶۵ : ۰ - ۷۲۷۵ / آ - ۲۸' / ۳۲ × ۱ / ۶۹ میله = ۵ / ۲۲۳۰ میله

**دویمه قاعده** مم عرض موقع - مم عرض مکه جم فرق طول. جم مابین البلدین - جب عرض مکه قم عرض موقع جم (عرض موقع - عرض البلد)

۴۰۶۸ ، ۰ + ۹۱۶۵ آ : ۳۲۳۳ ۰ = ۴۲ / ۲۵ (عرض موقع- عرض البلد)

۵۶۲۱ آ + ۳۶۷۳ ۰ آ + ۹۹۷۵ / آ = ۹۲۶۹ / آ - ۲۸' / ۳۲.

مسټر مشرقي که چیرته د فاصلې د معلومولو طریقه نه پیژندلی نو د زمکې په کُرې (ګلوب) باندې دې تار ایښی او کچلې دې وای

**۴ سطحي دماغو د زمکې کُره هم سطحي وګرځوله**

دی وایي

((د اصلاح نقشه یا تر دې ښه نقشه یعنې د سکولونو را وباسئ او دکوم ښار چه د قبلې د سمت معلومول غواړی د هغه ښار او مکې معظمې تر منځ لیکه وباسئ چه کوم سمت معلوم شو کږه یا سیخه چه څه ډول لیکه وي.

همدا ډول سیخ یا کوږ د قبلې سمت دی)).




مسټر مشرقي ته تر اوسه پورې دا هم معلوم نه دي چه زمکه ګول (ګرده) ده څکه هغه د قبلې د سمت د تخریج لپاره د مسطح نقشې د استعمالولو مشوره ورکوي په داسې حال کښې چه د کُرې او مسطحې دوارو حسابونه ډیر مختلف دي چنانچه د مسطحې نقشې مطابق د کراچی د قبلې سمت ۷/۵ جنوب ته مائل دی لکه څرنګه چه په دې شکل کښې ښکاره ده.

او په کُروي حساب سره د کراچۍ د قبلې سمت یواځې ۲/٤ درجې د جنوب خوا ته دی او همدا صحیح دی. په دواړو طریقو کښې ۵/۱ درجې معمولي تفاوت نه بلکه ډیر تفاوت دی

**د مثلث کروي له حسابه د تخریج صورت دا دی:**

مم عرض موقع - مم عرض مکه جم فرق طول

مس > سمت قبله - جم عرض موقع مس فرق طول قم (عرض موقع - عرض البلد)

۱ / ۱۳َ - ۲۴ / ۹َ - عرض موقع - ۲۳ / ۷۷َ - ۰ / ۳۵۶۳ - آ / ۹۴۹۵ + ۰ / ۴۰۶۸ (-)

۹۲ / ۴َ - ۸۷ / ۶َ _ ۱۸۰َ . (-) ۸۷ / ۶َ - (-) ۱ / ۳۷۴۱ = (-) ۱ / ۷۰۳۸ آ / ۷۰۹۰ + آ / ۹۶۱۳ -

زاویه سمت قبله - ۹۰َ - ۴َ / ۲ مائل جنوب طرفته.

مستر مشرقي د زمکې د کُرویت (گول والي) علم نه لري خو کاش چه د هغه یوه عقلمند ملګري هغه ته د زمکې په کُرې (گلوب) باندې تار یا فیته ایښې وای او په هغه باندې ئې د قبلې د صحیح سمت مشاهده کړې وای لیکن د هغه که چیرته کوم عقلمند ملګری وای نو د هغه به ولې دوست جوړ شوی وای.

**۵ - انف فی الماء و است فی السماء** (پزه په اوبو کښې او کونه په آسمان کښې)

فرمایي:

((په ټول هندوستان کښې له سورت. ناګپور. کټک او داسې نورو ځخه پرته کوم چه په هغه عرض البلد باندې واقع دي په کوم باندې چه مکه معظمه واقع ده د هندوستان د نورو ټولو جوماتونو قبله غلطه ده. یو جومات هم داسې نه دی چه په هغه کښې لمونځ کوونکي تر اوسه پورې یو لمونځ هم قبلې ته مخامخ ادا کړی وي د لاهوریانو او امرتسر د خلکو قبله بیت المقدس ده، د راولپنډۍ د خلکو قبله بغداد او دمشق. د پېښور د خلکو بیروت. د دهلي د خلکو بوشهر. د ملتان کوفه. د کراچۍ مدینه، د مدراس عدن او د بمبئي د خلکو د سواکن بندرګاه))

مقصد دا دی چه د هندوستان د ټولو جوماتونو مخ د مغرب خوا ته دی. چونکه سورت. ناګپور او کټک د مکې معظمې په عرض البلد باندې پراته دي د دې لپاره د هغه ځایونو جوماتونه صحیح دي. له هغو پرته د هندوستان جوماتونه کوم چه د مغرب په سمت باندې دي د هغو مخونه د مکې مکرمې په ځای د هغو ښارونو خوا ته دي چه د هغو په عرض البلد باندې واقع دي. له دې ځخه ثابته شوه چه د مستر مشرقي په نزد د مشرق او مغرب معنی په یوه عرض البلد باندې وقوع ده. له دې ځخه پورته به د ((انف فی الماء)) مثال ځه وي چه د اروپا د درځنونو ډګریو د لاس ته راوړلو تر څنګ د مشرق او مغرب له حقیقت سره نابلده دی.

د ((است فی السماء)) هم د نمونې په توګه یواځې یو مثال ملاحظه کړی دا د شمال. جنوب. مشرق او مغرب له سمتونو ځخه نابلده مستر مُلاّ ته وایي.

((ستاسو بلا پوهيږي چه د مکې د سمت معلومول څه ته وائي، تاسو ته معلومه ده چه جغرافيه د کوم غوائي نوم دی، علم نجوم څه ته وائي، دوربين چه شی دی، د سرطان خط کوم مرض ته ويل کيږي، تاسو يواځې د شپې پاتې شوې سړې مړی ګڼل او خرڅول نه پيژنئ او که چيرته مړی زياتې شي او ...........................))

له نخوت او غرور څخه ډک مدعي چه په هر څه پوهيږي او وايي چه زما غوندې بل څوک نشته په دماغو باندې ئې د قدرت له خوا څخه دا ښکاره عذاب نه دی نور څه دي چه د مشرق او مغرب غوندې د بديهي (ښکاره) شيانو د پيژندلو شعور هم نه لري، کاش چه دومره لويه خبره ئې د شپې د پاتې شوي سړې مړی خرڅوونکي مُلا څخه معلومه کړې وای. راشی اوس لا هم وخت شته له مُلا څخه د مشرق او مغرب يو سبق ووايی او که نه چه کوم مشرقي ته چه د مشرق معلومات نه وي نو هغه د ((رنګي کو نارنګي)) او ((نام کافور برای زنګي)) مصداق دی.

د اُفق دائرې او د معدل النهار د تقاطع (پرې کيدو) نقطې ته مشرق او مغرب ويل کيږي او کوم ځايونه چه د کوم مقام د اول السمت تر دائرې لاندې واقع شي هغه به د هغه ځای د مشرق او مغرب په سمت کښې وي، علامه بهاؤ الدين عاملي په تشريح الافلاک کښې فرمايي:

**((السادسة الافق و هی واسطة بين النصف الفوقانی و التحتانی و تنصف الاولیٰ (ای المعدل) علی نقطتی المشرق و المغرب و الخط الواصل بينهما خط الاعتدال، و قال العلامة امام الدين المهندس اللاهوری فی شرحه المسمی بالتصريح فی شرح التشريح و يلاحظ فی مفهومها الارض و قطبها سمتا الرأس و القدم)) .(تصريح ص۲۸)**

که چيرته په يوه عرض البلد باندې د وقوع نوم مشرق او مغرب وي نو مُلا به هم د مستر غوندې آسانه خبره کړې وای چه کوم ښار د مکې مکرمې په عرض البلد باندې واقع دي د هغو قبله مغرب ده، په دې حالت کښې د قبلې د سمت د تخريج لپاره د هيڅ تکليف ضرورت نه وو حالانکه په دې صورت کښې د قبلې د سمت تخريج نسبتًا زيات مشکل دی. چنانچه په تشريح الافلاک کښې د قبلې د سمت د تخريج د يوې ساده او عام فهمې طريقې تر بيانولو وروسته له مکې مکرمې سره د مساوي عرض البلد مقاماتو لپاره د اصطرلاب په ذريعې سره لږ غوندې پيچلې طريقه بيانوي

**((و ان ساوی عرضه عرضها فضع ثامنة الجوزاء او الثالثة و العشرين من السرطان حال کون الشمس فی احدهما علی خط وسط السماء فی صفيحة الاصطرلاب المعمولة لعرض البلد و اعلم موضع المرئی من اجزاء الحجرة ثم ادر العنکبوت بقدر ما بين الطولين الی المغرب ان کان طوله اکثر و ادر بالخلاف ان کان اقل احد الجزئين من مقنطرات الارتفاع فظل المقياس وقت بلوغ الشمس اليه علی صوب القبلة)) .(تصريح ص٥٠)**

له دې تحقيق څخه ثابته شوه چه د استواء له ليکې پرته پاتې په ټولې دنيا کښې چه چيرته هم کوم دوه ځايونه په يوه عرض البلد باندې واقع شي نو په هغو کښې يو مقام د بل مقام په مشرق يا مغرب کښې هيڅکله نه شي واقع کيدلی. د دې لپاره چه د هر مقام د اول السموت دائره له زيات څخه زيات عرض د همدې ځای د نصف النهار په دائرې باندې وي، بيا د هغه قوس چه څومره د مشرق او مغرب نقطو ته نژدې کيږي همدومره د هغه عرض هم کميږي، تر دې پورې چه د مشرق او مغرب په نقطو باندې عرض البلد صفر وي. د مثال په توګه د لاهور په مشرق يا مغرب کښې چه کوم مقام واقع دی د هغه عرض البلد په لازمي توګه د لاهور د عرض البلد څخه کم وي او کوم مقام چه د لاهور په عرض البلد باندې وي هغه هيڅکله د لاهور په مغرب يا مشرق کښې نه شي کيدلی بلکه د لاهور له مشرق يا مغرب څخه به د شمال خوا ته مائل وي. دا ښکاره حقيقت چه همداسې په پوهه کښې را نه شي نو په کُرَۂ ارضي (ګلوب) باندې د دې مشاهده کيدلی شي. د نور وضاحت لپاره مونږ د هغو ښارونو صحيح سمتونه ليکو کوم ښارونه چه مشرقي د عرض البلد د يو والي پر بناء د مغرب خوا ته ګڼلي دي. لومړی سورت، ناګپور او کټک را واخلی چه د قبلې سمت ئې مشرقي صاحب د مغرب په طرف بولي.

د قبلې د سمت د تخريج هغه قاعده چه د لاهور او کراچی د قبلې د سمت په بيان کښې تير شو د هغه په مطابق د هغو د قبلې د سمت تخريج به داسې وي

سورت ، طول - ۹۲۴۱/آ - ۰/۳۳۲۰ - ۲۴/۹۷° - عرض موقع - ۲۱/۲° - ۳/۷۷ .

۰/۴۰۷۹ + ۹۲۴۱/آ ۰/۳۳۲۰ - ۲۴/۹۷° - عرض موقع - ۲۱/۲° - ۳/۷۷

۹۵۷۴/آ + ۸۱۰۹/آ + ۱/۱۸۲۵ - ۰/۹۵۰۸ - ۸۳/۶° . ۹۰° - ۸۳/۶° - ۶/۴° .

ناګپور، طول ۷۹/۱° ، عرض ۲۱/۱° ، سمت قبله ۷/۷° له مغرب نه شمال طرفته .

۰/۴۰۷۹ + ۸۸۹۳/آ - ۰/۲۹۷۲ - ۲۶/۷۷° - عرض موقع - ۲۱/۱° - ۵/۶۷° ،

۹۵۰۷/آ + ۹۱۱۵/آ + ۱/۰۰۵۵ - ۰/۸۶۷۷ - ۸۲/۳° . ۹۰° - ۸۲/۳° - ۷/۷° .

کټك ، طول ۸۵/۹° ، عرض ۲۰/۵° ، سمت قبله ۹/۷° مغرب نه شمال طرف ته .

۰/۴۰۷۹ + ۸۴۱۸/آ - ۰/۲۴۹۷ - ۲۹/۳۷° - عرض موقع - ۲۰/۵° - ۸/۸۷° .

۹۴۰۹/آ + ۰/۰۱۵۲ + ۰/۸۱۲۰ - ۰/۷۶۸۱ - ۸۰/۳° . ۹۰° - ۸۰/۳° - ۹/۷ .

اوس هغه ښارونه را واخلی د کومو په عرض البلد باندې واقع شوي ځايونه مشرقي صاحب د هغو قبله بللې ده.

له لاهور څخه بيت المقدس

لاهور، طول ۷۴/۳° ، عرض ۳۱/۶° ، بيت المقدس طول ۳۵/۲° عرض ۳۱/۸°

۰/۲۰۷۶ + ۸۸۹۹/آ - ۰/۰۹۷۵ - ۳۸/۶۲° - عرض موقع - ۳۱/۶° - ۷/۰۲°

۸۹۲۸/ آ+ ۹۰۹۹/ آ+ ۹۱۱۰/ ۰ = ۷۱۳۷/ ۰ = ۱ْ/ ۷۹ . ۹۰ ْ - ۱ْ/ ۷۹ - ۹ْ/ ۱۰ له مغرب نه شمال طرفته.

له امرتسر څخه بيت المقدس

امرتسر . طول ۸ْ/ ۷۴ . عرض ۶ْ/ ۳۱ . بيت المقدس طول ۲ْ/ ۳۵ . عرض ۸ْ/ ۳۱

۲۰۷۶/ ۰ + ۸۸۶۸/ آ - ۰۹۴۴/ ۰ = ۸۲ْ/ ۳۸ = عرض موقع - ۶ْ/ ۳۱ - ۲۲ْ/ ۷

۸۹۱۶/ آ+ ۹۱۷۶/ آ+ ۹۰۰۹/ ۰ = ۷۱۰۱/ ۰ = ۷۹ْ . ۹۰ ْ - ۷۹ْ = ۱۱ْ له مغرب نه شمال طرفته.

له راولپنډۍ څخه بغداد

۱۷۱۰/ ۰ + ۹۴۰۶/ آ - ۱۱۱۶/ ۰ = ۷۲ْ/ ۳۷ عرض موقع - ۶ْ/ ۳۳ - ۱۲ْ/ ۴

۸۹۸۰/ آ+ ۷۴۹۱/ آ+ ۱۴۴۰/ ۱ = ۷۹۱۱/ ۰ = ۸ْ/ ۸۰ . ۹۰ ْ - ۸ْ/ ۸۰ = ۲ْ/ ۹ له مغرب نه شمال طرفته.

له راولپنډۍ څخه دمشق

راولپنډئ . طول ۱ْ/ ۷۳ . عرض ۶ْ/ ۳۳ . دمشق. طول ۳ْ/ ۳۶ . عرض ۵ْ/ ۳۳

۱۷۹۲/ ۰ ۹۰۳۵/ آ ۰۸۲۷/ ۰ = ۵۸ْ/ ۳۹ = عرض موقع - ۶ْ/ ۳۳ - ۹۸ْ/ ۵

۸۸۶۹/ آ+ ۸۷۴۰/ آ + ۹۸۲۰/ ۰ = ۷۴۲۹/ ۰ = ۸ْ/ ۷۹ . ۹۰ ْ - ۸ْ/ ۷۹ - ۲ْ/ ۱۰ له مغرب نه شمال طرفته ته.

له پيښور څخه بيرت

پيښور . طول ۵ْ/ ۷۱ . عرض ۳۴ْ . بيروت . طول ۵ْ/ ۳۵ . عرض ۹ْ/ ۳۳

۱۷۲۶/ ۰ + ۹۰۸۰/ آ - ۰۸۰۶/ ۰ = ۷۲ْ/ ۳۹ = عرض موقع - ۳۴ْ - ۷۲ْ/ ۵.

۸۸۶۱/ آ ۸۶۱۳/ آ+ ۰۰۱۷/ ۱ = ۷۴۹۱/ ۰ = ۹ْ/ ۷۹ . ۹۰ ْ - ۹ْ/ ۷۹ - ۱ْ/ ۱۰ له مغرب نه شمال طرفته.

له دهلي څخه بوشهر

دهلی . طول ۲ْ/ ۷۷ . عرض ۶ْ/ ۲۸ . بوشهر . طول ۹ْ/ ۵۰ . عرض ۲۹ْ .

۲۵۶۲/ ۰ + ۹۵۲۵/ آ - ۲۰۸۷/ ۰ = ۷۳ْ/ ۳۱ = عرض موقع - ی۶/ ۲۸ - ۱۳ْ/ ۳

۹۲۹۶/ آ - ۶۹۳۹/ آ + ۲۶۳۲/ ۱ = ۸۸۵۸/ ۰ = ۶ْ/ ۸۲ . ۹۰ ْ - ۶ْ/ ۸۲ - ۴ْ/ ۷ له مغرب نه شمال طرفته.

له ملتان څخه کوفه

ملتان . طول ۴ْ/ ۷۱ . عرض ۲ْ/ ۳۰ . کوفه. طول ۴ْ/ ۴۴ . عرض ۳۲ْ .

۲۰۴۲/ ۰ + ۹۴۹۹/ آ - ۱۵۴۱/ ۰ = ۰۵/ ۳۵ = عرض موقع - ۲ْ/ ۳۰ - ۸۵ْ/ ۴

۰/۹۱۳۷ آ + ۰/۷۰۷۲ آ + ۱/۰۷۲۹ - ۰/۶۹۳۸ = ۰/ ۷۸/۶° ، ۹۰° - ۷۸/۶° = ۱۱/۴° له مغرب نه شمال طرفته.

له کراچۍ څخه مدینه منوره

کراچۍ . طول ۶۷° ، عرض ۲۴/۹° . مدینه منوره، طول ۴۰° ، عرض ۲۴/۶°

۰/۳۳۹۳ + ۰/۹۴۹۹ آ - ۰/۲۸۹۲ = ۲۷/۲۰° - عرض موقع - ۲۴/۹° = ۲/۳°

۰/۹۴۹۱ آ + ۰/۷۰۷۲ آ + ۰/۳۹۶۵ = ۱/۰۵۲۸ - ۱ = ۸۴/۹° ، ۹۰° - ۸۴/۹° = ۵/۱° له مغرب نه شمال طرفته.

له مدراس څخه عدن

مدارس ، طول ۸۰/۳° . عرض ۱۳/۱° . عدن ، طول ۴۵/۱° ، عرض ۱۲/۹°

۰/۶۴۰۱ + ۰/۹۱۲۳ آ - ۰/۵۵۲۴ = ۱۵/۶۷° - عرض موقع - ۱۳/۱° = ۲/۵۷°

۰/۹۸۳۶ آ + ۰/۸۴۸۴ آ ۱/۳۴۸۹ - ۱/۱۸۰۹ = ۱ - ۸۶/۲° . ۹۰° - ۸۶/۲° = ۳/۸° له مغرب نه شمال طرفته.

له بمبئي څخه سواکن

بمبئ ، طول ۷۲/۹° ، عرض ۱۹° . سواکن. طول ۳۷/۳° ، عرض ۱۹/۱°

۰/۴۶۰۶ + ۰/۹۱۰۱ آ - ۰/۳۷۰۷ = ۲۳/۰۷° - عرض موقع - ۱۹° = ۴/۰۷

۰/۹۶۳۸ آ + ۰/۸۵۴۹ آ + ۱/۱۴۹۲ - ۰/۹۶۷۶ = ۸۳/۹° . ۹۰° - ۸۳/۹° = ۶/۱° له مغرب نه شمال طرفته.

اوس تاسو ته اندازه ولګیده چه له مغرب څخه په درځنونو ډګریو لاس ته راوړونکی د مشرقي له مشرق او مغرب څخه د ناپوهۍ څه حال دی. تر دې زیاته تږکه خو دا چه ده کټک د مکې مکرمې په عرض البلد باندې او ملتان د کوفې په عرض البلد باندې بولي حالانکه د کټک او مکې مکرمې په عرض البلد کښې د یوې درجې او د ملتان او کوفې په عرض البلد کښې د دوه درجو فرق دی.

۶ - له مشرق او مغرب څخه د ناپوهۍ یوه بله ډګري (سند).

مدعي «ټول هغه دی» د جهلِ مرکب مجسمه فرمایي:

«له مکې معظمې څخه سورت چیرته چه په لومړي پیړۍ کښې تر ټولو مخکښې راغلي وو ټیک د مشرق خوا ته وو».

تر دې مخکښې مونږ د مستر مشرقي عبارت نقل کړی وو چه حاصل ئې دا دی چه د سورت، ناګپور او کټک جوماتونه په صحیح سمت باندې دي ځکه چه مکه مکرمه له هغه ځای څخه خاص په مغرب کښې دی. د دغو دواړو عبارتونو له لګولو څخه دا ثابته شوه چه له څو همجنسو جهالو

(ناپوهانو) څخه د "علامه" د خطاب لاس ته راوړونکی او ملایانو ته د سرې مړې شماروونکی مستېر مشرقي د رياضي پوهنولي پرواز تر همدې ځایه دی چه د هغه په خیال کښې که چیرته یو ځای د بل ځای په مشرق کښې دی نو بل به د لومړي په مغرب کښې وي:

نما بصاحب نظرے گوہر خود را عیسٰی نتوان گشت بتصدیق خرے چند

حقیقت دا دی چه د استواء له لیکې پرته په ټوله دُنیا کښې دا په یوه صورت کښې هم نه شي کیدلی چه دوه مقامونه پخپل منځ کښې د یوه او بل په مشرق او مغرب کښې واقع وي. که چیرته یو مقام د بل مقام په مشرق کښې دی نو بل هیڅکله د هغه په مغرب کښې نه شي کیدلی. همدارنګه یو مقام د بل مقام په مغرب کښې دی نو بل مقام هیڅکله د هغه په مشرق کښې نه شي کیدلی.

د دې تفصیل مونږ پورته بیان کړ چه د معدل النهار او اُفق دائرو د تقاطع نقطو ته نقطة المشرق و المغرب ویل کیږي او د هر مقام د اول السموت دائرې (هغه دائره چه د کوم مقام په سر باندې له تیریدو سره له نقطة المشرق و المغرب څخه تیره شي) تر لاندې راتلونکي ځایونه به د هغه مقام په مشرق او مغرب باندې وي.

د هر مقام د اول السموت د دائرې له زیات څخه زیات عرض البلد د هغه مقام د نصف النهار په دائرې باندې وي، تر دې وروسته مشرق او مغرب دواړو خواوو ته د هغه عرض البلد کمیږي تر دې پورې چه د اول السموت دائره په نقطة المشرق و المغرب باندې له معدلې دائرې سره تقاطع کوي چیرته چه د هغه عرض البلد بالکل صفر وي، د دې لپاره د هر مقام په مشرق او مغرب کښې چه کوم مقامات راځي د هغو عرض البلد د همدې مقام له عرض البلد څخه لازماً کم وي. اوس که چیرته کوم ناقص العقل مستېر «ب» لره د «الف» په مغرب کښې وبولي نو په هغه باندې به لازمیږي چه د «ب» عرض د «الف» له عرض څخه کم وي. په داسې حال کښې چه په داسې حال کښې چه د «ب» عرض د «الف» له عرض څخه زیات وو. لیکن د مستېر مشرقي غوندې غټ عقل لرونکی سړی ښائي د ریاضې په داسې بدیهي مسئلې باندې په پوهولو سره هم پوه نه شي مستېر له ریاضي سره دومره نسبت هم نه لري لکه څومره نسبت چه سوسمار ئې له کب سره لري کاش چه د مستېر کوم ملګری د زمکې په کُرې (ګلوب) باندې ده ته د اُفق او اول السموت په دائرو سره د دې حقیقت مشاهده پرې کړی وای. اګر که دا خطره به خامخا وي چه مستېر به خپل ملګری یا همدرد احمق وبولي او سپک ئې کړي. د دې لپاره مونږ مخکښې لیکلي دي چه مستېر د زمکې له ګول والي غوندې شي څخه نابلده دی چنانچه هغه د قبلې د سمت د ایستلو لپاره مسطحه نقشه استعمالوي.

تر دې وروسته مونږ د مثال په توګه د کُروي مثلث په ذریعې سره سمت باسو او دا ښیو چه مکه مکرمه له اروليي غر څخه په مغرب کښې ده. د مغرب له نقطې څخه یواځې ۱/۰ درجه شمال ته مائل ده او اروليي غر د مکې مکرمې په شمال کښې نه بلکه له مشرق څخه ۱۳/۳ درجې شمال خوا ته منحرف ده.

له اروليي غره څخه مکه مکرمه

اروليي غر، طول ۳/ ۷۳ ، عرض ۲۵ . مکه مکرمه ، طول ۹/ ۳۹ ، عرض ۳۵/ ۲۱

۰/۴۰۷۹ + ۰/۹۲۱۶ آ - ۰/۳۲۹۵ = ۲۵/۰۸ - عرض موقع - ۲۵ = ۰/۰۸

۰/۹۵۷۶ آ + ۰/۸۱۹۱ آ + ۲/۸۳۷۰ = ۲/۶۱۳۷ = ۸۹/۹ ، ۹۰ - ۸۹/۹ = ۰/۱ له مغرب نه شمال طرفته.

له مکې مکرمې څخه اروليي غر

۰/۳۳۱۳ + ۰/۹۲۱۶ آ - ۰/۲۵۲۹ = ۲۹/۱۸ - عرض موقع - ۳۵/ ۲۱ - ۷/۸۳

۰/۹۴۱۸ آ + ۰/۸۱۹۱ آ + ۰/۸۶۵۵ = ۰/۶۲۶۴ = ۷۶/۷ ، ۹۰ - ۷۶/۷ = ۱۳/۳ له مشرق نه شمال طرفته.

مونږ دا حسابونه ولیکل لیکن د مشرق او مغرب له سمتونو څخه نابلده مستر په مخکښې داسې دي لکه د میښې په مخکښې فریاد یا نوحه.

۷ - **له عرض البلد څخه نابلد:**

له ریاضي څخه نابلده مستر د ریاضي په ذریعې سره خو پریږده چه د کوم ځای طول او عرض معلوم کړي حیرانتیا خو په دې باندې ده چه له کومې نقشې څخه د طول او عرض د لیدلو هم صلاحیت نه لري. څو مثالونه ملاحظه کړی.

۱- د مستر په خیال کښې د کټک او مکې مکرمې عرض البلد یو دی په داسې حال کښې چه په دواړو کښې د یوې درجې فرق دی.

۲- کوفه د ملتان په عرض البلد باندې دی په داسې حال کښې چه په هغو کښې دوه درجې فرق دی.

۳- مستر د اصلاح (په معنی د فساد سره) په نقشه کښې د څو ښارونو طول او عرض غلط دي.

٤- مستر د لاهور د قبلې د سمت انحراف ۲۵ درجې ښوولی دی او د قبلې د سمت دا ایستل د هغې غلطې طریقې مطابق هم نه ده کومه چه مستر لیکلې ده. څرګندیږي چه په دې کښې هم مستر د طول او عرض په اخیستلو کښې غلطي کړې ده او که نه پخپله د مستر د غلطې طریقې مطابق هم د لاهور د قبلې د سمت انحراف ۱۸ درجې جوړیږي. شکل ملاحظه کړی.




د لاهور د قبلې دا سمت د مستر د قاعدې مطابق دی چه تر اوسه پورې نه دی پوه شوی چه زمکه ګول (دائروي) ده او که نه نو د کُروي مثلث په حساب سره صحيح سمت ۹/۹ درجې له مغرب څخه د جنوب خوا ته دی. چه تخريج ئې مونږ مخکښې کړی دی.

۸ لکی لرونکی ستوری په زمکې باندې

**مستر مشرقي ملايانو ته وايي:**

((ستاسو بلا په دې پوهيږي چه د مکې د سمت معلومول څه ته وائي؟ تا ته دا معلومه ده چه جغرافيه د کوم غوائي نوم دی؟ علم نجوم څه ته وائي؟ دوربين څه شی دی؟ د سرطان ليکه کوم مرض ته وائي؟))

مخکښې فرمايي:

((ما يو سړئ د لاهور ملايانو او معمارانو ته وليږه چه هغوی د جومات جوړولو په وخت کښې د قلبې طرف څرنګه تاکي؟ د يوه لوی عمر جاهل ووېل! واه واه دا خو ډير آسانه دی، د قطب ستوري خواته ئې لاس وغزاوه او د اوږې خوا ته ئې وکتل او ودريد او و ئې ويل چه د پوزې ته مخامخ قبله ده. خير زه پوه شوم چه د مُلا نجوم پوهنه څومره له خطاء پاکه ده)).

## د پورتني سوال غوندې بل سوال

**سوال** په خولۍ کښې لمونځ کول له کراهت نه پرته جائز دی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : **قال فی شرح التنوير فی مکروهات الصلوة و صلوته حاسراً ای کاشفاً رأسه للتکاسل ولا بأس به للتذلل و اما للاهانة بها فکفر و لو سقطت قلنسوته فاعادتها افضل و قال فی الشامية و فی الدر عن التاتارخانية و الظاهر انّ افضلية اعادتها حيث لم يقصد بترکها التذلّل علی ما مرّ. (شامية ج۱)**

له دې عبارت څخه څرګنده شوه چه پرته له تکاسل (لټي يا سستي) څخه لوڅ (لغړ) سر لمونځ کولو کښې هم کراهت نشته نو په خولۍ کښې خو به په طريقۀ اولی سره مکروه نه وي. همدارنګه په **(لوسقطت قلنسوته ـ الخ)** باندې شارح په خولۍ کښې د لمانځه د ادا کولو په سر د کراهت حکم نه لګول په نه کراهت باندې ښکاره دليل دی. **لان السکوت فی معرض البيان بيان.**

له کومو عبارتونو څخه چه کراهت معلوميږي هغه په هغه سرې باندې محمول دی چه مجلس ته په خولۍ کښې تګ او راتګ نه کوي او ثياب بذله ئې ګڼي.

له مختلفو روايتونو له مخې د صحابۀ کرامو رضی الله تعالی عنهم او د امت د اسلافو په خولۍ کښې لمونځ کول ثابت دي. چنانچه په صحيح البخاري کښې دي **وضع ابو اسحق قلنسوته فی الصّلوة ورفعها (بخاری ج۱، ص۱۵۹) کان القوم يسجدون علی العمامة والقلنسوة. (بخاری ج۱، ص۵۶)**

**فقط والله تعالیٰ اعلم** **۱۰/ربيع الآخر ۷۳ ــــ هجری**

## په سجدې کښې د تندي اکثره برخه او پوزه په زمکې باندې کيښودل واجب دي

**سوال** يو سړی د لمانځه په وخت په سجده کښې د تندي اکثره برخه او پوزه په زمکې باندې نه ږدي په دې غرض سره چه په تندي مې داغ و نه لګيږي. آيا په داسې کولو سره ئې لمونځ کيږي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د تندي اکثره برخه او پوزه په زمکې باندې کيښودل واجب دي له دې امله د داسې لمانځه راګرځول به واجب وي

**قال فی الشامية فی فصل فی بيان تأليف الصلوة الی انتهائها تحت (قوله و وضع اکثرها واجب الخ) اختلف هل الفرض وضع اکثر الجبهة ام بعضها وان قل قولان وارجحهما الثانی نعم وضع اکثر الجبهة واجب للمواظبة**

وایضا تحت (قوله کما حررناه فی شرح الملتقی) فلاشبه وجوب وضعهما معاً (ای الجبهة والانف) و کراهة ترك وضع کل تحریماً الخ.(ردالمحتار ج۱) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۱ جمادی الاولی ۷۴ ہجری

## قومه او جلسه او په هغو کښې تعدیل واجب دی

**سوال:** قومه او جلسه او تعدیل د ارکانو سنت دی او که واجب؟ او په سهو سره پرېښودل ئې سجدهٔ سهو واجبوي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** راجح قول د وجوب دی. لهذا په سهو سره پرېښودلو باندې ئې سجدهٔ سهو لازمیږي.

قال فی الشامیة ومقتضی الدلیل وجوب الطمانینة فی الاربعة ای فی الرکوع والسجود فی القومة والجلسة و وجوب نفس الرفع من الرکوع و الجوس بین السجدتین للمواظبة علی ذٰلك کلّه و للامر فی حدیث المسیئ صلوته ولما ذکره قاضی خان من لزوم السجود والسهو بترك الرفع من الرکوع ساهیاً الخ. (ردالمحتار ج۱، ص۴۳۳) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۸ محرم ۷۵ ہجری

د فساد د توهّم پر بناء باندې د ماښام او وترو د لمانځه په راګرځولو کښې دې څلور رکعته کوي

**سوال:** د فساد د توهّم پر بناء باندې د احتیاط له مخې د لمانځه د قضائي ګرځولو په اړه د در مختار په باب النوافل کښې د صلوة علی الدابة څخه څو لیکې مخکښې دا عبارت راغلی دی چه: ومانقل ان الامام قضی صلوة عمره فان صحّ فنقول کان یصلّی الوتر والمغرب اربعاً بثلاث قعدات۔الخ. له دې څخه دا شبهه پیدا کیږي چه د ماښام اولنی لمونځ صحیح دی نو په راګرځولو کښې د څلورو رکعتو نفلو له جملې څخه په دریم رکعت باندې د قعدې له وجې باید سجدهٔ سهو لازمه شي او که چیرته اولنی لمونځ صحیح نه وي بلکه اعاده صحیح وي نو یو خو تر دریم رکعت وروسته د سلام د ځنډ یا تاخیر له وجې باید سجدهٔ سهو ادا شي. بله دا چه دا څلورم رکعت خو د نفلو دی او د نفلو تر شروع کولو وروسته شفع (د دویم رکعت یو ځای کول) واجبیږي. نو د دې مسئلې حل به څرنګه وي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** سجدهٔ سهو په عمد (قصداً) کښې نه وي. د دې لپاره په نوموړي صورتونو کښې د سجدهٔ سهو د وجوب هیڅ کومه وجه نشته او په نوافلو کښې له شروع کولو

وروسته شفع هلته واجبيږي چه نوافل ئې قصداً[۱] شروع کړي وي. او نوموړي صورت په دې کښې داخل نه دی.

قال فی شرح التنویر ولو سها عن القعود الاخیر عاد ما لم یقیدها بسجدة وان قیدها تحول فرضه نفلا برفعه وضم سادسة ولو فی العصر والفجر ان شاء لاختصاص الکراهة والاتمام بالقصد وفی الشامیة. (قوله لاختصاص الکراهة الخ) جواب عما قد یقال ان النفل بعد العصر والفجر مکروه وفی غیرهما وان لم یکره لکن یجب اتمامه بعد الشروع فیه فکیف قلت ولو بعد العصر والفجر وقلت انه مخیر ان شاء ضم والا فلا والجواب انه لم یشرع فی هذا النفل قصداً وما ذکرته من الکراهة ووجوب الاتمام خاص بالنفل قصداً وایضاً فی الشرح ولا عهدة لو قطع وفی الحاشیة ای لا یلزمه القضاء لو لم یضم وسلم لانه لم یشرع به مقصوداً کما مرّ. (رد المحتار، باب سجود السهو) په نوافلو کښې هم لزم نفل شرع فیه قصداً مقید په قصد سره دی. مطلقاً په هرې شروع سره ئې د لزوم حکم نه دی ورکړی. فقط والله تعالیٰ اعلم

۲۲ رجب ۷۵ ھجری

## په ماښام یا وترو کښې چه سجدهٔ سهو و نه شي نو د راګرځولو په وخت کښې به سړی څو رکعته ادا کوي؟

**سوال** : په ماښام یا وترو کښې سجدهٔ سهو واجبه شوه لیکن سجدهٔ ئې و نه کړه نو د راګرځولو په وخت کښې به درې رکعته راګرځوي او که څلور؟ بینوا با لبرهان اٰجرکم الرحمٰن.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرته په وخت کښې د ننه ئې راوګرځوي نو درې رکعته دې راوګرځوي ځکه چه اعاده واجبه ده، او که چیرته ئې تر وخت وروسته راوګرځوله نو دا اعاده د بحر د مصنف په نزد مستحبه ده او واجبه نه ده. او د دې مقتضیٰ دا ده چه څلور رکعته په دریو قعدو سره ادا کړي لکه څرنګه چه د فساد د توهّم په وخت کښې د اعادې حکم دی. لیکن د شامي باب قضاء الفوائت ج۱، ص۶۷۸ کښې ئې د وخت تر وتلو مخکښې یا وروسته، په هر حال ئې د راګرځولو وجوب ثابت کړی دی. همدا بحث د لمانځه د واجباتو او د سجدهٔ سهو په باب کښې هم شته. پس د مختار قول په بناء په هر حال دې په اعاده (راګرځولو) کښې درې رکعته کوي. لنډه

---

۱ - فیه انه ان داوم علی النفل المشروع بغیر قصد یجب اتمامه ایضا اما عدم الوجوب ففی صورة نقضه فی الحال کذا فی الشامیة ج۱، ص۶۵۱ والجواب ان الدوام یوجب الاتمام لانه یدل علی الالتزام وههنا لیس کذلک لکنه لا یرید الالتزام الجدید بل اراد جبر النقصان والخروج عن العهدة ۱۲ منه

دا چه د دې مدار د اعادې په وجوب او په نه وجوب پورې دې. ځينو د دې مدار دا ګاکلی دی چه ((په واجب الاعاده لمانځه کښې لومړنی لمونځ (کوم چه اول ادا شوی دی) فرض دی او که دویم)) نو دا صحيح نه ده ځکه چه که چيرته لومړنی لمونځ فرض و منل شي نو بيا هم را ګرځول شوی لمونځ د جبرِ نقصان لپاره خو خامخا واجب دی. او وجوب د تثليث (درې رکعتيز لمانځه) لپاره خنډ نه دی. (کما فی الوتر) لهذا د څلورو رکعتونو حاجت نشته. د لومړني لمانځه د فرضيت د قائلينو دا مطلب نه دی چه دويم لمونځ محض نفل دی. په شرح تنوير کښې دي چه: **والمختار انّهٔ جبرللاول لانّ الفرض لايتکرر وفی الشامية ای الفعل الثانی جابر للاوّل بمنزلة الجبر بسجود السهو الخ.**

څرګنده شوه چه دويم لمونځ د سجدهٔ سهو غوندې جابر (د مخکښينی لمانځه لپاره پتی) او واجب دی. بلکه شامي په باب د قضاء الفوائت ج۱،ص۶۷۹ کښې تصريح کړې ده چه کوم خلک د لومړني لمانځه د فرض د ساقطوالي قائل دي هغه دويم لمانځه ته هم فرض وايي. پوره تفصيل په شاميه کښې وګورئ.

## د رکوع په هيئت کښې د سړي او ښځې تر منځ فرق

**سوال**: ما قولکم رحمکم الله هل تفارق المرأة الرّجل فی هيئة رکوع الصلوٰة ام لا؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بينهما [1] فرق ذکره الفقهاء رحمهم الله تعالیٰ کما قال فی الشامية تحت (قوله ويسنّ ان يلصق کعبيه) هذا کلّه فی حق الرجل امّا المرأة فتنحنی فی الرکوع يسيراً ولا تفرج ولکن تضم وتضع يديها علی رکبتيها وضعاً وتحنی رکبتيها ولا تجافی عضديها لان ذٰلک استر لها وفی شرح الوجيز الخنثٰی کالمرأة اهـ (ردالمحتار ج۱،ص۳۶۱) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۴ ربيع الاول ۷۶ ســـ ـهجری

## ويده سړی د لمانځه لپاره د جګولو حکم

**سوال**: ويده سړی د لمانځه په وخت کښې را ويښول او پورته کول واجب دي او که نه؟ همدارنګه چه کله د لمانځه وخت داخل شي نو په داسې وخت کښې ويده کيدل جائز د او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که د لمانځه وخت لږ پاتې وي نو د ويده سړي را پورته کول واجب

---

[1] ښځه دې لکه سړي غوندې په رکوع کښې ملا نه برابروي بلکه څه نا څه انحناء به کوي. ډيره دې نه ټيټيږي او د لاسونو ګوتې به سره يو ځای کوي په زنګنونو به ئې ږدي. د نارينه وو غوندې به ئې خلاصې نه نيسي او زنګنوني به لږ غوندې ټيټوي او متې به له اړخونو سره لګوي. ۱۲ منه

دي. البته که چيرته مريض وو او په را ويښولو سره د تکليف خطره وه نو بيائې جګول واجب نه دي. د لمانځه د وخت تر شروع کيدو وروسته ويده کيدل په دې شرط سره جائز دي چه د لمانځه د قضا کيده ويره نه وي. پخپله د راويښيدو يقين ئې وي يا څوک د را پورته کولو موجود وي. د لمانځه له وخت څخه مخکښې ويده کيدل په هر صورت کښې جائز دي.

قال في الرد لا يجب انتباه النائم في اوّل الوقت و يجب اذا ضاق الوقت نقله البيري في شرح الاشباه عن البدائع من كتب الاصول و قال لم نره في كتب الفروع فاغتنمه آه قلت لكن فيه نظر لتصريحهم انه لا يجب الاداء على النائم اتفاقاً فكيف يجب عليه الانتباه روى مسلم في قصة التعريس عن ابي قتادة رضي الله عنه انه ﷺ قال ليس في النوم تفريط (الى قوله) انه بنومه قبل الوقت لا يكون مؤخراً و عليه فلا يأثم و اذا لم يأثم لا يجب انتباهه اذ لو وجب لكان مؤخراً لها و اثماً بخلاف اذا نام بعد دخول الوقت و يمكن حمل ما في البيري عليه. (رد المحتار ج۱، ص۳۳۲، باب المواقيت) و في صوم الشامية و مثل اكل الناسي النوم عن صلوة لانّ كلا منهما معصية في نفسه كما صرحوا انه يكره السهر اذا خاف فوت الصبح لكن النّاسي او النائم غير قادر فسقط الاثم عنهما لكن وجب على من يعلم حالهما تذكير النّاسي و ايقاظ النّائم الا في حق الضعيف عن الصّوم مرحمة له. (رد المحتار ج۲، ص۱۰۶) روى انّه عليه السلام دخل المسجد فرأى نائماً فقال يا على نبهه ليتوضأ فايقظه علىّ ثم قال على يا رسول الله انّك سباق الى الخيرات فلم لم تنبّهه قال لانّ رده علىّ كفر و رده عليك ليس بكفر ففعلت ذٰلك لتخف جنايته لو ابى. (تفسير كبير ج۸، ص۶۲۹، سورة القدر) فقط والله تعالى اعلم.

۲۸ شوال ۸۴ هجری

## د (السّلام) د لفظ په ويلو سره له لمانځه څخه ووځي

**سوال**: څه فرمائي د دين بزرګان د لاندينۍ مسئلې په باره کښې چه له لمانځه څخه د وتلو لپاره د السلام عليکم ويل واجب دي نو د پوښتنې ځای دا دی چه آيا د پوره سلام په ويلو سره له لمانځه څخه ووځي او که په نيم سلام سره يا تر دې هم په کمو الفاظو سره له لمانځه څخه سړی ووځي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له عليکم څخه مخکښې يواځې د السلام د لفظ په ويلو سره له لمانځه څخه ووځي.

لما في واجبات الصّلوة من شرح التنوير و لفظ "السلام" مرّتين و الثاني واجب على الاصحّ برهان، دون "عليكم" و تنقضي قدوة بالاوّل قبل عليكم على المشهور عندنا و عليه الشافعية و في رد المحتار (قوله و

تنقضی قدوۃ بالاوّل) ای بالسلام الاوّل قال فی التجنیس الامام اذا فرغ من صلوته فلما قال السلام جاء رجل واقتدی به قبل ان یقول علیکم لا یصیر داخلاً فی صلوته لان هذا سلام. (ردالمحتار ج۱، ص۴۳۶)

فقط والله تعالی اعلم ۱۷ محرم ۸۶ھجری

## له لمانځه پرته یواځې د سجدې د کولو حکم

**سوال** د مطهره شریعت په دې باره کښې څه حکم دی چه له لمانځه څخه د باندې د سجدهٔ تلاوت څخه پرته بل کوم ډول سجده جائزه ده او که نه؟ همدارنګه تر لمانځه وروسته د سجدې کراهت فقهاوو لیکلی دی. آیا په دې کښې د فاطمي تسبیحاتو څخه وروسته سجده کول هم شامل دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : قال شارح التنویر رحمه الله وسجدة الشکر مستحبة وبه یفتی لکنها تکره بعد الصلوة لان الجهلة یعتقدونها سنة او واجبة وکل مباح یؤدی الیه فمکروه وفی الشامیة وهی لمن تجددت عنده نعمة ظاهرة اورزقه الله تعالی مالاً او ولداً او اندفعت عنه نقمة ونحو ذلك یستحب له ان یسجد لله تعالی شکراً (قوله لکنها تکره بعد الصّلوة) الضمیر للسجدة مطلقاً قال فی شرح المنیة آخر الکتاب عن شرح القدوری للزاهدی اما بغیر سبب فلیس بقربة ولا مکروه (الی قوله) وحاصله ان ما لیس لها سبب لا تکره مالم یؤدّ فعلها الی اعتقاد الجهلة سنیتها کالتی یفعلها بعض الناس بعد الصلوة الخ. (قوله فمکروه) الظاهر انها تحریمیة لانه یدخل فی الدین ما لیس منه. (ردالمحتار ج۱، ص۶۳۱)

**له پورتني عبارتونو څخه لاندیني خبرې ثابتې شوي:**

(۱)- د شکر سجده اګر که ځینو مکروه لیکلې ده لیکن د مفتیٰ به قول له مخې دا یواځې هغه وخت مستحبه ده چه کله یو نوی نعمت چا ته حاصل شي. پرته له دې څخه مستحبه نه ده، اګر که مکروه هم نه ده.

(۲)- د دُعا سجده او داسې نور په دې شرط سره جائزه ده چه عادت به ئې نه جوړوي او سنت یا مستحب ئې و نه ګڼي او د عوامو لپاره د عقیدې د فساد ذریعه و نه ګرځي.

(۳)- تر لمانځه وروسته هر ډول سجده تر دې پورې چه د تلاوت سجده هم مکره تحریمي ده. تر لمانځه وروسته له تسبیحاتو او داسې نورو څخه په فارغیدو سره هم په همدې ځای باندې سجده جائزه نه ده ځکه چه.

۱- په حدیث شریف کښې دي چه له لمانځه څخه تر فارغیدو وروسته لمونځ کوونکی چه تر څو پورې په همدې ځای باندې پاتې وي او بل کوم داسې کار د لمانځه په خلاف نه کوي تر هغه وخته پورې ګوا که هغه په لمانځه کښې د ننه دی.

۲ - که چیرته په سهو سره څوک د لمانځه کوم رکن پریږدي او په دې حالت کښې ور په یاد شي نو د لمانځه د را ګرځولو ضرورت نشته بلکه دا رکن دې ادا کړي او د سجدهٔ سهو په کولو سره ئې لمونځ ادا کیږي.

۳- په عرف کښې هم بعد التسبیحات (تر تسبیحاتو وروسته وخت) بعد الصلوة ګڼل کیږي.

٤ - د دعاء د قبول والي په ځایونو کښې تر لمانځه وروسته دعاء هم ده. او تر تسبیحات فاطمي وروسته دعاء په اتفاق سره دعاء بعد الصلوة ګڼل کیږي.

٥ - د نهی علت یعنې د عقیدې د فساد ویره تر تسبیحاتو وروسته په سجدې کښې هم موجوده ده.

٦- د عوامو معمول کوم ته چه فقهاء کرامو مکروه ویلي دي هغه دا دی چه دوی تر تسبیحاتو وروسته سجده کوي، تر لمانځه وروسته فوراً څوک سجده کوونکی نه دی لیدل شوی.

لنډه دا چه تر لمانځه وروسته چه تر څو پورې په همدې ځای او هیئت باندې پاتې وي تر هغه وخته پورې هر ډول سجده هیڅکله جائزه نه ده البته که چیرته یو څوک کله کله په تنهائي کښې تر لمانځه وروسته سجده وکړي او عادت ئې جوړ نه کړي، او سنت یا مستحب ئې و نه بولي نو بیا جائزه ده. پس تر لمانځه وروسته د سجدې د جوازلپاره درې شرطونه دي:

۱ - تنهائي وي چه څوک عام سړی ئې و نه ویني.

۲- خپل عادت ئې جوړ نه کړي.

۳- سنت یا مستحب ئې و نه بولي یعنې تر لمانځه وروسته د سجدې په کولو کښې د نورو وختونو په نسبت زیات ثواب و نه ګڼي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ جمادی الثانی ۸٦ھ هجری

## تر لمانځه وروسته متصل هر ډول سجده مکروه تحریمي ده

**سوال** : تر لمانځه وروسته متصل یا له څه وقفې وروسته یا علاوه له لمانځه څخه په سجدې کښې د دُعا غوښتلو څه حکم دی؟ او په داسې صورت کښې به لاسونه داسې نیسي لکه څرنګه چه د دُعا غوښتلو په وخت کښې ئې عموماً خلک نیسي (چه ورغوي ئې پورته خوا ته وي) او که هر ډول په سجدې کښې کیښودل کیږي (چه ورغوي د زمکې په خوا وي)؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** : تر لمانځه وروسته متصل هر ډول سجده تر دې پورې چه د تلاوت سجده هم مکروه تحریمي ده. په نورو حالاتو کښې د دُعاء لپاره سجده جائزه ده لیکن التزام ئې بدعت دی (تفصیل په پورتنۍ مسئلې کښې وګورئ. مرتب)

په سجده کښې د دُعاء په وخت ورغوي باید د زمکې خوا ته کیښودل شي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ جمادی الاولی ۹۸ھ هجری

## په درود کښې د «سیّدنا» لفظ زیاتول افضل دي

**سوال**: څه فرمايي د دين علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه په لمانځه کښې داسې درود شریف چه اللهم صل علی محمد ویل افضل دي او که داسې اللهم صل علی سیدنا محمد ویل افضل دي؟ بینوا توجروا.

**جواب**: د حضور اکرمﷺ او حضرت ابراهیم علیه السلام د دواړو سره د «سیّدنا» لفظ زیاتول بهتر دي: قال فی الدّر وندب السّیادة لانّ زیادة الاخبار بالواقع عین سلوك الادب فهو افضل من ترکه ذکره الرّملی والشافعی وغیره وقال المحشی (قوله ذکره الرملی الشافعی) ای فی شرحه علی منهاج النّووی ونصّه والافضل الاتیان بلفظ السّیادة کما قاله ابن ظهیرة وصرّح به جمع وبه افتی الشارح لانّ فیه الاتیان بما امرنا به وزیادة الاخبار بالواقع الذی هو ادب فهو افضل من ترکه آه (الی قوله) وانه یأتی بها مع ابراهیم علیه السلام. (ردالمحتار ج۱،ص۴۷۹) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲ رجب ۸۶ هجری

## له لمانځه څخه پخپل اختيار وتل فرض دي او سلام واجب دی

**سوال**: د خروج بفعل المصلی څه حکم دی؟ همدارنګه د سلام په ویلو سره له لمانځه څخه وتل واجب دي او که سنت؟ بینوا توجروا.

**جواب**: وتل په فعل د مصلي (لمونځ کوونکی) فرض دی. د وجوب قول هم راغلی دی لیکن اولنی قول راجح دی. او د سلام په لفظ سره وتل واجب دي.

قال فی ردالمحتار وقد انتصر العلّامة الشرنبلالی للبردعی فی رسالته المسائل البهیة الزکیة علی الاثنی عشریة بأنه قد مشی علی افتراض الخروج بصنعه صاحب الهدایة و تبعه الشراح و عامة المشائخ و اکثر المحققین والامام النسفی فی الوافی والکافی والکنز وشروحه وامام اهل السنة الشیخ ابو منصور الماتریدی. (ردالمحتار ج۱،ص۱۸) وفی واجبات الصلوٰة من الدر المختار ولفظ السلام مرّتین. (ردالمحتار ج۱،ص۳۳۶)

څرګنده دې وي چه په لومړني سلام کښې یواځې د السلام په لفظ سره له لمانځه څخه سړی ووځي لیکن دویم سلام هم واجب دی. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹ ربیع الاول ۸۶ هجری

## په قومه او جلسه کښې ماثوره دُعاء

**سوال**: د قومې او جلسې په منځ کښې دُعاء ویل څنګه دي؟ همدارنګه په دې کښې د فرضو او نفلو فرق شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په قومه او جلسه کښې ماثوره دُعا ویل مستحب دي. په دې کښې

د فرضو او نفلو کوم فرق نشته. په جماعت کښې د ضعيفانو د رعايت له وجې بايد و نه ويل شي

قال فی الشامية قال ابو يوسف سألت الامام ا يقول الرجل اذا رفع رأسه من الركوع و السجود اللّهم اغفر لی قال يقول ربنا لك الحمد و سكت و لقد احسن فی الجواب اذ لم ينه عن الاستغفار نهر و غيره اقول بل فيه اشارة الى انه غير مكروه اذ لو كان مكروهاً لنهى عنه كما ينهى عن القراءة فی الركوع و السجود و عدم كونه مسنوناً لا ينافی الجواز كالتسمية بين الفاتحة و السورة بل ينبغی ان يندب الدّعاء بالمغفرة بين السجدتين خروجاً من خلاف الامام احمد لابطاله الصلوة بتركه عامداً و لم ار من صرّح بذلك عندنا لكن صرّحوا باستحباب مراعاة الخلاف. (و بعد اسطر) عن الحلية على انه ان ثبت فی المكتوبة فليكن فی حالة الانفراد و الجماعة و المأمومون محصورون لا يتثقلون بذلك كما نصّ عليه الشافعيّة و لا ضرر فی التزامه و ان لم يصرّح به مشائخنا الخ. (ردالمحتار ج۱ ص۴۷۲) فقط والله تعالى اعلم ۲۹ ربيع الاول ۸۶ هجری

## ګونګ سړې به څنګه لمونځ کوي؟

**سوال**: ګونګ او کوڼ سړی چه له موره ګونګ وي نه خبرې کولی شي او نه څه اوري. داسې سړی به لمونځ څرنګه ادا کوي؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ګونګ سړی د تکبير تحريمه او قرائت لپاره خپله ژبه ښوروي. ځينو علماوو د ژبې ښورول فرض بللی دی ليکن راجحه دا ده چه د ژبې ښورول فرض نه دي بلکه مستحب دي.

قال فی الدر و لا يلزم العاجز عن النطق كاخرس و امّی تحريك لسانه و كذا فی حق القراءة هو الصحيح لتعذر الواجب فلا يلزم غيره الا بدليل فتكفی النيّة (الى قوله) ثم فی الاشباه فی قاعدة التابع تابع فالمفتی به لزومه فی تكبيرة و تلبية لا قراءة و فی الشامية اقول عبارة الاشباه على ما رأيته فی عدة نسخ و ممّا خرج اى عن القاعدة الاخرس يلزمه تحريك اللسان فی تكبيرة الافتتاح و التلبية على القول به و اما بالقراءة فلا على المختار اه. و فی بعض النسخ على المفتى به بدل قوله على القول به و الاولى احسن كموافقها لما ذكره صاحب الاشباه فی بحره عند قوله فرضها التحريمة حيث نقل تصحيح عدم الوجوب فی التحريمة و جزم به فی المحيط و لكن يحتاج الى الفرق بين التحريمة و التلبية فانّه نص محمد على انه شرط فی التلبية و قال فی المحيط يستحب كما فی الصلوة كذا فی شرح لباب المناسك ثم قال قلت فينبغی ان لا يلزمه فی الحج بالاولى لانّ القراءة فرض قطعیّ و التلبية امر ظنّیّ. (ردالمحتار ج۱ ص۴۵۰) فقط والله تعالى اعلم ۸ شوال ۹۶ هجری

## د درود شریف په نه ویلو سره لمونځ کیږي

**سوال**: زید په لمانځه کښې په قصد سره درود و نه وایه. بکر وایي چه لمونځ ئې و نه شو او زید وائي چه وشو. نو دکوم یو خبره صحیح ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: لمونځ ئې کیږي ځکه چه درود شریف په لمانځه کښې ویل سنت دي او د سنتو په پریښودو سره لمونځ کیږي لیکن د لمانځه بیرته را گرځول بهتر دي. په ځانگړې توگه د درود شریف په پریښودو سره د لمانځه د اعادې اهمیّت له دې څخه نوره هم څرگندیږي چه د امام شافعي رحمه الله په نزد په آخري قعده کښې درود شریف فرض دی. لهذا که چیرته د چا بیره وي نو بیا دې هم د اللهم صل علی محمد پورې باید ووائي.

قال فی الدّر وسنّة فی الصلٰوة و مستحبّة فی کل اوقات الامکان و فی الشامیة (قوله سنّة فی الصلٰوة) ای فی قعود اخیر مطلقا و کذا فی قعود اوّل فی النوافل غیر الرواتب تأمل و فی صلٰوة الجنازة. (ردالمحتار ج۱،ص۴۸۳) و فی سنن الصلٰوة من الدّر ترك السّنة لا یوجب فساداً ولا سهواً بل اساءة لو عامداً غیر مستخف و فی الشامیة فلو غیر عامد فلا اساءة ایضاً بل تندب اعادة الصلٰوة کما قدمناه فی اوّل بحث الواجبات. (رد المحتار ج۱،ص۴۴۲) و نصه هناك اقول و قد ذکر فی الامداد بحثاً ان کون الاعادة بترك الواجب واجبةً لا یمنع ان تکون الاعادة مندوبة بترك السّنّة آه و نحوه فی القهستانی بل قال فی فتح القدیر و الحق التفصیل بین کون تلك الکراهیة کراهة تحریم فتجب الاعادة و تنزیه فتستحب آه. (ردالمحتار ج۱،ص۴۲۵)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۷ صفر ۸۷ سنه هجری

## په تشهد (التحیات) کښې د گوتې اشاره مستحبه ده

**سوال**: څه فرمایي د دین علماء کرام چه د شهادت په گوتې سره په لمانځه کښې اشاره څه حکم لري، سنت ده او که مستحبه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: اشاره با لمسبّحه مستحبه ده. په محیط کښې ئې سنت لیکلې ده. مراد ترې سنت غیر مؤکد دی.

کما فی شرح التنویر و فی العینی عن التحفة الاصح انها مستحبّة و فی المحیط سنّة و فی رد المحتار و یمن التوفیق بأنّها سُنّة غیر مؤ کدة. (ردالمحتار ج۱،ص۴۷۶) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ محرم ۹۰ سنه هجری

## په تشهد کښې د اشارې د عقد کیفیت

**سوال**: په تشهد کښې د گوتې د اشارې په وخت کښې د گوتې حلقه څرنگه جوړیږي؟

همدارنګه تر اشارې وروسته به ګوتې په همدې حالت باندې پريږدي او که به ئې بيرته غوړوي؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د منځنۍ ګوتې او بټې ګوتې سرونه به سره لګوي او حلقه به ترې جوړوي. قال ابن عابدين رحمه الله وفي القهستاني وعن اصابنا جميعاً انه سنة فيحلق ابهامه اليمنى ووسطاها ملصقا رأسه برأسها ويشير بالسبابة آه. (رد المحتار ج۱، ص۴۷۵) تر اشارې وروسته د کيفيت په اړه د افقهاء کرامو په عبارتونو کښې د "يضعها" الفاظ راغلي دي. له دې څخه د ګوتو پوره غوړول مراد نه دي بلکه څه اندازه پورته نيول ئې ترې مراد دي.

صرّح به الملا على القارى رحمه الله لرواية ابى داؤد و النسائى رافعاً اصبعه السّبابة و قد حناها شيئاً اى امالها. (تزئين العبارة بتحسين الاشارة لعلى القارى ص۸) په امداد الفتاوٰی کښې د دې په اړه مفصل بحث شوی دی. فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۳ محرم ۹۰ ھجری

## په ناستې سره د لمانځه کولو په صورت کښې د رکوع اندازه

**سوال**: فى كتاب نفع المفتى و السائل صلّى النفل قاعداً فكيف يركع فيه؛ المستحب ان ايركع بحيث يحاذى جبهته قدام ركبتيه. نقله الشامى عن حاشية الفتال عن البرجندى. د دې صورت څنګه دی او له دې څخه څه مراد دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د نوموړي عبارت ښکاره مفهوم دا دی چه تندی د زنګنونو خوا ته د قبلې په طرف دومره ټيټ شي چه د زنګنونو سره برابر شي. يعنې د زنګنونو او تندي فاصله له زمکې څخه سره برابره وي. ليکن علامه طحاوي رحمه الله د دُر په حاشيه کښې له ابو السعود څخه او د مراقي الفلاح په حاشيه کښې له حموي څخه يحاذى جبهته ركبتيه را نقل کړی دی، د قدام لفظ نشته چه متبادر مفهوم ئې دا دی چه تندی دې د زنګنونو له سرونو سره برابر پورته راشي. برسيره پر دې علامه طحطاوي رحمه الله فرمايي چه په رکوع کښې دې دومره نه ټيټيږي چه سجدې ته نژدې شي. ونصه وفى الحموى فان ركع جالساً ينبغى ان يحاذى جبهته ركبتيه ليحصل الركوع آه. ولعل مراده انحناء الظّهر عملاً بالحقيقة لا انه يبالغ فيه حتّٰى يكون قريباً من السجود. (طحطاوى على المراقى ص۱۲۵)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۴ ذى قعده ۸۹ ھجری

## په لمانځه کښې قيام په ښځې باندې هم فرض دی

**سوال**: ښځې په عمومي توګه په ناستې سره لمونځ کوي، يا ئې په ولاړې شروع کوي ليکن په

دویم رکعت کښې بیا کښیني. که چیرته د فرضو یا واجبو یو رکعت په ناستې سره ادا کړي نو آیا لمونځ ئې کیږي او که نه؟ او آیا په سجدهٔ سهو سره ئې تلافي کیږي او که څنګه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: لمونځ ئې نه کیږي او سجدهٔ سهوه ئې هم ځای نه نیسي ځکه چې فرض او واجب بلکه په سنت مؤکدو کښې هم قیام په سړي او ښځې دواړو باندې فرض دی.

قال فی رد المحتار تحت قوله و سنة فجر فی الاصح عن الحلیة فلو صلی التراویح قاعداً بلا عذر قیل لا تجوز قیاساً علی سنة الفجر فان کلا منهما سنة مؤکدة و سنة الفجر لا تجوز قاعداً من غیر عذر باجماعهم کما هو روایة الحسن عن ابی حنیفة رحمه الله کما صرح به فی الخلاصة فکذا التراویح و قیل یجوز و القیاس علی سنة الفجر غیر تام فان التراویح دونها فی التاکید فلا تجوز التسویة بینهما فی ذلک قال قاضیخان و هو الصحیح آه. (رد المحتار ج۱، ص۴۴۴) د ښځو د دې جهالت علاج او په هغو کښې د صحیح مسئلې خپرونه په نارینه وو باندې فرض دی او که نه نو د لمانځه د نه صحیح کیدو په عذاب کښې به نارینه هم ورسره شریک وي. فقط والله تعالی اعلم ۲ ربیع الاول ۹۳ هجری

## لومړی د ښي زنګانه کیښودل مسنون نه دی

**سوال**: یو ښاغلی وایي چه سجدې ته د تلو په وخت کښې لومړی ښی زنګون په زمکې باندې لګول او بیا ښی لاس لګول بیا کیڼ لاس. همدارنګه له سجدې څخه د پورته کیدو په وخت د دې برعکس. آیا دا طریقه سنت ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د سنت طریقه دا ده چه لومړی دواړه زنګنونه یو ځای په زمکې باندې کښیږدي، همدارنګه دواړه لاسونه یو ځای په زمکې باندې کښیږدي او د را پورته کیدو په وخت کښې برعکس همداسې وکړي یعني لومړی دواړه لاسونه په یوه ځای او بیا دواړه زنګنونه په یوه ځای له زمکې را پورته کړي. البته د عذر له وجې که چیرته لومړی د زنګنونو کیښودل مشکل وي او لومړی لاسونه په زمکې لګول نو بیا دې په دې حالت کښې لومړی ښی لاس په زمکې باندې ولګوي او بیا دې دواړه زنګنونه په یوه ځای ولګوي. لنډه دا چه د عذر په وخت کښې چه کله لاس لومړی کیښودل شي نو یواځې په لاسونو کښې تیامن (چه لومړی به ښی لاس ږدي) شته په زنګنونو کښې نشته.

قال ابن عابدین رحمه الله تحت (قوله واضعاً رکبتیه ثم یدیه) و یضع الیمنی منهما اولاً ثم الیسری کما فی القهستانی لکن الذی فی الخزائن واضعاً رکبتیه ثم یدیه الا ان یعسر علیه لاجل خف او غیره فیبدأ بالیدین و یقدم الیمنی آه و مثله فی البدائع و التاتارخانیة و المعراج و البحر و غیرها و مقتضاه ان تقدیم الیمنی انما هو

عند العذر الداعی الی وضع الیدین اوّلاً و انه لا تیامن فی وضع الرکبتین و هو الذی یظهر لعسر ذٰلك. (رد المحتار ج۱،ص۴۶۵) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ محرم ۹۱ هجری

## د لمانځه فدیه

**سوال**: د مرض په ورځو کښې تقریباً یو کال لمونځونه مې په ذمې باندې پاتې شول. تر بیماري مخکښې مي هم لمونځونه پوره نه وو. په دې کښې به غنم او که نقدې روپۍ د فدیې په توګه ورکړم او که څنګه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دواړه ورکولی شې. په ورځ کښې له وترو سره شپږ لمونځونه دي، د یوه لمانځه فدیه ۲/۳۲ کیلو ګرامه غنم دي. د وربشو د قیمت په برابر که کوم بل شی مو زړه وغواړي هغه هم ورکولی شی لیکن نقدې روپۍ ورکول بهتر دي.

قال فی العلائیة و ما لم ینص علیه کذرة و خبز یعتبر فیه القیمة (الیٰ قوله) و دفع القیمة ای الدّراهم افضل من دفع العین علی المذهب المفتی به. جوهرة و بحر عن الظهیریة. و قال ابن عابدین رحمه الله تحت (قوله ای الدراهم) و لعلّه اقتصر علی الدراهم تبعاً للزیلعی لبیان انها افضل عند ارادة دفع القیمة لانّ العلّة فی افضلیّة القیمة کونها اعون علی دفع حاجة الفقیر. (ردالمحتار ج۲،ص۸۳) فقط والله تعالیٰ اعلم

۱۹ صفر ۹۱ هجری

## سجدې ته د تلو مسنونه طریقه

**سوال**: تاسو فرمایلي وو چه د سجدې خوا ته د تلو په وخت باید سړی سیده کښېنته لاړ شي. د دې لږ غوندې تفصیل ولیکی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د سجدې خوا ته د تلو په وخت ملا باید بالکل سیده ونیسی، زنګنونه په زمکې باندې تر کیښودلو مخکښې باید په ملا کښې کوږوالی را نه شي. که لږ غوندې هم ملا کږه شي نو په رکوع کښې تکرار لازمیږي

قال فی الشامیة و یخر للسجود قائماً مستویاً لا منحنیاً لئلا یزید رکوعاً اخریٰ یدل علیه ما فی التاتارخانیة لو صلّی فلما تکلم فذکر انه ترك رکوعاً فان کان صلّی صلوة العلماء الاتقیاء اعاد و ان صلّی صلوة العوام فلا لانّ العالم التقی ینحط للسجود قائماً مستویاً و العامی ینحط منحنیا و ذٰلك رکوع لانّ قلیل الانحناء محسوب من الرکوع آه. تأمل (ردالمحتار ج۱،ص۴۶۵) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۴ شعبان ۹۲ هجری

نور تحقیق په تتمه کښې دی،

## د ثواب زیاتوالی په ټول حرم کښې په هر عبادت باندې دې

**سوال**: په مسجد حرام کښې د فرض لمانځه د ادا کولو ثواب آیا یواځې په مسجد حرم کښې دی او که د حرم د حدودو په ټولې علاقې کښې په کوم بل ځای کښې هم د لمانځه په ادا کولو سره همدومره ثواب حاصلیږي؟ همدارنګه آیا دا ثواب یواځې د لمانځه لپاره دی او که د ټولو عباداتو لپاره؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ثواب زیاتوالی په ټول حرم کښې دی او د هر عبادت لپاره دی. لیکن د دې مطلب دا نه دی چه په حرم شریف کښې په جومات او غیر جومات دواړو ځایونو کښې د لمانځه ثواب برابر دی. بلکه د مسجد حرم لمونځ د غیر حرم له جومات څخه یو لک چنده بهتر دی. او په حرم کښې بې له جوماته لمونځ په غیر حرم کښې بې له جوماته لمانځه څخه یو لک چنده بهتر دی.

قال فی ردّ المحتار وقال شیخ ولی الدین العراقی ولا یختص التضعیف بالمسجد الذی کان فی زمنه ﷺ بل یشمل جمیع ما زید فیه بل المشهور عند اصحابنا انه یعم جمیع مکة بل جمیع حرمها الذی یحرم صیده کما صححه النووی. (رد المحتار ج۱، ص۶۱۶) ونقل ابن عابدین رحمه الله عن شفاء الغرام للسید القاضی وجاءت احادیث تدل علی تفضیل ثواب الصوم وغیره من القربات بمکة الا انها فی الثبوت لیست کاحادیث الصلٰوة فیها آه (رد المحتار ج۲، ص۲۰۳) وقال الرافعی ان حسنات الحرم کل حسنة بمائة الف حسنة کما قال ابن عباس رضی الله عنهما کما نقله السندی عن الحموی عن ابن العماد. (التحریر المختار ج۱، ص۸۶)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۶ رجب ۹۲ سنه هجری

## په مسجد نبوي کښې په څلوېښتو لمونځونو باندې بشارت (زیری) یواځې د نارینه وو لپاره دی

**سوال**: په حدیث شریف کښې په مسجد نبوي کښې چه کوم د څلوېښتو لمونځونو فضیلت راغلی دی. آیا دا فضیلت یواځې د نارینه وو لپاره دی او که د ښځو لپاره هم دی. لکه څرنګه چه دښځو لپاره د مسجد حرام په ځای په کور کښې لمونځ کول بهتر دي آیا همدارنګه په مدینه منوره کښې هم د نبوي جومات په ځای په کور کښې د لمانځه ادا کول بهتر دي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په نبوي جومات کښې د څلوېښتو لمونځونو په ادا کولو باندې له جهنم او نفاق څخه د برائت بشارت (د خلاصون زیری) یواځې د نارینه وو د فرض لمانځه له جماعت سره مخصوص دی. د ښځو لپاره د نبوي جومات په ځای په کور کښې د لمانځه ادا کول بهتر دي

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ ربیع الآخر ۹۳ سنه هجری

## آیا ښځو ته په کور کښې د لمانځه هم هغه ثواب ورکول کیږي کوم چه نارینه وو ته په مسجد حرام او مسجد نبوي کښې ورکول کیږي؟

**سوال**: آیا ښځو ته د مسجد حرام او مسجد نبوي په خای په کور کښې د لمانځه په ادا کولو سره هم هغه ثواب ورکول کیږي کوم چه نارینه وو ته په همدغو دوو جوماتونو کښې په ادا کولو سره ورکول کیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تضعیف اجر (د اجر څو چنده کیدل) د مکې د ټول حرم لپاره دی. له دې امله په مکې مکرمې کښې ښځو ته په کور کښې په لمانځه سره هم هغه اجر ورکول کیږي چه نارینه وو ته ئې په مسجد حرام کښې ورکوي. د رسول الله ﷺ د مدینې په باره کښې مې داسې کوم روایت تر نظر نه دی تیر شوی. له دې څخه څرګندیږي چه په مسجد نبوي کښې د اجر د تضعیف فضیلت له نارینه وو سره خاص دی د ښځو لپاره په کورونو کښې د لمانځه په ادا کولو سره دا اجر نشته. خو سره له دې د جومات په نسبت ښځو ته په کور کښې لمونځ کول زیات ثواب لري

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ ربیع الآخر ۹۳ ھجری

## په مسجد نبوي کښې په څلویښتو لمونځونو باندې بشارت په تسلسل پورې تړلی دی

**سوال**: آیا د نارینه وو لپاره د فضیلت د حاصلولو لپاره دا ضروري ده چه څلویښت ورځې لمونځونه په مسجد نبوي کښې پرله پسې او له جماعت سره ادا کړي او که څنګه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: عن انس رضی الله عنه رفعه من صلّی فی مسجدی اربعین صلٰوة لا تفوته صلٰوة کتب له براءة من النار وبراءة من العذاب وبراءة من النفاق. لاحمد والاوسط. (جمع الفوائد ج۱، ص۵۳۳)

له دې حدیث څخه ثابتیږي چه څلویښت لمونځونه پر له پسې او له جماعت سره په ادا کولو باندې د جهنم. عذاب او نفاق څخه د برائت بشارت دی. په مطلقه توګه په یوه لمانځه باندې تر زر چنده پورې د اجر د زیاتوالی لپاره څلویښت لمونځونه او په هغو کښې د تسلسل قید نشته

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ ربیع الآخر ۹۳ ھجری

## د ولادت په حالت کښې د لمانځه په ادا کولو باندې اشکال او د هغه جواب

**سوال**: که چیرته کومه ښځه بچی زیږوي او څه برخه ئې را وتلې او څه پاتې ده. نو آیا په داسې حالت کښې لمونځ کولی شي او که نه؟ ځکه چه د حیض او نفاس په حالت کښې خو لمونځ ورته معاف وي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نفاس هغې وینې ته ویل کیږي چه د بچي تر پیدا کیدو وروسته

راځي. د بچي چه تر څو پورې اکثره برخه د باندې نه وي را وتلې تر هغه وخته پورې ښځه نه د حیض په حالت کښې وي او نه د نفاس په حالت کښې. له دې امله لمونځ نه معاف کیږي. اودس یا تیمم دې وکړي او په اشارې سره دې لمونځ ادا کړي، که چیرته په دې هم قدرت و نه لري نو بیا دې قضا کړي.

قال فی التنویر والنفاس دم یخرج عقب ولد وفی الشرح او اکثرہ ولو متقطعاً عضواً عضواً لا اقله فتتوضأ ان قدرت او تتیمم و تؤمی بصلوٰة. (ردالمحتار ج۱،ص۲۷۶) فقط واللہ تعالیٰ اعلم ۱۴ ربیع الآخر ۹۴ھ ہجری

## د جماعت تر کیدو وروسته د فرض لمانځه په جومات کښې د ادا کولو حکم

**سوال**: که چیرته د جماعت لمونځ تیر شوی وي او یو څوک تر جماعت وروسته جومات ته لاړ نه شي او په کور لمونځ وکړي، نو آیا له جومات څخه کم ثواب ورکول کیږي او که برابر؟ زید وائي چه په کور کښې د یوه لمانځه او جومات ته په تلو سره چه یواځې لمونځ وشي نو د ۲۵ لمونځونو ثواب ورکول کیږي. آیا د زید دا خبره صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د جماعت پریښودل ګناه ده، او فرض لمونځ په جومات کښې د یواځې ادا کولو په صورت کښې د ګناه اظهار (ښکارول) دی کوم چه ناجائز دی. د دې لپاره چه کله جماعت تیر شوی وي نو د فرض لمانځه لپاره باید څوک جومات ته لاړ نه شي. د ثواب د زیاتوالي چه کومه وعده ده هغه له جماعت سره په ادا کولو کښې ده. فقط واللہ تعالیٰ اعلم

۲۰ جمادی الاولی ۹۴ھ ہجری

## په لمانځه کښې د نیت هیر وو چه د کوم لمانځه نیت مې کړی دی؟

**سوال**: یوه سړي ته د لمانځه په حالت کښې دا په یاد کښې پاتې نه شو چه ما د کوم وخت د لمانځه نیت کړی دی او د څو رکعتونو نیت مې کړی دی؟ نه ئې په ژبې سره ویل یاد دي او نه ئې په زړه سره نیت کول یاد دي. همداسې ئې د غفلت په حالت کښې لمونځ شروع کړی وو. نو په داسې صورت کښې به دی څه کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته ئې د کوم لمانځه نیت کړی وي لیکن دا ور په یاد نه وو چه د کوم لمانځه نیت مې کړی دی نو دوه رکعته دې پوره کړي او سلام دې واړوي نو دا لمونځ ئې نفل ګرځي. او که چیرته ئې نیت بالکل کړی نه وي نو همداسې په لمانځه کښې شروع کول هم صحیح نه دي. له دې امله دې له سره نیت وکړي او لمونځ دې شروع کړي. فقط واللہ تعالیٰ اعلم

۶ ذی القعده ۹۴ھ ہجری

## په رکوع کښې د ښنګرو سره له يوه او بل سره لګول

**سوال**: په در مختار کښې دي چه په رکوع کښې د نارینه وو لپاره د ښنګرو ل يوه او بل سره لګول مسنون دي. له شامي څخه هم د دې تائید کيږي. ليکن زید ئې نه مني. په دې باره کښې خپل تحقيق وليکی او مونږ ته داډ حاصل کړی؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: چه کله د در مختار دا جزئيه مې له نظره تير شو نو له هغه وخت څخه مې نه ده قبوله کړې ځکه چه د لاندیني کلياتو خلاف ده.

۱- د نارینه وو لپاره په رکوع او سجده کښې تجافي.

۲- د پښو د ګوتو قبلې ته مخامخ والی. د ښنګرو په لګولو سره ګوتې قبلې ته مخامخ نه شي پاتې کيدلی.

۳- په لمانځه کښې له ضرورت پرته حرکت کول

پورتني کليات له صحيحو احاديثو څخه ثابت دي او په اتفاق سره منل شوي دي امام طحاوي رحمه الله په رکوع کښې د تطبيق په قول باندې داسې رد کوي:

**فرأينا السنّة جاءت عن النبیّ ﷺ بالتجافی فی الرکوع والسجود واجمع المسلمون علی ذٰلك فكان ذٰلك من تفريق الاعضاء.(شرح معانی الأثار ج۱،ص۱۱۳)**

د مذکوره کلياتو په خلاف کيدلو برسيره د کعبيونو د الصاق نه له کوم حديث څخه تائید کيږي او نه د مذهب له ائمه وو څخه د دې څه ثبوت شته، او نه جمهورو فقهاوو د دې يادونه کړې ده. د دې لپاره ما له ابتداء څخه قولاً او عملاً د دې په خلاف عمل کړی دی. ليکن د خپلې نظريې په تائید کښې له اکابرو څخه د يوه چا د ليکنو په لټه کښې وم. چنانچه بحمد الله تعالی په امداد الفتاوی کښې د سعايه په حوالې سره ئې تائید لاس ته راغی. د سعايه له مراجعت څخه ثابته شوه چ علامه لکهنوي د خپل شان مطابق په دې مسئلې باندې هم کافي مدلل او مفصل بحث کړی دی کوم چه په لنډه توګه لاندې ذکر کيږي.

**ومنها الصاق الكعبين ذكره جمع من المتأخرين وجمهور الفقهاء لم يذكروه ولا اثر له فی الكتب المعتبرة كالهداية وشروحها النهاية والعناية والبناية والكفاية وفتح القدير وغيرها والكنز وشرحه للعينی وشرح النقاية لالياس زاده والبرجندی والشمنی وفتاوٰی قاضيخان والبزازية وغيرها وامام الذين اوردوه فی ذكره الزاهدی حيث قال فی المجتبیٰ برمز يط يسن فی الركوع الصاق الكعبين واستقبال الاصابع القبلة و نقله عنه القهستانی فی جامع الرموز وفی شرح الخلاصة الكيدانية والحلبی فی الغنية وابن نجيم فی البحر و تلميذه التمرتاشی فی منح الغفار واقروه وذكره صاحب النهر وصاحب الدر المختار علی سبيل الجزم لكن له**

بين واحد منهم المراد من الصاق الكعبين و قال خير المتأخرين شيخ مشائخنا محمد عابد السندی المدنی فی طوالع الانوار شرح الدر المختار قوله والصاق كعبيه ای حالة الركوع قال الشيخ الرحمتی مع بقاء تفريج ما بين القدمين قلت لعلّه اراد من الالصاق المحاذاة و ذلك بأن يحاذی كل من كعبيه لأخر فلا يتقدم احدهما على الأخر و ظاهر لفظ الشارح يقتضی اللصوق و نفی التفريج و لذا قال السيد احمد هٰذا ای الصاق كعبيه ان تيسر له و رأيت كلاماً للشيخ محمد حيات السندی يقتضی اثبات سنية التفريج و نفی سنية الالصاق انتهٰی كلماه و قال ايضاً فی موضع اٰخر من الطوالع يسنّ فی حال الركوع كما فی المجتبٰی و زاد ابو السعود فی السجود ايضاً ان يلصق كعبيه قال الشيخ ابو الحسن السندی فی تعليقه على الدر المختار هٰذه السنّة انما ذكرها من ذكرها من المتأخرين تبعاً للمجتبٰی و ليس لها ذكر فی الكتب المتقدمة و لم يرد فی السنّة على ما وقفنا عليه و كان بعض مشائخنا يری انه من اوهام صاحب المجتبٰی و كأنهم توهموا ممّا ورد انّ الصّحابة كانوا يتمون بسدّ الخلل فی الصفوف حتّٰی يضمون الكعاب و المناكب و لا يخفٰی ان المراد ههنا الصاق كل كعب كعب صاحبه لا كعبه مع الكعب الأخر. انتهٰی كلام الشيخ.

قلت لقد دارت هٰذه المسئلة فی سنة اربع و ثمانين بعد الالف و المائتين بين علماء عصرنا فاجاب اكثرهم بأنّ الصاق الكعبين فی الركوع و السجود ليس بمسنون و لا اثر له فی الكتب المعتبرة و القول الفيصل ان يقال ان كان المراد بالصاق الكعبين ان يلزق المصلّی احدی كعبيه بالاخری و لا يفرج بينهما كما هو ظاهر عبارة الدر المختار و النهر و غيرهما و سبق اليه فهم المفتی ابی السعود ايضاً فليس هو من السنن على الاصح كيف و قد ذكر المحققون من الفقهاء ان الاولٰی للمصلّی ان يجعل بين قدميه نحو اربعة اصابع و لم يذكروا انه يلزقهما فی حالة الركوع او السجود و قال العينی فی البناية نقلاً عن الواقعات ينبغی ان يكون بين قدمی المصلّی قدر اربع اصابع اليد لانّه اقرب الی الخشوع و المراد من قوله عَلَيۡهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام الصقوا الكعاب بالكعاب اجتماعهما انتهٰی. فهذا صريح فی ان المسنون هو التفريج مطلقاً و الا لقيده بحالة القيام و ان المراد بالصاق الكعب بالكعب الوارد فی الخبر غير الزاقهما و يؤيده ما اخرجه ابو داؤد و صححه ابن خزيمة و ذكره البخاری تعليقاً عن النعمان بن بشير قال رأيت الرجل منا يلزق كعبه بكعب صاحبه و فی رد المحتار نقلاً عن فتاوٰی سمرقند ينبغی ان يكون بين القدمين مقدار اربع اصابع و ما روی انهم الصقوا الكعاب بالكعاب اريد به الجماعة انتهٰی. و ان كان المراد به محاذاة احدی الكعبين بالاخری كما ابدع العلّامة السندی فهو امر

حق ولا بعد فی حمل الالصاق علی المحاذاة فانّه جاء استعماله فی القرب و یؤید عدم سنیة الزاق الکعبین با لمعنی الاول ای ترك التفریج بینهما انه یلزم فیه تحریك احدی الکعبین الی الاخری و تحریك عضو فی الصلوٰة من غیر ضرورة لیس بجائز عندهم حتّٰی ان منهم من لم یجوز رفع السبابة فی التشهد لهذه العلّة ومنهم من لم یجوز رفع الیدین عند الرکوع لهذه العلة و الظاهر ان حمل کلامهم علی المعنی الثانی اولیٰ من حمله علی المعنی الاول علی انه من اوهام صاحب المجتبیٰ فاحفظ هذا التحقیق فانّه من النفائس المختصة بهذا الکتاب وقل من تنبّه علیه من العلماء الا من شاء الله ان یتنبّه. (سعایة ج۲، ص۱۸۲)

د امداد الفتاویٰ په مذکور سوال کښې سائل دا هم لیکلي دي چه: ونسبت زاهدی در نافع کبیرو فوائد بهیه نوشته اند و ان کان اماماً جلیلاً فی الفقه لکنه متساهل فی نقل الروایات و ایضاً هو معتزلی الاعتقاد و حنفی الفروع قال صاحب رد المحتار فی تنقیح الفتاوی الحامدیة فی کتاب الاجارة الحاوی الزاهدی مشهور بنقل الروایات الضعیفة ولهذا قال ابن وهبان و غیره انه لا عبرة بما یقوله الزاهدی مخالفا لغیره. (امداد الفتاوٰی ج۱، ص۱۳۹)

لیکن د سعایه د تحقیق مطابق د زاهدي د تخطئه په نسبت د هغه د قول تاویل بهتر دی. په مجتبیٰ کښې د کعبینو د الصاق سره د ګوتو قبلې ته د مخامخ والي ذکر د دې ښکاره دلیل دی چه له الصاق ځخه د هغه مراد هغه دی کوم چه په سعایه کښې له علامه سندهي رحمه الله ځخه را نقل شوی دی. یعنې په ښنګرو کښې محاذاة، د دې لپاره چه که چیرته الصاق په معنیٰ د ضم (لګول) وشي نو په دې صورت کښې د پښو ګوتې قبلې نه شي مخامخ کیدلی.

په دې باندې دا اشکال وي چه په کعبینو کښې خو محاذاة د قیام په حالت کښې هم مسنون دی بیا ئې په رکوع کښې په ځانګړې توګه ولې بیان کړې ده؟

د دې دوه وجې کیدلی شي. یوه دا چه په اصل کښې په دې باندې مقصود تنبیه دی چه د پښو په قیام کښې کوم کیفیت مسنون دی په رکوع کښې هم هغه کیفیت مسنون دی، په رکوع او قیام کښې کوم فرق نشته. دویمه وجه دا کیدلی شي چه د رکوع په حالت کښې په پښو باندې نظر لویږي. د دې لپاره د دې سنت په تعمیل کښې که چیرته کوم نقص وي نو په رکوع کښې د هغه د اصلاح موقع شته.

د دغو توجیهاتو ځکه هم ضرورت دی چه په رکوع کښې د ګوتو قبلې ته د مخامخ کولو په بیانولو باندې بعینه همدغه اشکال واردیږي. چه کومه توجیه د دې وشي په کعبینو کښې دی د محاذاتو په برخه کښې هم وشي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۶ رمضان ۹۸ هجری

## سجده د یوې تسبیح په اندازه واجبه ده

**سوال**: په سجده کښې تر څورمره څنده پورې پاتې کیدل فرض دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مطلقه سجده فرض ده او د یوي تسبیح په اندازه پاتې کیدلو اجب دي او د دریو تسبیحاتو په اندازه سنتِ مؤکد دی.

فی واجبات الصلٰوة من العلائیة و تعدیل الارکان ای تسکین الجوارح قدر تسبیحة فی الرکوع و السجود و کذا فی الرفع منهما الخ. (ردالمحتار ج۱، ص۴۳۲) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۸ رمضان ۹۸ ھجری

## په لمانځه کښې د لاس د تړلو طریقه

**سوال**: په لمانځه کښې د قیام (ولاړې) په حالت کښې د لاس د نیولو طریقه و لیکی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په قیام کښې تر نامه لاندې لاسونه باید په داسې ډول وتړل شي چه د ښي لاس ورغوی د کیڼ لاس د ورغوي په شا باندې کیښودل شي او د ښي لاس له وړې او بټې ګوتې څخه حلقه جوړه شي او د کیڼ لاس په بند ئې را وګرځوي. او د ښي لاس منځنۍ درې ګوتې د کیڼ لاس په ساعد (تر بند لږ پورته ځای) باندې خورې پاتې شي. د یوه قول مطابق د وړې ګوتې سره لګیدلې ګوته دې هم په حلقه کښې شامل کړي او یواځې دوه ګوتې دې په بند د پاسه وغوړوي. دا حکم د نارینه وو لپاره دی. ښځې دې ښی ورغوی په کیڼ ورغوي باندې کښیږدي او نیسي دې نه او په سینې باندې به لاسونه تړي.

قال العلاء رحمه الله و وضع الرجل یمینه علی یساره تحت سرته آخذا رسغها بخنصره و ابهامه هو المختار و تضع المرأة و الخنثی الکف علی الکف تحت ثدیها و قال ابن عابدین رحمه الله ای یحلّق الخنصر و الابهام علی الرسغ و یبسط الاصابع الثلاث کما فی شرح المنیة و نحوه فی البحر و النهر و المعراج و الکفایة و الفتح و السراج و غیرها و قال فی البدائع و یحلق ابهامه و خنصره و بنصره و یبسط الوسطی و المسبحة علی معصمه و تبعه فی الحلیة و مثله فی شرح الشیخ اسمٰعیل عن المجتبیٰ (قوله تحت ثدیها) کذا فی بعض نسخ المنیة و فی بعضها علی ثدیها قال فی الحلیة و کأن الاولیٰ ان یقول علی صدرها کما قاله الجم الغفیر لا علی ثدیها و ان کان الوضع علی الصدر قد یستلزم ذٰلک بان یقع بعض ساعد کل ید علی الثدی لکن هذا لیس هو المقصود بالافادة. (ردالمحتار ج۱، ص۴۵۴) فقط والله تعالیٰ اعلم

۱۴ صفر ۹۸ ھجری

## په قيام کښې د پښو تر منځ فاصله

**سوال**: د لمانځه په قيام کښې د دواړو پښو تر منځ فاصله بايد څومره وي؟ او آيا دا فصله سنت ده، که واجب او که مستحب؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تقريباً د څلورو ګوتو په اندازه فاصله پريښودل مستحب دي او د دواړه پښو با لکل سيده کيښودل چه د ګوتو څوکې قبلې ته مخامخ شي، سنت دي.

قال ابن عابدين رحمه الله ويـنبغي ان يكون بينهما مقدار اربع اصابع اليد لانه اقرب الى الخشوع هكذا روى عن ابى نصر الدبوسى انه كان يفعله كذا فى الكبرٰى. (رد المحتار ج۱، ص۴۱۴) وفى التنوير ويستقبل باطراف اصابع رجليه القبلة ويكره ان لم يفعل وقال ابن عابدين رحمه الله كذا فى التجنيس لصاحب الهداية وقال الرملى فى حاشية البحر ظاهره انّه سنّة وبه صرّح فى زاد الفقير آه. (رد المحتار ج۱، ص۴۰۰)

فقط والله تعالىٰ اعلم ٤ ذيقعده ۹۹ ھجرى

(د څلورو ګوتو فاصله پريښودل شرعي مستحب نه دي، تفصيل ئې په تتمه کښې دى)

## سهواً کښيناستل او د بيرته پورته کيدلو په صورت کښې د دوباره تکبير ويلو حکم

**سوال**: امام په دريم رکعت کښې په سهو سره کښيناست ليکن د فتح حاصلولو باندې ودريد، د دې دريدو په وخت دوباره تکبير ويل مسنون دي او که له سجدې څخه ئې د پورته کيدو په وخت کوم تکبير ويلى وي هغه کافي دى، دلته د علماء کرامو په دې کښې اختلاف دى، ځينې لومړنى تکبير کافي بولي او فرمايي چه په يوه انتقال کښې د تکبير تعدّد چيرې نه دى راغلى ځکه به دويم ځل تکبير نه وائي! د نورو دليل دا دى چه لومړى تکبير خو د سنت په مطابق ادا نه شو. او سنت دا دى چه د انتقال د ختميدو سره تکبير هم ختم شي، له دې وجې دې دويم ځل تکبير ووائي. هيله ده چه ستاسو د فيصلې په ليکلو سره زمونږ تشفي وشي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د بنده په نزد په دې کښې تفصيل دا دى چه اوږد قعود د سجدهٔ سهو د وجوب په صورت کښې چونکه دا هم قعود (ناسته) ګڼل کيږي د دې لپاره په لومړني او دويم ځل انتقال کښې جدا والى راځي. او دواړه انتقاله مستقل وګرځيدل. نو د هر انتقال لپاره به تکبير هم مستقل وي. او که چيرته کمه ناسته وکړي کوم چه د سجدهٔ سهو موجب و نه ګرځي نو دا جلسه د غير معتبر کيدو له وجې له سجدې څخه تر قيامه پورې په يوه انتقال کښې شمارل کيږي لهذا تکبير به هم يو وي. د نوي تکبير لپاره دا دليل معقول نه دى چه لومړى تکبير د سنتو خلاف دى. د دې لپاره چه نوى تکبير به هم بيا د سنتو خلاف وي ځکه چه د دې تکبير ابتداء له

سجدې څخه د نهوض (پورته کیدا) له ابتداء څخه نه دی شوی. فقط والله تعالیٰ اعلم

۲۹ جمادی الآخر ۹۸ھ ہجری

## د (رَبَّنَالَكَ الْحَمْدُ) د جملې تحقیق

**سوال**: له رکوع څخه مې د پورته کیدو په وخت (رَبَّنَالَكَ الْحَمْدُ) وایه. یوه معتبر عالم یو ځل بیان وکړ چه له رکوع څخه په پورته کیدو کښې د (رَبَّنَاوَلَكَ الْحَمْدُ) په ویلو سره دا دا فضیلت دی او د دې بنده لپاره ملائکې ډیر څه کوي. له هغې ورځې مې د واو ټکی ورسره زیات کړ. لیکن په زړه کښې مې اندیښنه وه، د دې لپاره د پوښتنې ځای دا دی چه کوم صورت باید غوره کړم. (رَبَّنَالَكَ الْحَمْدُ) بهتر دی او که (رَبَّنَاوَلَكَ الْحَمْدُ). د کرم او مهربانۍ له مخې په دې اړوند مې امداد وکړئ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دې څلور طریقې دي:

۱- اللهم رَبَّنَاوَلَكَ الْحَمْدُ ۲- اَللّٰهُمَّ رَبَّنَالَكَ الْحَمْدُ ۳- رَبَّنَاوَلَكَ الْحَمْدُ ۴- رَبَّنَالَكَ الْحَمْدُ

په فضیلت کښې لومړنی تر ټولو زیات دی، بیا دویم بیا دریم او بیا څلورم. **قال فی العلائیة و افضله اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ ثم حذف الواو ثم حذف اللهم فقط. و قال ابن عابدین و بقی رابعة و هی حذفهما والاربعة فی الافضلیة علی هذا الترتیب کما افاده بالعطف بثم.(رد المحتار ج۱،ص۳۶۲)**

په حدیث کښې چه د دیرشو څخه زیاتې ملائکې د کومو کلماتو په وړلو کښې له یوې او بلې څخه د مخکښې کیدلو ذکر دی هغه کلمات دا دي: (رَبَّنَاوَلَكَ الْحَمْدُ حَمْداً كَثِيْراً طَيِّباً مُبَارَكاً فِيْهِ)(رواه البخاری) لیکن د احنافو د قاعدې مطابق دومره اوږده دعا په فرائضو کښې باید و نه ویل شي، یواځې په سنتو او نفلو کښې باید وویل شي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۰ ربیع الاول ۹۷ھ ہجری

## په تنګ وخت کښې د حاجت د پوره کولو له وجې د لمانځه پریښودل جائز نه دي

**سوال**: یو سړی د قضاء حاجت سخته تقاضا لري لیکن دیخوا ته د لمانځه بالکل آخري وخت دی. اوس که چیرته دا سړی د خپل حاجت د پوره کیدو لپاره ځي نو لمونځ ئې قضا کیږي او که چیرته لمونځ کوي نو په ګیډه کښې ئې سخت تکلیف دی. اوس دا سړی باید څه وکړي، یعنې له همدې تکلیف سره دې لمونځ ادا کړي او که د تکلیف تر رفع کولو وروسته دې لمونځ وکړي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې حالت کښې د جماعت پرېښودل جائز دی لیکن د لمانځه پرېښودل جائز نه دي. لهذا که چیرته د لمانځه د قضا کیدو ویره وي نو په همدې حالت کښې دې لمونځ وکړي، او په فرائضو او واجباتو دې اکتفاء وکړي، سنتونه دې پرېږدي. د لمانځه په دننه کښې هم سنتونه پرېښودلی شي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۰ شوال ۹۸ سـ ـه هجری

## د لمانځه په سجده کښې دُعاء

**سوال** : په مشکوٰة شریف کښې له حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهما څخه روایت دی چه: **قال رسول الله ﷺ الا انّی نهیت ان اقرأ القراٰن راکعاً او ساجداً فاما الرکوع فعظموا فیه الربّ و اما السجود فاجتهدوا فی الدعاء فقمن ان یستجاب لکم.** په دې حدیث کښې د لمانځه په سجده کښې د دُعا فضیلت ثابت شوی دی. آیا د احنافو همدغه مذهب دی چه د لمانځه په سجده کښې دعا بهتره ده. که چیرته نه وي نو د حدیث مطلب څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : قال الملّا علی القاری رحمة الله علیه فی شرح الحدیث المذکور و اما السجود فاجتهدوا ای بالغوا فی الدّعاء ای حقیقةً وهو ظاهر اوحکماً کما فی سبحان ربّی الاعلیٰ. (مرقاة ج۲، ص۳۱۲) وقال ابن عابدین رحمة الله علیه وقد ورد خیر الدعاء دعاء یوم عرفة وخیر ما قلت انا والنبیّون من قبلی لا اله الّا الله وحده لا شریك له له الملك وله الحمد وهو علی کلّ شیء قدیر. رواه مالك والترمذی واحمد وغیرهم شرح النقایة للقاری، وقیل لابن عینیة هٰذا ثناء فلم سماه رسول الله ﷺ دعاء فقال الثناء علی الکریم دعاء لانه یعرف حاجته فتح، قلت یشیر بهٰذا الیٰ خبر من شغله ذکری عن مسألتی اعطیته افضل ما اعطی السائلین ومنه قول امیة بن ابی الصلت فی مدح بعض الملوك :

ااذکر حاجتی ام قد کفانی ثناؤك ان شمیتك الحیاء

اذا اثنی علیك المرأ یوماً کفاه من تعرضه الثناء

(ردالمحتار ج۲، ص۱۹۰)

له مذکوره تحقیق څخه ثابته شوه چه په حدیث کښې تسبیحاتو ته دُعا ویل شوي دي. یا دا مطلب دی چه تر تسبیحاتو دې وروسته دُعا کړي، د احنافو رحمهم الله په نزد تر تسبیحاتو وروسته دې دُعا په نوافلو کښې وکړي او په فرائضو کښې دې نه کوي. البته که چیرته فرائض یواځې ادا کوي یا په جماعت کښې په مقتدیانو دروند تمام نه شي نو په فرائضو کښې هم صحیح ده.

قال فی العلائیة و کذا لایأتی فی رکوعه و سجوده بغیر التسبیح علی المذهب و ما ورد محمول علی النفل قال ابن عابدین رحمه الله (قوله محمول علی النفل) ای تهجداً او غیره. خزائن، و کتب فی هامشه فیه ردّ علی الزیلعی حیث خصّه بالتهجد آه. ثم الحمل المذکور صرّح به المشائخ فی الوارد فی الرکوع و السجود و صرّح به فی الحلیة فی الوارد فی القومة و الجلسة و قال علی انه ان ثبت فی المکتوبة فلیکن فی حالة الانفراد او الجماعة و المأمومون محصورون لا یتثقلون بذلک کما نص علی الشافعیة و لا ضرر فی التزامه و ان لم یصرّح به مشائخنا فان القواعد الشرعیّة لا تنبو عنه کیف و الصلوٰة و التسبیح و التکبیر و القراءة کما ثبت فی السنّة آه. (رد المحتار ج ۱، ص ۴۶۲)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۲ محرم ۹۹ سنه هجری

## د مړي له خوا څخه د هغه زوی د لمانځه فدیه ادا کولی شي

**سوال**: زما والد صاحب په سنه ۱۹۶۳ ئه کښې په کراچۍ کښې وفات شو، زما په زړه دي چه د بیماري په دوران کښې ئې څه لمونځونه قضا شوي دي. هغه د قضائي لمونځونو د فدیې د ادا کولو هیڅ وصیت نه وو لیکلی. نو آیا مونږ په دې حیثیت سره چه د هغه زامن یو د هغه د قضائي لمونځونو فدیې ادا کولی شو؟ او که ئې ادا کولی شو نو په کوم حساب سره؟ یعنې د سنه ۱۹۶۳ ئه د صدقهٔ فطر په قیمت او که د سنه ۱۹۷۸ ئه د صدقهٔ فطر په قیمت؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تاسو دخپل والد له خوا څخه فدیه اداکولی شی. د ورځې د شپږو لمونځونو حساب ولګوی. ځکه چه د وترو مستقله فدیه واجبه ده. چه کله فدیه ادا کوی د هم هغه وخت نرخ او قیمت ولګوی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۲ محرم ۹۹ سنه هجری

## په لمانځه کښې د را پورته کیدو په وخت په زنګنونو باندې د لاسونو تکیه کول مستحب دي

**سوال**: څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه له رکوع څخه د سجدې خوا ته او له سجدې څخه د قیام خوا ته د تلو په وخت کښې لاسونه باید چیرته ونیول شي. مستحبه طریقه ئې څه ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له قیام څخه د سجدې خوا ته د تلو په وخت کښې د لاسونو په زنګنونو باندې کیښودل مستحب نه دي لیکن عوام ئې مستحب ګني لهذا باید له دې څخه پرهیز وشي. البته له قعدې څخه د قیام خوا ته د تلو په وخت په زنګنونو باندې د لاسونو تکیه کول مستحب دي.

قال فی العلائیة ویکبر للنهوض علی صدور قدمیه بلا اعتماد و قعود استراحة ولو فعل لا بأس وفی الشامیة (قوله بلا اعتماد الخ) ای علی الارض قال فی الکفایة اشار به الی خلاف الشافعی فی موضعین احدهما یعتمد بیدیه علی رکبتیه عندنا و عنده علی الارض و الثانی الجلسة الخفیفة قال شمس الائمة الحلوانی الخلاف فی الافضل حتی لو فعل کما مذهبنا لا بأس به عند الشافعی و لو فعل کما هو مذهبه لا بأس به عندنا کذا فی المحیط.(ردالمحتار ج۱،ص۴۷۳) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۹محرم ۹۹ـــــھجری

## چه کله د ۳/٤۰۲ گرامو سپینو زرو په برابر د نقصان ویره وي نو د لمانځه ماتول جائز دي

**سوال** : څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د بهشتي زیورپه دویمه حصه یوولسم باب مسئله نمبر پنځمه کښې لیکلي دي چه : «که چیرته څوک په لمانځه کښې وي او دیګ وه ایشي چه قیمت ئې درې یا څلور آنې وي نو د لمانځه ماتول جائز دي، لنډه دا چه کله د داسې شي د ضائع کیدو یا خرابیدو ویره وي چه قیمت ئې درې یا څلور آنې وي نو د هغه د حفاظت په خاطر د لمانځه ماتول صحیح دې» د دې تشریح وکړئ چه په دې زمانې کښې دا قیمت څومره وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د درهم په اندازه چه د نقصان ویره وي نو د لمانځه ماتول صحیح دي. درهم = ۳ ماشه- ۳/٤۰۲ گرامه سپین زر جوړیږي. د سپینو زرو قیمت کښته او پورته کیږي. په هرې زمانې کښې د هغه ځان ځانته قیمت لګول کیږي.

قال شارح التنویر ویباح قطعها لنحو قتل حیّة وندّ دابة وفور قِدرٍ وضیاع ما قیمته درهم له اولغیره و قال ابن عابدین رحمة الله علیه (قوله وفور قدر) الظاهر انه مقیّد بما یخاف من فوات ما قیمته درهم سواء کان ما فی القدر له اولغیره رحمتی. (قوله وضیاع ما قیمته درهم) قال فی مجمع الروایات لان ما دونه حقیر فلا یقطع الصلوة لاجله لکن ذکر فی المحیط فی الکفالة ان الحبس بالدانق یجوز فقطع الصلوة اولیٰ وهذا فی مال الغیر واما فی ماله لا یقطع والاصح جوازهٔ فیهما آه وتمامه فی الامداد والذی مشی علیه فی الفتح التقیید بالدرهم.(رد المحتار ج۱،ص۶۱۲) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۸ ربیع الثانی ۹۸ـــــھجری

## په لمانځه کښې قرائت حکایةً دې

**سوال** : په لمانځه کښې قرآنکریم حکایةً ویل کیږي او که انشاءً؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په لمانځه کښې د لاندېنې دلائلو له مخې قرآنکريم حکايةً تلاوت کيږي:

۱- د قرآنکريم هغه برخه چه په هغې کښې قصې او اخبار دي که چيرته په لمانځه کښې وويل شي نو لمونځ کيږي په داسې حال کښې چه په دې کښې انشاء امکان نه لري.

۲- د قرآنکريم داسې انشائيه جملې دي چه مخاطَب ئې په دې وخت کښې موجود نه وي مثلاً يا مريم، يا يحيٰی، يا يوسف، يا ايها النبي، ياايها المدثر او داسې نورو په ويلو سره لمونځ کيږي، په داسې حال کښې چه دا انشاءات محض د حکايت له مخې ويل کيږي. د رسول الله ﷺ په ژوند کښې هم که چيرته چا په لمانځه کښې د حکايت په ځای د خطاب صيغې د تخاطب په نيت سره ووايه نو لمونځ ئې فاسديده. کما سيأتي.

۳- د قرآنکريم دعائيه جملې يا تسبيح و تهليل يا تسميه يا سورهٔ فاتحه که چيرته حکايةً و نه ويل شي بلکه انشاءً د دُعا يا تسبيح او تهليل په نيت سره وويل شي نو دا جملې له قرآنيت څخه ووځي. د دې لپاره د جنوب او حائضې لپاره په دې قصد سره د تلاوت اجازه شته په داسې حالت کښې د تلاوت په نيت سره يواځې د تسميه د ويلو اجازه هم نشته. کما في الشامية. له دې څخه ثابته شوه چه قرآنکريم که په لمانځه کښې وي بغير له لمانځه نه وي په هر صورت کښې به حکايةً ويل کيږي.

۴ ــ قال فی التنویر بیان ما یحرم بالحدث الاکبر و تلاوة قرآن بقصده. وفی الشرح حتی لو قصد بالفاتحة الثناء فی الجنازة لم یکره الا اذا قرأ المصلی قاصدا الثناء فانها تجزیه لانها فی محلها فلا یتغیر حکمها بقصده و فی الحاشیة. (قوله حتی لو قصد) تفریع علی مضمون ما قبله من ان القرآن یخرج عن القرآنیة بقصد غیره (قوله فلا یتغیر حکمها) وهو سقوط واجب القراءة بها. (ردالمحتار ج۱)

له دې څخه څرګنده شوه چه په لمانځه کښې که چيرته سورهٔ فاتحه انشاءً ووائي نو نيت ئې هم معتبر نه دی. لنډه دا چه د قرآنکريم خبري جملې او اکثره ندائيه جملو کښې خو د انشاء احتمال نشته او په کومو ندائيه جملو کښې چه د نداء او خطاب د انشاء احتمال شته هغو لره د انشاء په قصد په ويلو سره لمونځ فاسديږي. کما سياتي. باقي د دعاء، ثناء، تسبيح او داسې نورو جملو کښې اګر که د انشاء احتمال شته ليکن د انشاء په قصد سره دا جملې له قرآنيت څخه ووځي. کما مر.

۵ ــ قال فی شرح التنویر و کذا یفسدها کل ما قصد بها الجواب کأن قیل امع الله اله فقال لا اله الا الله او ما مالك فقال الخیل و البغال و الحمیر او من این جئت فقال و بئر معطلة و قصر مشید او الخطاب کقوله لمن

اسمهٗ يحيٰى او موسٰى يا يحيٰى خذ الكتاب بقوة او وما تلك بيمينك يا موسٰى مخاطباً لمن اسمهٗ ذٰلك اولمن بالباب و من دخلهٗ كان اٰمناً و فى الشامية (قوله او الخطاب الخ) هذا مفسد بالاتفاق و هو مما اورد نقضًا على اصل ابى يوسف رحمه الله فانه قراٰن لم يوضع خطابا لمن خاطبه المصلى و قد اخرجهٗ بقصد الخطاب عن كونه قراٰنا و جعله من كلام الناس.(ردالمحتار ج۱)

البته له (اذا قال العبد الحمد لله رب العٰلمين قال الله تعالٰى حمدنى عبدى ـ الخ) څخه څرګندېږي چه د سورهٔ فاتحه د ويلو په وخت کښې انشاء هم په لحاظ کښې نيول شوې ده، با لکل متروک نه ده.

د لمانځه په حقيقت باندې د غور له کولو څخه هم دا ثابتيږي ځکه چه لمونځ د جلالي شان مظهر دی، د خدای په دربار کښې انسان د حمد او ثناء تر وړاندې کولو وروسته په صراط مستقيم باندې د ثابت پاتې کيدلو د غوښتنې لپاره عريضه وړاندې کوي. د همدې لپاره د امام قرائت د مقتديانو لپاره کافي دی. ځکه چه عريضه وړاندې کوونکی يو سړی د ټول جماعت لپاره نمائنده وي. او د دربار آداب او سلام په هر سړي باندې لازم وي. غرض دا چه په لمانځه کښې قرآنکريم حکايةً ويل کيږي ليکن په سورهٔ فاتحه کښې انشاء هم ملحوظه ده. اصل مقصد په دې کښې هم د قرآن تلاوت دی. لقوله تعالٰى: (فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ)،

البته قرائت ته په دې لحاظ سره انشاء ويل کيدلی شي چه قاري د خپل ځان له خوا څخه د قرائت انشاء کوي. د بل د قرائت حکايت نه کوي.

## په تشهد کښې سلام انشاءً ويل کيږي

**سوال**: په لمانځه کښې (السلام عليك ايها النبى) انشاءً ويل کيږي او که حکايةً؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: (السلام عليك ايها النبى) بلکه ټول تشهد انشاءً ويل کيږي.

قال فى شرح التنوير ويقصد بالفاظ التشهد معانيها مرادة لهٗ على وجه الانشاء كانه يحيى الله تعالٰى ويسلم على نبيه و على نفسه و اوليائه لا الاخبار عن ذٰلك. ذكره فى المجتبٰى وظاهره ان ضمير علينا للحاضرين لا حكاية سلام الله تعالٰى و فى الشامية (قوله لا الاخبار عن ذٰلك) اى لا يقصد الاخبار و الحكاية عما وقع فى المعراج منه ﷺ و من ربه سبحانه و من الملائكة عليهم السلام و تمام بيان القصة مع شرح الفاظ التشهد فى الامداد فراجعه.(قوله لا حكاية سلام الله تعالٰى) الصواب لا حكاية سلام رسول الله ﷺ.(ردالمحتار ج۱)

له قرائت نه بغير د لمانځه ټول وظائف انشاءً ويل کيږي. لکه څرنګه چه د لمانځه په حقيقت باندې د غور له کولو څخه ښکاريږي. د لمانځه د حقيقت د تفصيل د ليکلو په دې وخت کښې

ضرورت نشته او نه فرصت شته. لهذا يواځې د (السلام عليك ايها النبي) حکمت ليکل کيږي. له سلطاني دربار څخه د بيرته راتلو په وخت کښې د څه نذرانه د وړاندې کولو دستور شته. د دې لپاره لمونځ کوونکی د التحيات لله و الصلوات و الطيبات نذرانه وړاندې کوي بيا يو په يو دا خيال ذهن ته راځي چه دا قرب الهي او خدای ته مناجات يواځې د سيد الکونين ﷺ د مسعود وجود له برکته دی. د نبي کريم ﷺ وجود يواځې او يواځې د هدايت ذريعه ده، نو لمونځ کوونکی بې اختياره خپل محسنِ اعظم او منعمِ اکرم ﷺ ته سلامونه ليږي.

باقي دا اعتراض با لکل لغو دی چه په داسې حال کښې نبي کريم ﷺ حاضر نه دی نو خطاب بې فائدې دی. ځکه چه صلوة او سلام د ملائکه وو په ذريعه د نبي کريم ﷺ خدمت ته رسيږي. لکه څرنگه چه په خط کښې يو څوک د خطاب صيغې د دې لپاره ليکي چه هغه خط مخاطب ته ور رسيږي او مخاطب مخامخ موجود نه وي.

## په سجدې کښې د ښنگرو لگول

**سوال**: نارينه به د سجدې په حالت کښې دواړه پښې سره نښلوي او که نه؟ په عرف شذي کښې د ښنگرو د سره لگولو روايت شته. وفي صحيح ابن حبان عن عائشة رضي الله عنها الرص بين العقبين في السجدة اي ضمهما واكثر الناس عن هذا غافلون. (العرف الشذي ص۱۳۵) په دې باره کښې خپل تحقيق وليکی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په اعلاء السنن کښې تر نوموړي حديث وروسته د دواړو پښو ترمنځ د فاصلې حديث هم منقول دی.

عن عائشة رضي الله عنها في حديث اوله فقدت رسول الله ﷺ وكان معي على فراشي فوجدته ساجدا راصا عقبيه مستقبلا باطراف اصابعه القبلة رواه ابن حبان في صحيحه باسناد حسن. (التلخيص الحبير ج۱، ص۹۸) وللنسائي وقد سكت عنه وهو ساجد وقدماه منصوبتان الحديث. (نسائي ج۱، ص۱۶۶)

عن البراء رضي الله عنه كان صلى الله عليه وسلم اذا ركع بسط ظهره واذا سجد وجه اصابعه قبل القبلة فتفاج. (يعني وسع بين رجليه ۱۲ منه) رواه البيهقي. (التلخيص الحبير ج۱، ص۹۸) قلت احتج به الحافظ ابن حجر بعد ما ضعف رواية الدار قطني عن عائشة رضي الله عنها وسكت عنه فهو حسن وصحيح عنده. (اعلاء السنن ج۳، ص۱۳۸)

د تعارض په صورت کښې لومړی د تطبيق او بيا د ترجيح خوا ته رجوع کيدلی شي:

**تطبيق**: په لومړي حديث کښې رص بين العقبين په تقريب باندې محموليږي. كما حمل عليه الطحطاوي رحمه الله حديث ضم الكفين في الدعاء.

پخپله په دې حديث کښې په تقريب باندې د حمل کولو دوه قرائنه هم شته، يو قبلې ته د ګوتو د سرونو مخامخ والی. دويم د پښو درول. دا دواړه سنتونه د رصّ بين العقبين په صورت کښې په پوره توګه نه شي ادا کيدلی. برسيره پر دې په دې کښې له ضرورت پرته پښو ته د حرکت ورکولو قباحت هم شته.

**ترجيح**: دويم حديث د نارينه وو لپاره په رکوع او سجدې کښې د تجافي مطابق دی. **وکفی به مرجحاً، وبهذا رجح الامام الطحاوی رحمه الله حديث وضع اليدين على الركبتين فى الركوع على حديث التطبيق.** همدا رنګه په لمانځه کښې د خشوع د امر له وجې هم د همدې قول ترجيح ثابتيږي ځکه چه له ضرورت پرته حرکت د خشوع منافي ده. **قال ﷺ مصل يعبث بلحيته لو خشع قلبه لسكن جوارحه**. دا بحث مې تبرعاً وليکه او که نه نو حديث ته رجوع کول د مقلد وظيفه نه ده، په فقهه کښې د دې هيڅ ثبوت نشته، په شاميه کښې يواځې له ابو السعود څخه د نقل په کولو سره د نقل په صحت کښې خبره کړې د او په سعايه کښې په رکوع او سجدې کښې الصاق الكعبين (د ښنګرو په لګول) په مفصله او مدلله توګه رد کړی دی. په احسن الفتاوی کښې په رکوع کښې د ښنګرو د لګولو په بحث کښې د سعايه تحقيق منقول دی. **فقط والله تعالیٰ اعلم**

**۲۷ شعبان ۱۴۰۰ هجری**

## د نارينه لپاره تر نامه لاندې د لاسونو تړل مسنون دي

**سوال**: يوه ښاغلي د تقرير په دوران کښې وويل چه نارينه دې لاسونه په نامه باندې وتړي نه تر نامه لاندې او نه تر نامه پورته بلکه خاص به ئې د نامه په سر باندې تړي. د لاسونو د تړلو صحيح ترکيب څه دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د نارينه وو لپاره د لاسونو تر نامه لاندې تړل سنت دي **قال فى العلائية ووضع الرجل يمينه على يساره تحت سرته اٰخذا رسغها بخنصره وابهامه هو المختار.** (ردالمحتار ج۱، ص۳۵۴) **فقط والله تعالیٰ اعلم** **۲۹ رجب ۹۹ هجری**

## سجدې ته د تلو په وخت کښې لاسونه بايد په زنګنونو کې نه ښودل شي

**سوال**: تر رکوع وروسته سجدې ته د تلو په وخت کښې لاسونه په زنګنونو باندې کيښودل سنت دي او که مستحب؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له سجدې څخه د پورته کيدو په وخت په زنګنونو باندې د لاسونو کيښودل مستحب دي ليکن سجدې خوا ته د تلو په حالت کښې په زنګنونو باندې د

لاسونو کیښودل ثابت نه دي، د عدمِ ثبوت څخه علاوه په دې کښې نور دوه قباحتونه هم شته:
۱- عوام دا مسنون یا مستحب ګڼلی دی.
۲ له قومې څخه سجدې ته د تلو مسنونه طریقه دا ده چه ګونډې په زمکې باندې تر لګولو مخکښې ملا او سینه باید ټیټه نه شي، په دې وخت کښې په زنګنونو باندې د لاسونو د کیښودلو دا اثر لیدل کیږي چه د زنګنونو په زمکې باندې تر لګولو مخکې د بدن پورتنی برخه ټیټیږي. لهٰذا دا عادت د سنتو د ترک کیدو له وجې د پریښودو وړ دی. فقط والله تعالیٰ اعلم

۱۲ رجب ۱٤۰۰ هجری

(زیاتی تحقیق په تتمه کښې دی)

## په ناستې سره لمونځ کوونکی دې نظر په غیرِ کښې ساتي

**سوال** : کوم سړی چه په ناستې سره لمونځ کوي هغه به د قرائت په حالت کښې خپل نظر د سجدې په ځای باندې ساتي او که د قعدې غونډې په غیږ باندې به خپل نظر ساتي؟ د ځینو خیال دا دی چه نظر باید د سجدې په ځای باندې وساتل شي، آیا دا خبره صحیح ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې اړه مې کومه صریحه جزئیه تر نظر نه ده تیره شوې. د کلیې دا مقتضیٰ ده چه په غیرِ باندې دې نظر ساتي ځکه چه په یوه ځای باندې د نظر له ساتلو څخه په خشوع او خضوع کښې اعانت (امداد) مقصود دی. د ناستې په حالت کښې په غیږ باندې نظر ساتل آسانه دی. د همدې لپاره په قعده کښې دا حکم ورکړ شوی دی. له دې امله په ناستې سره د قرائت په حالت کښې هم باید په غیرِ باندې نظر وساتل شي، با لفرض له سهولت څخه پرته که کوم بل حکمت هم وي نو بیا به هم دا ویل کیږي چه د قعدې په حالت کښې په غیرِ باندې د نظر په ساتلو سره چه کوم حکمت دی هغه په ناستې سره د قرائت په حالت کښې هم شته.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۲ رجب ۱٤۰۰ هجری

## په قنوتِ نازله کښې باید لاسونه وتړل شي

**سوال** : د قنوت نازله د ویلو په وخت کښې لاسونه باید تړلی و نیولی شي او که خلاص؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې باره کښې کومه صریحه جزئیه لاس ته نه ده راغلې، د کلیې مطابق لاسونه باید وتړل شي. لانه قیام له قرار وفیه ذکر مسنون ولذا قالوا بوضع الیدین فی قنوت الوتر وقومة صلوٰة التسبیح.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۹ جب ۱٤۰۰ هجری

## په دعاء کښې د لاسونو تر منځ څه نا څه فاصله مستحبه ده

**سوال**: په دُعاء کښې لاسونه بايد تر کومه ځايه پورته شي، او دواړه لاسونه به له يوه او بل سره لګيدلي نيسي او که څه فاصله به په منځ کښې پريږدي. يو مولوي صاحب وايي چه په امداد الفتاویٰ کښې ئې ليکلي دي چه لاسونه بايد سره لګيدلې وي. آيا دا صحيح ده او که څنګه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دُعاء کښې لاسونه بايد تر سينې پورې پورته شي او د دواړو لاسونو تر منځ څه نا څه فاصله پريښودل افضل دي.

**في الباب الرابع من كراهية الهندية والافضل في الدعاء ان يبسط كفيه ويكون بينهما فرجة وان قلت ولا يضع احدى يديه على الاخرى فان كان في وقت عذر او برد شديد فاشار بالمسبحة قام مقام بسط كفيه و المستحب ان يرفع يديه عند الدعاء بحذاء صدره كذا في القنية. (عالمگيريه ج۱، ص۳۱۸، المطبعة الكبرى الاميرية بمصر)**

په امداد الفتاویٰ کښې ئې ضم الکفين د حنبلي فقهې له کتاب شرح المقنع څخه را نقل کړی دی. **ونصه وتكون يداه مضمومتين لما روى الطبراني في الكبير عن ابن عباس رضى الله عنهما كان النبي ﷺ اذا دعا ضم كفيه وجعل بطونهما الى وجهه وضعفه في المواهب.**

د دې روايت په بناء سره که څوک د لاسونو د لګولو د افضليت قول وکړي نو د دې هم ګنجائش شته او داسې تطبيق هم ورکول کيدلی شي چه له ضم څخه مراد نژدې والی دی کوم چه د لرې والي منافي (مانع) نه دی. **فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۴ جمادی الاولیٰ ۹۶ سـ هجری**

## د پورتني سوال غوندې يو بل سوال

**سوال**: آيا د دعاء په وخت کښې دواړه لاسونه بايد سره ولګول شي او که خلاص ونيول شي؟ د دې په اړه مولانا محمد اجمل صاحب د آداب الدعاء په رساله کښې فرمايي: علامه طحطاوي د نهر الفائق په حوالې سره ليکي چه **(وفي النهر من فعل كيفية المستحبة ان يكون بين الكفين فرجة وان قلت)** او د دې مخته نوموړی علامه د حصنِ حصين په حوالې سره ليکي چه د دُعاء له آدابو څخه يو دا هم دی چه دواړه لاسونه به سره لګولي نيسي او د ګوتو مخونه بايد د قبلې خوا ته وي. **(وفي شرح الحصن والظاهر ان من الادب ايضاً ضم اليدين وتوجيه اصابعهما نحو القبلة).**

او مخکښې فرمايي چه له يوه او بل سره لګول ئې افضل او بهتر دي. او که چيرته لږ غوندې

جلا ئې ونيسي نو بيا جائز دی. او امام شعراني د لواقح الانوار په ۷۲۹ مخ باندې ليکي: د آسمان په طرف د دُعاء په وخت د لاسونو د پورته کولو حکمت دا دی چه له خدائي دربار څخه د معنوي عطياتو د حاصلولو لپاره لاس يوه ذريعه ده، پس دواړه بايد له يوه او بل سره دومره سره ولګيږي لکه څرنګه چه د اوبو چښونکی خپل دواړه لاسونه سره لګوي (رسالهٔ آداب دعاء ص۴۰)

تر دې وروسته بنده د حديثو ځينې کتابونه وکتل، په مرقات کښې ملا علي قاري رحمه الله د کتاب الدعوات په دريم فصل کښې د **عن ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما انه يقول ان رفعکم ايديکم۔ الخ** حديث په ذيل کښې دا حديث را نقلوي **وقد ورد انه ﷺ فی الدعاء يوم عرفة جمع بين کفيه و جعلهما مقابل صدره کاستطعام المسکين. (مرقاة المصابيح ج۵ ص۴۷)** ليکن د دې ئې هيڅ سند نه دی ليکلی. احقر په مجمع الزوائد کښې وليدل نو په دې کښې د نوموړي حديث تر نقل کولو وروسته حافظ نور الدين رحمه الله ليکي **رواه الطبرانی فی الاوسط وفيه الحسين بن عبد الله بن عبيد الله وهو ضعيف.** او ملا علي قاري رحمه الله په مرقات ج۵، ص۴۲ باندې فرمايي: **انّ الضعيف حجة فی الفضائل اتفاقاً اه.**

همدارنګه له لاندينې حديثونو څخه هم د دعا په وخت کښې د لاسونو د لګولو تائيد کيږي **عن انس بن مالک رضی الله عنه قال رفع رسول الله ﷺ يديه بعرفة يدعو فقال اصحاب النبی ﷺ هذا الابتهال ثم حاصت الناقة ففتح احدی يديه فاخذها وهو رافع الاخری. رواه البزار و الطبرانی فی الاوسط بنحوه الّا انه قال فرفع يديه فسقط زمام الناقة فتناوله ورفع يديه وزاد هذا الابتهال و التضرع ورجال البزار رجال الصحيح غير احمد بن يحيی الصوفی وهو ثقة ولکن الاعمش لم يسمع من انس رضی الله عنه. (مجمع الزوائد ج۱۰، ص۱۶۹)**

**وعن سلمان رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ما رفع قوم اکفهم الی الله عزّ وجلّ يسئلونه شيئا الا کان حقا علی الله ان يضع فی ايديهم ما سألوا. قلت له حديث فی السنن غير هذا رواه الطبرانی و رجاله الصحيح (پورتنی حواله)**

او هغه ټول حديثونه هم د لاسونو د لګولو تائيد کوونکي دي چه په هغو کښې تر دعا وروسته د لاسونو په مخ باندې مسح کول او د سماوي برکاتو د نزول او الهي انوارتو ذکر دی.

همدارنګه د عقل له مخې هم احقر ته په ضم يدين کښې تواضع او انکساري محسوسيږي. له دې برخلاف د لاسونو تر منځ په جلاوالي کښې تکليف معلوميږي. همدارنګه د لاسونو تر منځ دجلا والي په تائيد کښې احقر ته تر اوسه پورې يو حديث هم په لاس نه دی وراغلی

هيله ده چه له خپلې محاکمې او انيق تحقيق څخه احقر خبر کړي. لوی احسان او کرم به وي جزاکم الله احسن الجزاء.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د آداب الدعاء په رساله کښې د دې وضاحت نه دې شوې چه دعلامه طحطاوي رحمه الله مذکوره عبارت د دُر مختار په حاشيه کښې دی او که مراقی الفلاح کښې، د دې لپاره مې دواړه کتابونه پسې وکتل، په طحطاوي علي الدر المختار کښې خو داسې کوم عبارت مې لاس ته را نه غی. البته په طحطاوي على مراقي الفلاح کښې شته ليکن د هغه لي يوه جزء څخه هم د دعاء په وخت کښې د ضم اليدين فضيلت نه دی ثابت شوی بلکه د دې برعکس د دواړو لاسونو تر منځ د جلاوالي مستحب والی ترې ثابتيږي. پوره عبارت ملاحظه کړئ:

**وفى النهر من فعل كيفية المستحبة ان يكون بين الكفين فرجة وان قلت وان لا يضع احدى يديه على الارض فان كان لا يقدر على رفع يديه لعذر او برد فاشار بالمسبحة اجزأ اه. لكن فى شرح الحصن الحصين و الظاهر ان من الادب ايضاً ضم اليدين وتوجيه اصابعهما نحو القبلة وفى شرح المشكوة ورد انه ﷺ يوم عرفة جمع بين كفيه فى الدعاء وان اريد بالضم فى الكلام القرب التام لا ينافى وجود الفرجة القليلة وامام قوله جمع بين كفيه لا ينافيه ايضاً لان المعنى جمع بينهما فى الرفع ولا يفرد احدهما به. (طحطاوى على المراقى ص۱۴۳)**

د آداب الدعاء د رسالې په عبارت کښې دويم تسامح (غلطي) دا شوی دی چه د ضم اليدين استحباب ئې د حصنِ حصين کتاب خوا ته منسوب کړی دی په داسې حال کښې چه دا عبارت د حصن حصين نه بلکه د شرح الحصن دی. ممکنه ده چه دا د ناسخ سهو او يا د کاتب غلطي وي.

علامه طحطاوي رحمه الله د شرح الحصن عبارت د نهر له جزئيې سره د تطبيق ورکولو چه کوم صورت بيان کړی دی ما هم بعينه د تطبيق همدا وجه په تاريخ ۲۴ جمادي الاولی سنه ۹۶ھ هجري ليکل شوي فتوی د قنيه د جزئيې او شرح المقنع په عبارت کښې ليکلی وو. فلله الحمد علي توفيقه لموافقة الاكابر.

لواقح الانوار مې ورپسې وکتلو د لطائف المنن په حاشيه باندې لاس ته راغی، مستقل مې تر لاسه نه شو. په دې حوالې کښې ليکل شوی د صفحې نمبر کار ور نه کړ، له سرسري پلټنې څخه مذکوره عبارت مې لاس ته را نه غی، که چيرته د اعتماد له مخې د دې عبارت وجود په لواقح الانوار کښې ومنل شي نو د مؤلف له خوا څخه د طحطاوي د جزئيې غوندې په دې کښې هم د عبارت په پوهه يا نقل کښې د تسامح (غلطی) احتمال شته. پرته له دې څخه امام شعراني شافعي دی او د هغه قول د احنافو لپاره حجت نه دی. ممکنه ده چه د شوافعو په نزد ضم اليدين

افضل وي. لکه څرنگه چه په شرح المقنع کښې د حنابله وو په نزد هم د ضم اليدين فضيلت معلوميږي. د احنافو په لاندينې کتابونو کښې د (فرجه بين اليدين) لاسونو تر منځ د جلاوالي د استحباب تصريح موجوده ده:

۱- در مختار فصل في بيان تاليف الصلوة.

۲- د قنيه جزئيه چه د شاميه په فصل تاليف الصلوة او د عالمگيري په کتاب الكراهية کښې مذكور ده.

۳- په شاميه کښې علامه ابن عابدين رحمه الله په همدې باندې اعتماد کړی دی.

٤- په عالمگير کښې په همدې باندې اعتماد شوی دی.

٥- د النهر الفائق عبارت پورته د طحطاوي په حوالې سره تير شو.

٦- علامه طحطاوي رحمه الله د نهر د جزئيې په خلاف د شرح المشكوة روايت او د شرح الحصن عبارت د ذكر كولو تر څنگ د نهر جزئيې ته ترجيح وركړې دی.

۷- حضرت مولانا عبد الحی لكهنوي صاحب رحمه الله د حصنِ حصين په حاشيه کښې د حصن حصين شرح الحرز الثمين لعليّ القاري رحمه الله تحقيقات دومره ډير راوړي دي چه په ظاهره دا څرگنديږي چه الحرز الثمين ئې له پلوه ټول را نقل کړی دی. سره له دې په دې موقع باندې د الحرز الثمين د عبارت په ځای ئې د قنيه جزئيه ذکر کړې ده چه په هغې کښې د فرجه بين اليدين مستحب والی مذکور دی.

د لته د فقهې ټول کتابونه پسې نه دي کتل شوي امکان لري چه په نورو ډيرو کتابونو کښې هم همدا حکم موجود وي.

طحطاوي چه له شرح المشكوة څخه كوم روايت نقل كړی دی دا بعينه په شرح د مشكوة لعليّ القاري رحمه الله کښې مذکور دی. له دې څخه څرگنديږي چه د طحطاوي رحمه الله په عبارت کښې له شرح المشكوة څخه مرقات او ل شرح الحصن الحصين څخه الحرز الثمين مراد دی. الحرز الثمين مې پيدا نه شوای کړی. که چيرته په رښتيا هم په هغه کښې ضم اليدين راغلی وي، نوعلامه طحطاوي د دې هم تاويل په "القرب التام" سره کړی او د عبارت اختلاف ئې رفع کړی دی. بالفرض که چيرته د شرح الحصن عبارت د هغه په ظاهر باندې ونيول شي نو له دې څخه په احنافو کښې يواځې د يوه فرد تفرد ثابتيږي. په هر ځال د شرح الحصن عبارت يا مؤوّل عن الظاهر (په ظاهر کښې ئې تاويل شوی) دی يا په دې کښې تفرّد (يواځې والی) دی. د دې لپاره حضرت مولانا عبد الحی صاحب رحمه الله د حصن حصين په حاشيه کښې د دې په ځای د قنيې جزئيه ذکر کړې ده.

## حديث ته رجوع

حديثو ته رجوع د مقلد وظيفه نه ده. سره له دې د خام زړه د تسکين (تسلي) لپاره د ضرورت په اندازه څه ليکل کيږي.

۱- د شرح المشكوة روايت: د دې خواب له علامه طحطاوي رحمه الله څخه پورته نقل شو. حقيقت دا دى چه دا خواب محض تاويل نه دى بلکه متبادر مطلب همدغه دى، ځکه چه د سوال لپاره د يوه لاس د غزولو او په يوه لاس د نيولو معمول دى. له دې وجې په دعاء کښې هم د دې گومان وو. دې گومان لره د رفع کولو په غرض سره د (جمع بين كفيه) (د دواړو ورغوو د يو ځاى کولو) الفاظ راوړل شول، چنانچه د همدغو الفاظو په بناء باندې حضراتو فقهاء کرامو رحمهم الله د افراد يد (په دعاء کښې د يوه لاس د پورته کولو) په کراهت باندې فتوىٰ ورکړې ده. كما قدمنا عن العلّامة الطحطاوى رحمة الله عليه فى النهر. دمرقات د الفاظو ((كاستطعام المسكين)) شرح نژدې راتلونکې ده.

۲ - رواية البزار و الطبراني عن انس بن مالک رضي الله عنه.

ده په دې روايت کښې ((ففتح احدى يديه)) څخه استدلال کړى دى حالانکه دا الفاظ د شرح المشكوة په روايت کښې د نوموړي تاويل تائيد کوي. د مذکوره الفاظو معنىٰ دا ده چه نبي كريم ﷺ د اوښ د مهار د نيولو لپاره يو لاس وغزاوه او دويم لام ئې د دُعاء لپاره پورته نيولى وو. له دې څخه ثابته شوه چه په دُعاء کښې اصل دا دى چه دواړه لاسونه بايد پورته شي. په يوه لاس باندې اكتفاء كول د عذر په حالت باندې دى.لهذا په "جمع بين كفيه" کښې جمع فى الرفع (د دواړو يو ځاى پورته كول) مراد كيدل ښكاره دى.

۳ - فى رواية الطبرانى عن انس رضي الله عنه كان حقاً على الله ان يضع فى ايديهم ما سألوا. او نور اړونده احاديث د مسح اليدين علي الوجه بعد الدعاء او نزول بركات السماوية و الانوار الالهية.

په دغو حديثونو کښې د ضم اليدين هيڅ اشاره نشته. وضع في اليد كنايه له اعطاء څخه ده، همدارنګه له (رفع اليدين كاستطعام الطعام و مسح على الوجه) څخه صرف تمثيل مقصود دى. په لاندينى امورو باندې د غور له کولو څخه د دې حقيقت په پوهيدلو کښې به نوره آسانتيا هم وي.

(۱) له رفع اليدينو څخه پرته په دُعاء کښې هم په يقيني توګه بركات او انوار وركول كيږي ليكن الله تعالى ئې په لاسونو کښې وركوي، د لاسونو د نه پورته کولو په صورت کښې خو ظرف موجود نه وي.

(۲) د لاسونو ظرف د هغه د عطاء (وركړې) په نسبت ډير كوچنى دى، په خانګړې توګه چه د

چا لاسونه هم کوچني وي نو هغه ته به ډير تاوان او خساره وي.

(۳) د دُعاء په وخت بايد د لاسونو ګوتې د قبلې خوا ته وي، په دې حالت کښې ورغوي تقريباً سيده پاتې کيږي. د دې لپاره په ظرف (لوښي) کښې د خواک د نيولو صلاحيت ډير کم پاتې کيږي. با لخصوص په داسې حال کښې چه مظروف سيّال (ډير نرم او توئيدونکی) وي، کما زعم الشعراني رحمه الله. ګوا که د ظرف يواځې تل موجود دی او ديوالونه ئې نشته.

(۴) د دُعاء تر شروع کولو وروسته د لاسونو ظرف خو فوراً ډکيږي، د دې لپاره بايد فوراً په مخ باندې مسح شي، او که نه نو د لاسونو تر ډکيدلو وروسته مظروف توئيږي بلکه مظروف سيّال دی نو لږ ځنډ وروسته هغه همداسې هم له لاسونو څخه توئيږي.

خپله يوه کيسه مې را ياده شوه، يو ځل ما ته وويل شول چه د جنازې لمونځ راکړه، ما وليدل چه د مړي له کټ څخه څادر تر زمکې پورې را زړيږي او د کټ او د زمکې منځنی خلاء ئې بنده کړې ده. ما پوښتنه وکړه چه دا مو ولې داسې کړی دی، دوی ئې دا حکمت بيان کړ چه د دې لپاره تر څو دُعاء د کټ له لاندې څخه و نه ووځي.

په دغو امورو باندې د توجّه له کولو څخه دا خبره ښه واضحه شوه چي د رب کريم عطاء (ورکړه) يواځې له لاسونو سره خاص نه ده او نه د هغه **يد سحّاء الليل والنهار** او **يداه مبسوطتان ينفق كيف يشاء** له شان سره ښائي، چه هغ يواځې د سوال کوونکي د لاسونو د ظرفيت په برابر عطاء وکړي، لهذا له رفع اليدين څخه مقصد يواځې له سائل سره مشابهت دی نه د عطاء حفاظت.

با لفرض که چيرته دا هم و منل شي چه په لاسونو سره د ورکړې حفاظت مقصود دی نو د ډيرې ورکړې د را نيولو او پورته کولو په حالت کښې د دواړو لاسونو تر منځ خامخا فرجه پاتې کيږي. ځکه چه ډيره ورکړه که چيرته سيّال يا جامد فتيت وي نو هغه کوم لوي لوښي ته اچول کيږي، او که چيرته جامد غير فتيت وي لکه پوره ووزه يا داسې نور نو د هغه حجم خو ډير لوی وي، په دواړو صورتونو کښې لاسونه فراخ او سره لرې نيول کيږي، د لاسونو ګوتې د قبلې خوا ته په نيولو کښې چه کوم اشکال وو هغه هم په دې صورت کښې له منځه ځي. ځکه چه د لوی حجم درلودونکي شي د را پورته کولو په وخت کښې د لاسونو نه پياله نه شي جوړيدلی بلکه لاسونه سيده د تختې غوندې نيول کيږي. دا ټول مې ستا د ګومان مطابق وليکل که نه نو حقيقت خو هغه دی چه له لاسونو څخه د عطاء يا د ورکړې حفاظت مقصود نه دی.

د دواړو لاسونو تر منځ د فرجې (جلاوالي) په اړه ممکنه ده چه حضراتو فقهاء کرامو رحمهم الله په نظر کښې کوم صريح حديث وراغلی وي او که نه نو کم تر کمه له کوم حديث څخه خو به ئې استنباط خامخا کړی وي. د دغو حضراتو فيصلې هوائي غيشی نه وي

حاصل دا چه د دُعاء په وخت کښې د دوارو لاسونو تر منځ فاصله مستحبه ده او د ضم اليدينو اجازه هم شته. فقط والله تعالیٰ اعلم غرۂ ربیع الآخر ۱۳۹۸ هجری

## په دُعاء کښې د لاسونو مخونه د اسمان خوا ته نيول مستحب دي

**سوال**: د دُعا د غوښتلو په وخت کښې بايد ورغوي د مخ خوا ته نيول کيږي او که پورته د آسمان په طرف. صحيح طريقه ئې کومه يوه ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دُعاء کښې د د ورغوي مخونه د آسمان په طرف نيول مستحب دي. قال العلاء رحمه الله تعالى فيبسط يديه حذاء صدره نحو السماء لانها قبلة الدّعاء ويكون بينهما فرجة. (رد المحتار ج۱، ص۴۷۳) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۷ جمادی الآخر ۱۳۹۹ هجری

## په دُعاء کښې لاسونه تر کومه ځايه پورته کيږي؟

**سوال**: د دُعاء د غوښتلو په وخت کښې بايد لاسونه تر کوم ځايه پورې پورته شي؟ ځينې وائې چه تر اوږو پورې بايد پورته شي او ځينې بيا وائي تر سينې پورې، صحيح طريقه کومه يوه ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دواړه صحيح دي. قال شارح التنوير رحمه الله تعالى فيبسط يديه حذاء صدره نحو السماء لانها قبلة الدعاء وقال ابن عابدين رحمه الله تعالى كذا روى عن ابن عباس رضى الله تعالى عنهما من فعل النبى صلى الله عليه وسلم قنية عن تفسير السمان. (ردالمحتار ج۱، ص۴۷۳) وفى المراقى رافعى ايديهم حذاء الصدر وبطونها مما يلى الوجه. قال الطحطاوى رحمه الله تعالى الذى فى الحصن الحصين وشرحه ان يرفعهما حذاء منكبيه باسطاً كفيه نحو السماء لانها قبلة الدعاء آه. قال بعض الافاضل ولا منافاة بينهما لان المراد ان لا يجعل بطونهما جهة الارض والتفاوت فى مقدار الرفع قليل كما يشير اليه ما فى ابى داؤد عن ابن عباس رضى الله تعالى عنهما قال المسئلة ان ترفع يديك حذو منكبيك او دونهما. (الطحطاوى على المراقى ص۱۴۳) فقط والله تعالیٰ اعلم

۱۱ ربيع الآخر ۱۴۰۱ هجری

## په دُعاء کښې د گوتو مخونه د قبلې خوا ته نيول مستحب دي

**سوال**: آيا په دُعاء کښې د گوتو قبلې ته مخامخ نيول سنت دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مستحب دي. كما نقل الطحطاوى رحمه الله تعالى عن شرح الحصن الحصين (الطحطاوى على المراقى ص۱۴۳) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۱ ربيع الآخر ۱۴۰۱ هجری

## د دُعاء مسنونه طريقه

**سوال** : د سنت مطابق د دُعاء غوښتلو صحيح طريقه څه ده چه د هغه مطابق دُعاء قبوله شي، په وضاحت سره ئې بيان کړی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په اوداسه سره قبلې ته مخامخ د التحيات په شکل کښيناستل او په خشوع او خضوع سره دُعاء کول. لومړی دې د الله تعالى حمد او ثناء ووائي يعنې **الحمد لله رب العٰلمين الرحمٰن الرحيم مٰلك يوم الدين** ، بيا درود شريف، بيا دُعاء، لومړی دې د خپلو والدينو (مور او پلار) لپاره، بيا دې دې ټولو مؤمنانو لپاره دُعا وغواړي. د ټول اُمت پخپلې دُعاء کښې له شاملولو پرته دُعاء ناقصه پاتې کيږي، د دعا هر مضمون دې بار بار تکراروي يا دې کم تر کمه درې وارې خو تکرار کړي. د دُعاء په منځ کښې دې درود شريف ډير ډير وائي. د **ياارحم الراحمين يا ذالجلال والاکرام** په الفاظو دې الله تعالیٰ ﷻ ته نارې وهي، په آخر کښې دې بيا درود شريف ووائي او له درود شريف وروسته دې **سبحان ربك رب العزة عما يصفون وسلام على المرسلين والحمد لله رب العٰلمين** ووائي په آمين سره دې دُعاء پای ته ورسوي. **فقط والله تعالیٰ اعلم**

**۱۱ ربيع الآخر ۱۴۰۱ ھجری**

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِيْ وسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِيْنَ الْمَهْدِيِّيْنَ تَمَسَّكُوْبِهَا وَعَضُّوْا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ (الحديث)

# زُبدة الكلمات فی حكم الدعاء بعد الصلوات

## تر فرائضو وروسته د دُعاء حكم

**سوال** : تر فرض لمونځونو وروسته د دُعا په اړه د خلكو تر منځ مختلفې نظريې پيدا كيږي. ځيني علماء كرام يو مخ د دې دُعاء منكرين دي او وائي چه تر فرائضو وروسته بايد فوراً د نوافلو لپاره خلك ودريږي، ځيني په دې دُعا كښې د لاسونو له پورته كولو څخه انكار كو. بيا چه څوك د رفع اليدين قائل دي په هغو كښې ځيني په پټه سره دعاء كوي او د جوماتونو اكثره امامان په لوړ آواز سره اوږدې دُعا ګانې كوي او مقتديان آمين وائي. په دغو ټولو كښې د شرعي نقطهٔ نظر له مخې د سنتو مطابق صحيح طريقه څه ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : تر فرائضو وروسته د دُعاء په اړه لومړی حديثونه او د فقهې عبارتونه ذكر كيږي، تر دې وروسته له هغو څخه ثابت شوي حكمونه ذكر كيږي:

**احاديث**:

۱- عن انس رضی الله عنه ان النبی ﷺ قال ما من عبد يبسط كفيه فی دبر كل صلوة يقول اللّٰهم الهی واله ابراهيم و اسحٰق و يعقوب واله جبرئيل و ميكائيل و اسرافيل اسألك ان تستجيب دعوتی فانی مضطر و تعصمنی فی دينی فانی مبتلی و تنالنی برحمتك فانی مذنب و تنفی عنی الفقر فانی متمسكن الا كان حقاً علی الله ان لا يرد يديه خائبتين وفی اسناده عبد العزيز بن عبد الرحمٰن فيه مقال. (علم اليوم والليلة لابن السنی)

۲ - عن الاسود العامری عن ابيه رضی الله عنه قال صليت مع رسول الله ﷺ الفجر فلما سلم انحرف ورفع يديه و دعا الحديث. رواه ابن ابی شيبة. (مجموعة الفتاوٰی بهامش الخلاصة ج۱، ص۱۰۰/ امداد الفتاوٰی ج۱، ص۵۶۱/نفائس مرغوبة ص۳۹) د دې حوالې تحقيق په ضميمه كښې دی.

۳ - وقال الحافظ السيوطی فی فض الوعاء فی احاديث رفع اليدين فی الدعاء اخرج ابن ابی شيبة قال حدثنا محمد بن يحيی الاسلمی قال رأيت عبد الله بن الزبير رضی الله تعالی عنهما و رأی رجلا رافعاً يديه يدعو قبل ان

یفرغ من صلوته فلما فرغ منها قال له ان رسول الله ﷺ لم یکن یرفع یدیه حتّٰی یفرغ من صلاته رجاله ثقات آه. (فض الوعاء للسیوطی)

۴۔ عن الفضل بن عباس رضی الله تعالیٰ عنهما قال قال رسول الله ﷺ مثنی مثنی تشهد فی کل رکعتین و تخشع و تضرع و تمسکن ثم تقنع یدیك یقول ترفعهما الی ربّك مستقبلاً ببطونهما وجهك و تقول یارب یارب من لم یفعل ذٰلك فهی کذا و کذا. رواه الترمذی و النسائی ابن خزیمة فی صحیحه و رجاله ثقات. (اعلاء السنن ج۳، ص۲۰۸)

۵۔ اخرج عبد الرزاق عن النبی ﷺ ای الدعاء اسمع ای اقرب الی الاجابة قال شطر اللیل الاخیر و ادبار المکتوبة و صححهٔ عبد الحق و ابن القطان. (مصنف عبد الرزاق)

۶۔ ذکر الامام المحدث ابو الربیع فی کتاب مصباح الظلام عن النبی عَلَیْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام انه قال من کانت له الی الله حاجة فلیسألها دبر صلوة مکتوبة آه. (مصباح الظلام)

۷۔ عن ابی امامة رضی الله عنه قال قیل یا رسول الله! ای الدعاء اسمع قال جوف اللیل الآخر و دبر الصلوات المکتوبات. اخرجه الترمذی و قال حسن. (فتح الباری ج۱۱، ص۱۱۳)

۸۔ اخرج الطبرانی من روایة جفر بن محمد الصادق قال الدعاء بعد المکتوبة افضل من الدعاء بعد النافلة کفضل المکتوبة علی النافلة. (المواهب للقسطلانی نقلا عن الحافظ ابن حجر)

۹۔ عن ابی امامة رضی الله عنه قال ما دنوت من رسول الله ﷺ فی دبر صلاة مکتوبة و لا تطوع الا سمعتهٔ یقول اللّٰهم اغفر لی ذنوبی و خطایای کلها اللّٰهم انعشنی و اجبرنی و اهدنی لصالح الاعمال و الاخلاق انه لا یهدی لصالح الاعمال و لا یصرف سیئها الا انت و روی النسائی و غیره اللّٰهم اصلح لی دینی الذی جعلته لی عصمة و اصلح لی دنیای التی جعلت فیها معاشی اعوذ برضاك من سخطك و اعوذ بعفوك من نقمتك و اعوذ بك منك لا مانع لما اعطیت و لا معطی لما منعت و لا ینفع ذا الجد منك الجد و روی ابو داؤد اذا انصرفت من المغرب فقل اللّٰهم اجرنی من النار سبع مرات اذا قلت ذٰلك ثم مت من لیلتك کتب لك جوار منها و اذا صلیت الصبح فقل کذٰلك ان مت من یومك کتب لك جوار منها. (ابن السنی)

۱۰۔ عن عطاء بن مروان عن ابیه ان کعبا رضی الله عنه حلف له بالله الذی فلق البحر لموسی انا لنجد فی التوراة ان داؤد نبی الله علیه الصلوة و السلام کان اذا انصرف من صلوته قال اللّٰهم اصلح لی دینی الذی جعلته لی عصمة و

اصلح لی دنیای التی جعلت فیها معاشی اللّٰھم انی اعوذ برضاك من سخطك واعوذ بعفوك من نقمتك واعوذ بك منك لا مانع لما اعطیت ولا معطی لما منعت ولا ینفع ذا الجد منك الجد قال وحدثنی کعب ان صهیبا حدثه ان محمدا ﷺ کان یقولهنا عند انصرافه من صلوته. (نسائی)

۱۱ - عن معاذ بن جبل رضی اللہ عنہ قال ان رسول الله ﷺ اخذ بیدی یوماً ثم قال یا معاذ والله انی لاحبك فقال معاذ بابی انت وامی یا رسول الله (ﷺ) وانا والله احبك فقال اوصیك یا معاذ لا تدعن فی دبر کل صلوة ان تقول اللّٰھم اعنی علی ذکرك وشکرك وحسن عبادتك قال واوصی بذلك معاذ الصنابحی واوصی الصنابحی ابا عبد الرحمٰن الحبلی واوصی ابو عبد الرحمن عقبة بن مسلم هذا حدیث صحیح علی شرط الشیخین ولم یخرجاه وقال الذهبی فی التلخیص علی شرطهما. (مستدرك ج۱، ص۲۷۳) واخرجه ابو داؤد والنسائی وصححه ابن حبان.

۱۲ - عن المغیرة بن شعبة رضی اللہ عنہ قال ان رسول الله ﷺ کان اذا فرغ من الصلوة وسلم قال لا اله الا الله وحده لا شریك له له الملك وله الحمد وهو علی کل شیء قدیر اللّٰھم لا مانع لما اعطیت ولا معطی لما منعت ولا ینفع ذا الجد منك الجد ولفظ البخاری فی کتاب الاعتصام انه ﷺ کان یقول هذه الکلمات دبر کل صلوة وفی کتاب الصلوة فی دبر کل صلوة مکتوبة. (رواه البخاری ومسلم وابو داؤد والنسائی)

۱۳ - عن انس رضی اللہ عنہ ان النبی ﷺ کان اذا صلی وفرغ مسح بیمینه علی رأسه وقال بسم الله الذی لا اله الا هو الرحمٰن الرحیم اللّٰھم اذهب عنی الهمّ والحزن. (رواه الطبرانی والبزار)

۱۴ - عن انس رضی اللہ عنہ قال ما صلی رسول الله ﷺ بنا الا قال حین اقبل علینا بوجهه اللّٰھم انی اعوذ بك من کل عمل یخزینی واعوذ بك من کل صاحب یؤذینی واعوذ بك من کل عمل یلهینی واعوذ بك من کل فقر ینسینی واعوذ بك من کل غنی یطغینی. (رواه البزار وابو یعلی)

۱۵ - عن علی رضی اللہ عنہ قال کان النبی ﷺ اذا سلم من الصلوة قال اللّٰھم اغفر لی ما قدمت وما اخرت وما اسررت وما اعلنت وما اسرفت وما انت اعلم به منی انت المقدم والمؤخر لا اله الا انت. (رواه ابو داؤد)

۱۶ - عن ثوبان رضی اللہ عنہ ان النبی ﷺ کان اذا اراد ان ینصرف من صلوته استغفر ثلاث مرات ثم قال اللّٰھم انت السلام ـ الخ. (رواه ابو داؤد)

۱۷ - عن زید بن ارقم رضی اللہ عنہ قال کان رسول الله ﷺ یقول فی دبر کل صلوة اللّٰھم ربنا ورب کل شیء انا شهید انك الرب لا شریك لك اللّٰھم ربنا ورب کل شیء انا شهید ان محمداً عبدك ورسولك اللّٰھم ربنا ورب

کل شیء انا شهید ان العباد کلهم اخوة اللّٰهم ربنا ورب کل شیء اجعلنی مخلصا لك واهلی فی کل ساعة من الدنیا والأخرة یا ذا الجلال والاکرام اسمع واستجب الله الاکبر الله الاکبر الله نور السمٰوٰت والارض الله الاکبر حسبی الله ونعم الوکیل الله الاکبر الله الاکبر. (رواه ابو داؤد والنسائی واحمد)

۱۸ - عن عقبة بن عامر رضی الله عنه قال امرنی رسول الله ﷺ ان اقرأ بالمعوذات دبر کل صلوة. (رواه ابو داؤد)

۱۹ - فی مسند الامام احمد وسنن ابن ماجة وکتاب ابن السنی عن ام سلمة رضی الله عنها قالت کان رسول الله ﷺ اذا صلی الصبح قال اللّٰهم انی اسألك علما نافعاً وعملا متقبلاً ورزقا طیباً. (کتاب الاذکار للنووی)

۲۰ - وبعد صلوتی الصبح والمغرب ایضا قبل ان یتکلم اللهم اجرنی من النار سبع مرات. رواه ابو داؤد والنسائی وابن حبان. (الحصن الحصین للجزری)

۲۱ - عن ابن عباس رضی الله تعالٰی عنهما فاذا فرغت فانصب یقول فاذا فرغت مما فرض علیك من الصلوة فاسأل الله وارغب الیه وانصب له. (تفسیر ابن جریر طبری)

۲۲ - عن انس رضی الله عنه قال دخل النبی ﷺ علی ام سلیم (الٰی قوله) ثم قام الی ناحیة من البیت فصلی غیر المکتوبة فدعا لام سلیم واهلها الحدیث. (رواه البخاری)

۲۳ - عن عبد الله بن الزبیر رضی الله تعالٰی عنهما ان النبی ﷺ کان یقول فی دبر الصلوات لا اله الا الله وحده لا شریك له له الملك وله الحمد وهو علی کل شیء قدیر لا حول ولا قوة الا بالله لا اله الا الله ولا نعبد الا ایاه له النعمة وله الفضل وله الثناء الحسن الجمیل لا اله الا الله مخلصین له الدین ولو کره الکافرون. (رواه مسلم)

۲۴ - عن عبد الرحمٰن بن غنم رضی الله عنه عن النبی ﷺ قال من قال قبل ان ینصرف ویثنی رجلیه من صلوة المغرب والصبح لا اله الا الله وحده لا شریك له الخ عشر مرات الخ. (رواه احمد)

۲۵ - کان رسول الله ﷺ اذا صلی الصبح وهو ثان رجلیه یقول سبحان الله وبحمده واستغفر الله انه کان توابا سبعین مرة ثم یقول سبعین بسبعمائة الحدیث. (رواه الطبرانی فی الکبیر)

په پورتني دريو حديثونو کښې د حمد او ثنا بيان دی کوم چه تر ټولو بهترينه دُعاء ده.

قال ﷺ خیر الدعاء دعاء یوم عرفة وخیر ما قلت انا والنبیون من قبلی لا اله الا الله وحده لا شریك له له الملك وله الحمد وهو علی کل شیء قدیر رواه مالك والترمذی واحمد وغیرهم شرح النقایة للقاری وقیل لابن عیینة هذا ثناء فلم سماه رسول الله ﷺ دعاء فقال الثناء علی الکریم دعاء لانه یعرف حاجته فتح قلت

يشير بهذا الى خير من شغله ذكرى عن مسألتى اعطيتهٗ افضل ما اعطى السائلين ومنه قول امية بن ابى الصلت فى مدح بعض الملوك.

| | |
|---|---|
| الذكر حاجتى ام قد كفانى | ثناؤك ان شيمتك الحياء |
| اذا اثنى عليك المرء يوما | كفاه من تعرضك الثناء |

(ردالمحتار ج۲، ص۱۹۰)

۲۲ - ان الله تعالىٰ كره لكم ثلاثا اللغو عند القرآن و رفع الصوت فى الدعاء و التخصر فى الصلوة (عب) عن يحيى بن كثير مرسلاً (ح) (الجامع الصغير ج ۱، ص ۷۰)

## د فقهي عباراتونه:

**حنفيه:**

۱ - اذا دعا بالدعاء المأثور جهرا و جهر معه القوم ايضا ليتعلّموا الدعاء لا بأس به و اذا تعلموا حينئذٍ يكون الجهر بدعة. (هندية ج۵، ص۳۱۸/بزازية بهامش الهندية ج۴، ص۱۰۰)

۲ - واعظ يدعوا كل اسبوع بدعاء مسنون جهراً لتعليم القوم و يخافته القوم اذا تعلم القوم خافت هو ايضاً وان جهر فهو بدعة. (بزازية على هامش العاملگيرية ج۴، ص۴۲)

۳ - و يستحب للامام (الى) و ان يستقبل بعده الناس (الى) ثم يدعون لانفسهم و للمسلمين رافعى ايديهم ثم يمسحون بها وجوههم فى آخره. (نور الايضاح)

۴ - قال العلامة الشاه محمد انور قدس سرّهٗ نعم اصل سنة الدعاء يحصل بغير رفع اليدين ولذا قل النقل فى الرفع بعد الصلوة و انما الرفع كمال فى السنة تحصل سنتهٗ به و بغيره فلا سبيل الى تبديع من رفع و لا الى تجهيل من ترك واما الامور المحدثة من عقد صورة الجماعة للدعاء كجماعة الصلوة والانكار على تاركها و نصب امام ثم ائتمام به فيه وغير ذٰلك من قلة العلم و كثرة الجهل والجاهل اما مفرط او مفرّط والله الموفق للصواب. (النفائس المرغوبة للمفتى كفاية الله رحمة الله عليه ص۳۷)

**مالكيه:**

۵ - كره مالك رحمة الله عليه وجماعة من العلماء لائمة المساجد والجماعات الدعاء بعد الصلوات المكتوبة جهر للحاضرين الخ. (امداد الفتاوىٰ ج۱، ص۵۶۶)

۲ - وقد اكثر الناس فى هذه المسئلة اعنى دعاء الامام عقب الصلوة وتأمين الحاضرين على دعائه وحاصل ما انفصل عنه الامام ابن عرفة والغبريني ان ذلك ان كان على نية انه من سنن الصلوة وفضائلها فهو غير جائز و ان كان مع السلامة من ذلك فهو باق على حكم اصل الدعاء والدعاء عبادة شرعية فضلها من الشريعة معلوم عظمه. (امداد الفتاوى ج۱، ص۵٦۷)

۷ - فى فتح المعين مع المتن ويسن ذكر ودعاء سرًا عقبها اى الصلوة اى يسن الاسرار بهما المنفرد ومأموم وامام لم يرد تعليم الحاضرين ولا تأمينهم لدعائه بسماعه. (امداد الفتاوى ج۱، ص۵٦۸)

۸ - فى شرح العباب لابن حجر وفتاواه الكبرى ويسن للمصلى اذا كان منفردًا او [۱] مأمومًا كما فى المجموع عن النص بعد السلام عن الصلوة اكثار ذكر الله تعالى ع الدعاء سرًا للاخبار الصحيحة لكن قال الاسنوى الحق انه يسن للامام ان يختصر فى الذكر والدعاء بحضرة المأمومين فاذا انصرفوا طول. (امداد الفتاوى ج۱، ص۵٦۸)

**حنابلة:**

۹ - قال الشيخ المنصور بن ادريس الحنبلى فى شرح الاقناع مع المتن يسن ذكر الله والدعاء والاستغفار عقب الصلوة المكتوبة (الى ان قال) ويدعوا الامام بعد فجر و عصر لحضور الملئكة فيهما فيؤمنون على الدعاء فيكون اقرب للاجابة وكذا يدعو بعد غيرهما من الصلوات لان من اوقات الاجابة ادبار المكتوبات (الى قوله) ويكره للامام استقبال القبلة بل يستقبل المأمومين لما تقدم انه ينحرف اليهم اذا سلم ويلح الداعى فى الدعاء ويكرره ثلاثًا لانه نوع من الالحاح والدعاء سرًا افضل منه جهرًا لقوله تعالى اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً لانه اقرب الى الاخلاص قال يكره رفع الصوت به فى الصلوة وغيرها الا الحاج فان رفع الصوت له افضل لحديث افضل الحج العج والثج. (امداد الفتاوى ج۱، ص۵۷۰)

له پورتني روايتونو او عباراتو څخه لاندينى خبرې ثابتې شوې:

۱ - تر فرائضو وروسته دُعاگانې او ذکرونه له ډيرو صريحو او صحيحو روايتونو څخه ثابت دي حضرات فقهاء کرام رحمهم الله فرمايي چه په ماسپښين، ماښام او ماسخوتن کښې دې امام تر سلام گرځولو وروسته بايد د سنتو لپاره ودريږي، ځنډ پکښې مکروه دی، د دوی په نزد د نومورې روايت دوه توجيهه دي:

---

۱ - د عبارت له سياق څخه ثابتيږي چه دلته د اواماما لفظ پاتې شوی دی. ۱۲ منه.

۱- دا روایتونه د سهار او مازدیگر په اړه دي.

۲- تر فرائضو وروسته د سننو او نوافلو حکم د فرائضو د جبرِ نقصان لپاره دی څکه دا په فرائضو پورې ملحق دي. لهذا له دبر المکتوبات څخه سره له ملحقاتو مراد دی. یعنې ت سنتونو او نوافلو وروسته وخت کښې.

په هر صورت تر فرائضو وروسته د ذکر او دُعاء په اړه دومره روایتونه دي چه د هغو د انکار هیڅ گنجائش نشته.

۲- په دُعاء وروسته تر فرضو کښې د لاسونو پورته کول هم ثابت دي. اگر که په دې اړه ځینو روایتونو کښې ضعف شته لیکن لومړی خو په فضائلو کښې عمل په ضعیف سره هم جائز دی. دویم دې ته له نورو روایتونو څخه اعتضاد حاصل دی، دریم په مطلق دعاء کښې د لاسونو پورته کول له صحیحو احادیثو څخه ثابت دي او په کلیه کښې له فرائضو وروسته دعاء هم داخله ده. «له دې څخه د رجوع تفصیل په ضمیمه کښې دی»

۳- تر فرائضو وروسته په دعاء کښې د لاسونو په پورته کوونکي او نه پورته کوونکي باندې په یوه هم اعتراض او همدارنگه ملامتول ئې جائز نه دي. «العبارة الرابعة»

٤- په ماسپښین، ماښام او ماسخوتن کښې دې امام له فرائضو څخه تر سلام وروسته د سنتو لپاره ودریږي. له اللّٰهم انت السلام الخ څخه زیات تاخیر مکروه دی.

۵- په دعاء کښې اخفاء په اتفاق سره زیات بهتر دی او په دې صورت کښې د قبلیده هیله زیاته موجوده ده.

٦- مسنونه طریقه دا ده چه امام د مقتدیانو په موجودوالي کښې «انفراداً» لنډه دعا وکړي چه کله مقتدیان لاړ شي نو اوږده دُعاء کولی شي. «العبارة الثامنة»

لیکن نن صبا معامله برعکس ده. د مقتدیانو په مخکښې خو ډیرې اوږدې اوږدې دعاگانې کوي لیکن چون بخلوت میروند؟

۷- په دعاء کښې د امام او مقتدیانو پخپل منځ کښې د تعلق درلودلو اگر که په پټه سره هم وي د هیڅ یوه حدیث له مخې ثبوت نشته.

۸- له امام سره یو ځای د دعاء کولو رواج که په پټه سره وي او که په جهر سره بدعت دی. کوم چه د علم د قلّت او د جهل د کثرت له مخې پیدا شوی دی او دا د جهالو افراط دی. «العبارة الرابعة و الخامسة»

۹ - که چیرته امام په دې نیت سره جهراً دعاء کوي چه خلک د هغه کلمات واوري او یاد ئې کړي نو په دې کښې څه حرج نشته، چه کله خلک دُعاء یاده کړي نو بیا جهر بدعت دی. «العبارة الاولی و الثانیة»

۱۰- ځینو مالکي علماوو تر فرضو وروسته له امام سره یو ځای اجتماعي دُعاء ته په دې شرط جائز ویلي دي چه د لمانځه له سنتو او فضائلو ئې څخه و نه ګڼي، که چیرته ئې د لمانځه له سنتو او فضائلو څخه وګڼل شي نو په اتفاق سره ناجائز دي. «العبارة السادسة»

دا روایت پخپله د مذهب د خاوند امام مالک او د ده د اصحابو رحمهم الله تعالی د دې نص په خلاف دی چه امام کله له لمانځه نه فارغ شي نو فوراً دې له خپل ځایه لرې شي. «المدونة ج۱. ص۱٤٤، الاعتصام للشاطبي ج۱، ص۳۵۳/۳۵٤»

۱۱- د شافعیه وو په نزد د امام په جهر سره دعاء کول د سنتو خلاف دی، البته که چیرته مقتدیانو ته د تعلیم او تامین مقصد وي نو جائز دی. په دې شرط چه د سنت ګڼلو ویره پکښې نه وي. «العبارة السادسة و السابعة»

له دریم او نهم عبارت څخه په دعاء کښې د امام او مقتدیانو پخپل منځ کښې رابطه ساتل نه ثابتیږي.

## د مروجې دُعاء تجزیه

۱- عوام ئې د لمانځه له سنتونو څخه ګڼي.

۲- د دې دعاء دومره التزام شروع شوی دی چه څوک ئې و نه کړي نو هغه د ملامت هدف جوړیږي. که چیرته امام په دې طریقې سره دُعا و نه کړي نو له امامت څخه ئې باسي.

۳- د اخفاء په فضیلت باندې د اجماع تر څنګ په جهر باندې اصرار کیږي.

د دغو وجوهاتو پر بناء تر لمونځونو وروسته په جوماتونو کښې باید د دُعاء مروجې طریقې له منځه یووړل شي او علماء دې باید دې ته زیاته توجه ورکړي. شافعیه او مالکیه وو چه د کومو ځینو شرائطو اجازه ورکړې ده ښکاره ده چه هغه هم په **بالسلامة من القبائح المذکورة** پورې مقید دی. د التزام له وجې خو مندوب او مستحب کار هم واجب الترک ګرځي دا خو پریږده چه د هغه هیڅ ثبوت هم نه وي او بیا د لمانځه له اړوندو کارونو څخه وشمیرل شي. د دې لپاره د جوماتونو په امامانو باندې لازمه ده چه د جهر رواج خو په کلي توګه له منځه یوسي او په اجتماعي توګه د پټې دُعاء په اړه هم مقتدیانو ته دا تبلیغ وکړي چه دا طریقه له سنتو څخه ثابته نه ده ځکه د دې ډیر باید ډیر اهتمام و نه کړی بلکه ائمه حضرات کله کله په عملي توګه هم اجتماعي دعاء کله کله پریږدي تر څو چه د عوامو له ذهن څخه د دې طریقې سنت والی ووځي. لیکن تر عملي اقدام

مخکښې باید په ښې طریقې سره د ملاطفت او نرمی. له مخې خلک د دې مسئلې په حقیقت باندې پوه کړی او ښه ئې په ذهن کښې کښېنوی تر څو چه د انتشار او فتنې صورت پیدا نه شي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۹ جمادی الاولیٰ ۱۳۹۶ هجری

**الحاق:**

له لاندینې روایاتو څخه د اجتماعي دُعاء د ثبوت اشتباه کیدلی شي

۱- من آداب الدعاء تأمین الداعی والمستمع. خ، م، د، س، (حصن حصین ص۵)

۲- قوله تعالیٰ (قَدْ أُجِيبَتْ دَعْوَتُكُمَا) لاندې د تفسیر په کتابونو کښې دي چه حضرت موسیٰ علیه السلام دعاء کوله او حضرت هارون علیه السلام آمین وایه.

۳- حضرت سعد بن ابي وقاص او حضرت عبد الله بن حجش ﷺ د احد په غزا کښې داسې دُعاء وغوښتله چه اول یوه صحابي دعاء وکړه او بل آمین ووایه، بیا دویم صحابي دُعاء وکړه او اول صحابي آمین ووایه.

۴- لا یجتمع ملأ فیدعو بعضهم ویؤمن بعض الا اجابهم الله (تلخیص الذهبی مع المستدرک ج۲، ص۳۴۷)

دا روایتونه د لمانځه نه وروسته دُعاء پورې کوم تړاو نه لري. دا ټول په هغه صورت پورې اړه لري چه کوم سړی په اتفاقي توګه دُعاء کوي او بل سړی ئې واوري نو هغه آمین پرې ووائي. تر لمانځه وروسته د هر سړي لپاره خو د دعاء موقع شته، بیا د هر یوه مقصد جلا وي، هرِ سړی د خپل مقصد لپاره په دُعاء کښې مشغول وي نو د بل په دعاء باندې به آمین څنګه وائي؟

نبي کریم ﷺ هره ورځ پنځه ځلې په ښکاره توګه د جماعت لمونځ ادا کاوه. که چیرته ده مبارک ﷺ تر لمانځه وروسته کله هم اجتماعي دُعاء کړې نو کوم متنفس خو به را نقل کړی وای لیکن د حدیثو په ذخیره کښې د دې هیڅ نښه نه لیدل کیږي. که چیرته د دې مستحب والی هم و منل شي نو التزام خو په هر صورت بدعت دی. وفقنا الله الجمیع لما یحب ویرضی.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۰ ربیع الاول ۱۴۰۴ هجری

(ضمیمه په تتمه کښې ده)

# باب القرائت و التجوید

## په قرائت کښې چه د اداء د صحیح والي کوشش و نه کړي نو لمونځ نه کیږي

**سوال** : څه فرمائي د دین علماء په دې باره کښې چه یو سړی په لمانځه کښې قرآنکریم غلط وائي، په اعراب (زور، زیر، پیښ) کښې ډیرې غلطۍ کوي، د پوهولو تر څنګ خپل قرائت نه اصلاح کوي بلکه دا وائي چه دا ډول معمولي غلطۍ د لمانځه مفسد نه دي. د داسې سړي په اقتداء کښې لمونځ جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د اعرابو غلطي اګر که د متاخرینو په نزد د لمانځه مفسد نه دی لیکن د بې احتیاطي او بې پرواهي له مخې د قرآنکریم غلط لوستل سخته ګناه ده. **قال الله تعالیٰ :** ((وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا)) . وقال العلامة الجزری والاخذ بالتجوید حتم لازم، من لم یجود القرآن اثم. چه کوم سړی د قرآنکریم د حرکاتو او حروفو امتیازاو فق ضروري نه بلي د هغه په خیال کښې د قرآنکریم اعراب او متشابهة الصوت الفاظو تعدّد بې فائدې او باطل دی. **وقال الله تعالیٰ :** ((لَا يَأْتِيْهِ الْبَاطِلُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهٖ تَنْزِيْلٌ مِّنْ حَكِيْمٍ حَمِيْدٍ)).

الثغ : (هغه څوک چه ژبه ئې بندیږي) که چیرته د اداء د صحت کوشش و نه کړي نو لمونځ ئې صحیح نه دی.

قال فی شرح التنویر وحرّر الحلبی وابن الشحنة انه بعد بذل جهده دائماً حتماً کالامی فلا یؤم الا مثله ولا تصح صلوته اذا امکنه الاقتداء بمن یحسنه او ترک جهده الخ. وفی الشامیة (قوله دائماً) ای فی اٰناء اللیل واطراف النهار فما دام فی التصحیح والتعلّم ولم یقدر علیه فصلوته جائزة و ان ترک جهده فصلوته فاسدة کما فی المحیط و غیره الخ (ردالمحتار ج۱، ص۵۴۴)

چه کله د کوشش د نه کولو په صورت کښې د الثغ لمونځ فاسد دی په داسې حال کښې چه دی معذور هم دی، نو یو داسې څوک چه معذور نه وي او د اداء د صحیح والي کوشش نه کوي بلکه بې پرواهي پکښې کوي نو د هغه لمونځ خو په طریقهٔ اولی سره نه صحیح کیږي. غرض دا چه که چیرته کله په اتفاقي توګه په اعرابو کښې غلطي وشي نو لمونځ نه فاسدیږي او که چیرته د بې احتیاطۍ او بې پرواهۍ له وجې قرآنکریم غلط وائي او د صحیح اداء کولو کوشش نه کوي نو لمونځ ئې نه صحیح کیږي.

## د فرض قرائت اندازه

**سوال:** د فرض قرائت تر ټولو کمه درجه چه په هغې سره لمونځ صحيح کيږي څومره ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ځينو د اتلسو حروفو قول را نقل کړی دی. ليکن احتياط په دې کښې دی چه ديرش حروفه وي.

قال العلاء وفرض القراءة اٰية على المذهب هى لغة العلامة وعرفا طائفة من القراٰن مترجمة اقلّها ستة احرف ولو تقديراً کَلَمۡ يَلِدۡ الا اذا كانت كلمة فالاصح عدم الصحة وان كرّرها مراراً (الى قوله) قرأاٰية طويلة فى الركعتين فالاصح الصحة اتفاقاً لانه يزيد على ثلاث اٰيات قِصار. قال فى الشامية (قوله فالاصح عدم الصحّة) كذا فى المنية وهو شامل لمثل مُدۡهَآمَّتَانِ ومثل صٓ وقٓ ونٓ لكن ذكر فى الحلية والبحر ان الذى مشى عليه الاسبيجابى فى الجامع الصغير وشرح الطحاوى وصاحب البدائع الجواز فى مُدۡهَآمَّتَانِ عنده من غير حكاية خلاف. (قوله لانّه يزيد على ثلاث اٰيات) تعليل للمذهبين لانّ نصف الاٰية الطويلة اذا كان يزيد على ثلاث اٰيات قصار يصحّ على قولهما فعلى قول ابى حنيفة المكتفى بالاٰية اولیٰ ح قال فى البحر وعلم من تعليلهم ان كون المقروء فى كلّ ركعة النصف ليس بشرط بل ان يكون البعض يبلغ ما يعد بقراءته قارئاً عرفاً. وايضا فيها لكن التعليل الاخير ربما يفيد اعتبار العدد فى الكلمات او الحروف (الى قوله) كقوله تعالىٰ: ثُمَّ نَظَرَ ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ ثُمَّ اَدۡبَرَ وَاسۡتَكۡبَرَ وقدرها من حيث الكلمات عشر [1] ومن حيث الحروف ثلاثون. (ردالمحتار ج۱، ص۵۰۲)

وفى واجبات الصّلوٰة من الشرح وضم اقصر سورة كالكوثر او ما قام مقامها وهو ثلاث اٰيات قصار نحو ثُمَّ نَظَرَ ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ ثُمَّ اَدۡبَرَ وَاسۡتَكۡبَرَ وكذا لو كانت الاٰية او الاٰيتان تعدل ثلاثاً قِصاراً. وفى الشامية اى مثل ثُمَّ نَظَرَ الخ وهى ثلاثون حرفاً فلو قرأ اٰية طويلة قدر ثلاثين حرفاً كون قد اتى بقدر ثلاث اٰيات لكن سيأتى فى فصل يجهر الامام ان فرض القراءة اٰية وانّ الاٰية عرفاً طائفة من القراٰن مترجمة اقلّها ستة احرف ولو تقديراً کَلَمۡ يَلِدۡ الّا اذا كانت كلمة فالاصح عدم الصحّة ومقتضاه انّه لو قرأ اٰية طويلة قدر ثمانية عشر حرفاً يكون قد اتى بقدر ثلاث اٰيات متوالية على النظم القراٰنى مثل ثُمَّ نَظَرَ الخ ولا يوجد ثلاث متوالية اقصر منها الخ. (رد المحتار ج۱، ص۴۲۶)

---

۱. لس كلمات ضروری نه دي بلکې ديرش حروفه کافي دي. كما فى الشامية فى بيان كراهة اطالة الركعة الثانية على الاولىٰ فالمعتبر عدد الحروف لا الكلمات. ۱۲منه

و قال الرافعي المتبادر من قوله ثلاثاً قصاراً الاکتفاء بقدر الثلاث من الأية او الأيتين و ان لم تكن الثلاث على ترتيب النظم القرأني و اشتراط ذلك لا تدل عليه عبارة الحلبي اذ قوله تعدل ثلاث أيات قصار شامل اما اذا كانت على الوجه المشروع بان تكون متوالية اولا و اثباته لابدّ له من دليل فمع عدم وجوده يعمل باطلاق عبارة الحلبي من الاکتفاء بالأية التي بلغت ثمانية عشر حرفاً لاقامة واجب القراءة. (التحرير المختار ج۱، ص۷۵) فقط والله تعالى اعلم ۲۵ شعبان ۱۳۷۴ ھجری

## د فرض په دوو آخري رکعتونو کښې سورة فاتحه واجبه نه ده

**سوال**: د فرض لمانځه په آخري دوو رکعتونو کښې که چیرته سورت فاتحه و نه ویل شي نو لمونځ کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: لمونځ کیږي. د فرضو په آخري دوه رکعتونو کښې د سورة فاتحه لوستل مستحب دي، ضروري نه دی. یوائې د یوې تسبیح اندازه دریدل کافي دي.

قال في شرح التنوير و هو مخيّر بين قراءة الفاتحة و صحّح العيني وجوبها و تسبيح ثلاثاً و سكوت قدرها و في النهاية قدر تسبيحة فلا يكون مسيئا بالسكوت على المذهب لثبوت التخيير عن علىّ و ابن مسعود رضى الله تعالى عنهما و هو الصارف للمواظبة عن الوجوب و في الشامية تحت قوله (و صحح العيني وجوبها) لكن الاصحّ عدمهٔ (قوله و في النهاية قدر تسبيحة) و هو اليق بالاصول حلية اى لان ركن القيام يحصل بها لما مرّ ان الركنية تتعلّق بالادنى. (ردالمحتار ج۱، ص۴۷۷) فقط والله تعالى اعلم ۱۴ ربیع الاوّل ۱۳۷۶ ھجری

## مسنون قرائت

**سوال**: خالد وائي چه کوم خلک په لمانځه کښې د طوال مفصل، قصار مفصل او اوساط مفصل څخه پرته د سورتونو څه حصې تلاوت کوي د هغوی لمونځونه د سنتو په خلاف وي، لکه څرنګه چه د سورتونو څه حصې تلاوت کول له نبي کريم ﷺ څخه ثابت نه دي. له دې امله د دوی لمونځونه د سنتو په خلاف دي. زید وائي چه له رسول الله ﷺ څخه د اجزاء السور تلاوت کول ثابت دي د مشکوة شریف په باب القرائت کښې راغلي دي او علامه قاضي خان هم له اجزاء السور څخه تلاوت له نبي کريم ﷺ څخه ثابت کړي د، کوم کار چه له نبي کريم ﷺ څخه ثابت وي هغه ته خلاف سنت ویل ناپوهي یا عناد دی. نن صبا علماء او نور خلک په عامه توګه لیدل کیږي چه د طوالو، اوساطو او قصارو پابندي نه کوي. آیا دا ټول حضرات لمونځونه د سنتو په خلاف ادا کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: قال في شرح التنوير و يسن (في الحضر) لامام و منفرد ذكره الحلبي و الناس

عنه غافلون. (طوال المفصل) من الحجرات الى اٰخر البروج (فى الفجر والظهر) منها الى اٰخر لم يكن (اوساطه فى العصر والعشاء و) باقيه (قصاره فى المغرب) اى فى كل ركعة سورة مما ذكر، ذكره الحلبى، وقال ابن عابدين رحمه الله: اى من الطوال والاوساط والقصار ومقتضاه انه لا نظر الى مقدار معين من حيث عدد الاٰيات مع انه ذكر فى النهر ان القراءة من المفصّل سنة والمقدار المعيّن سنة اخرٰى ثم قال وفى الجامع الصغير يقرأ فى الفجر فى الركعتين سورة الفاتحة وقدر اربعين او خمسين واقتصر فى الاصل على الاربعين وفى المجرد ما بين الستين الى المائة والكل ثابت من فعله عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام ويقرأ فى العصر والعشاء خمسة عشر فى الركعتين فى ظاهر الرواية كذا فى شرح الجامع لقاضى خان وجزم به فى الخلاصة وفى المحيط وغيره يقرأ عشرين وفى المغرب خمس اٰيات فى كل ركعة اٰه. اقول كون المقروء من سور المفصّل على الوجه الذى ذكره المصنّف هو المذكور فى المتون كالقدورى والكنز والمجمع والوقاية والنقاية وغيرها وحصر المقروء بعدد على ما ذكره فى النهر والبحر مما علمته مخالف لما فى المتون من بعض الوجوه كما نبّه عليه فى الحلية فانه لو قرأ فى الفجر او الظهر سورتين من طوال المفصّل تزيدان على مائة اٰية كالرحمٰن والواقعة او قرأ فى العصر او العشاء سورتين من اوساط المفصّل تزيدان على عشرين او ثلاثين اٰية كالغاشية والفجر يكون ذٰلك موافقاً للسنّة على ما فى المتون لا على الرواية الثانية ولا تحصل الموافقة بين الروايتين الا اذا كانت السورتان موافقة للعدد المذكور ويلزم على ما مرّ عن النهر من ان المقدار المعيّن سنة اخرٰى ان تكون قراءة السورتين الزائدتين على ذٰلك المقدار خارجة عن السنة الا ان يقتصر من كل سورة منهما على ذٰلك المقدار مع انهم صرحوا بان الافضل فى كل ركعة الفاتحة وسورة تامة فالذى ينبغى المصير اليه انهما روايتان متخالفتان اختار اصحاب المتون احداهما ويؤيده انه فى متن الملتقى ذكر اوّلاً ان السنة فى الفجر حضرا اربعون اٰية او ستون ثم قال واستحسنوا طوال المفصل فيها وفى الظهر الخ فذكر ان الثانى استحسان فيترجح على الرواية الاولىٰ لتأيده بالاثر الوارد عن عمر رضي الله عنه انه كتب الى ابى موسى الاشعرى رضي الله عنه ان اقرأ فى الفجر والظهر بطوال المفصل وفى العصر والعشاء باوساط المفصل وفى المغرب بقصار المفصل قال فى الكافى وهو كالمروى عن النبى صلى الله عليه وسلم لان المقادير لا تعرف الا سماعاً اٰه. (ردالمحتار ج۱، ص۵۰۵)

له مذکوره تحقیق څخه ثابته شوه چه د قرائت د سنیّت په اړه دوه روایتونه راغلي دي په یوه کښې ئې د آیتونو تاکل شوی تعداد سنت ګڼلی دی او په بل کښې ئې مفصل سورتونه په نهر کښې ئې د تطبیق صورت دا بیان کړی دی چه له مفصلو سورتونو څخه د آیتونو ټاکلی تعداد مسنون دی، علامه شامي په دې باندې نیوکه ښکاره کړې ده او دې خبرې ته ئې ترجیح ورکړې ده

چه دا دواړه مستقل روایتونه دي او د مفصلو سورتونو روایت د عامو متونو روایت دی او همدغه راجح دی.

بیا په دې کښې دا تفصیل دی چه پوره سورت تلاوت کول بهتر دی او که څوک وغواړي چه د سورت کومه برخه تلاوت کړي نو د سورت له آخر څخه دې وائي. د سورت د آخرې برخې پرېښودل مکروه تنزيهي دی. غرض دا چه مفصل سورت ويل سنت دي، د دې په خلاف چه کوم عادت جوړ شوی دی هغه صحيح نه دی. په خانيه او منيه کښې د مفصل سورت قرائت مستحب والی راغلی دی. لیکن علامه حلبي رحمه الله فرمايي چه دلته له استحباب څخه مراد سنت دی. او که فرضاً استحباب هم وي نو ترک ئې مکروه تنزيهي بللی دی. د سنتو يا استحبابو پرېښودل او د تنزيهي کراهت ارتکاب په ځانګړې توګه په دې باندې دوام او اصرار کول د اصلاح وړ خبره ده. د مفصلو سورتونو څخه پرته چه چیرته په کوم ځای کښې د کوم سورت ثبوت پیدا کیږي هغه احياناً د حال په مقتضاء باندې مبني دی.

قال ابن عابدين رحمة الله عليه (قوله واختار في البحر عدم التقدير الخ) والظاهر ان المراد عدم التقدير بمقدار معين لكل احد وفي كل وقت كما يفيده تمام العبارة بل تارة يقتصر على ما ورد كاقصر سورة من طوال المفصل في الفجر او اقصر سورة من قصاره عند ضيق وقت او نحوه من الاعذار لانه عَلَيْهِ الصَّلاةُ وَالسَّلام قرأ في الفجر با لمعوذتين لما سمع بكاء صبي خشية ان يشق على امه وتارة يقرأ اكثر ما ورد اذا لم يمل القوم فليس المراد الغاء الوارد ولو بلا عذر ولذا قال في البحر عن البدائع والجملة فيه انه ينبغي للامام ان يقرأ مقدار ما يخف على القوم ولا يثقل عليهم بعد ان يكون على التمام وكذا في الخلاصة اه. (رد المحتار ج۱،ص۵۰۵)

فقط والله تعالى اعلم ٨ محرم ١٣٨٤ هجری

## د فرض په لومړيو دوه رکعتونو کښې که چیرته سورت و نه ويل شي نو په اخري دوه رکعتونو کښې ئې ويل مستحب دي

**سوال** څه فرمائي مفتيان کرام د دې مسئلې په باره کښې چه که چيرته د فرض په دوه اولنيو رکعتونو کښې له سورۀ فاتحه سره بل سورت يو ځای نه شي نو په آخرنيو دوه کښې ئې د لوستلو درجه څه ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** که چیرته په لومړيو دوه رکعتونو او يا په يوه رکعت کښې په هيره سره سورت ونه وائي نو په دواړو آخرنيو اويا په يوه رکعت کښې دسورت يو ځای کول مستحب دي

قال في الدر ولو ترك سورة اوليي العشاء مثلاً ولو عمداً قرأها وجوباً وقيل ندباً مع الفاتحة جهراً في الاخريين و

فی الشامیة (قوله ولو عمداً) هذا ظاهر اطلاق المتون وبه صرح فی النهر ولم ..... الی احد وكأنه اخذه من الاطلاق والا فصنيع الفتاوٰی والشروح يقتضی ان وضع المسألة فی النسيان تأمل افاده الخير الرملی، وقال تحت (قوله وجوباً وقيل ندباً) والحاصل ان اختيار صاحب الفتح والبحر والنهر الندب لانه صريح كلام محمد. (رد المحتار ج۱، ص۵۰۰) فقط والله تعالٰی اعلم ۱۸ ربيع الاول ۱۳۸۶ هجری

## د سورۀ فاتحه او بل سورت تر منځ د بسم الله ويل بهتر دي

**سوال**: د سورت په شروع کښې د بسم الله ويل مستحب دي او که نه؟ په بهشتي زيور کښې ئې د بسم الله ويلو ته ترجيح ورکړی دی او په مستخلص کښې ئې نه ويلو ته ترجيح ورکړی دی. عبارت دا دی.

واما عند رأس كل سورة فلا يأتی به فی الصلوٰة عند ابی حنيفة وابی يوسف رحمهما الله تعالٰی وقال محمد رحمه الله تعالٰی يأتی بها احتياطاً والصحيح قولهما. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په سنت والي کښې ئې اختلاف دی او نه سنت والی ئې راجح دی ليکن په بهتري کښې ئې هيڅ اختلاف نشته. لهذا د بهشتي زيور مسئله صحيح ده.

قال فی شرح التنوير لا تسن بين الفاتحة والسورة مطلقاً ولو سرّية ولا تكره اتفاقاً وفی الشامية (قوله لا تسن) مقتضی كلام المتن ان يقال لا يسمّی لكنّه عدل عنه لايهامه الكراهة بخلاف نفی السنّيّة ثم ان هٰذا قولهما وصححه فی البدائع وقال محمد تسن ان خافت لا ان جهر بحر ونسب ابن الضياء فی شرح الغزنوية الاوّل الی ابی يوسف فقط فقال وهٰذا قول ابی يوسف وذكر فی المصفٰی ان الفتوٰی علی قول ابی يوسف انه يسمّی فی اوّل كل ركعة ويخفيها وذكر فی المحيط المختار قول محمد وهو ان يسمّی قبل الفاتحة وقبل كل سورة وفی كل ركعة وفی رواية الحسن ابن زياد انه يسمی فی الركعة الاولٰی لا غيره وانما اختير قول ابی يوسف لان لفظة الفتوٰی آكد وابلغ من لفظة المختار ولان قول ابی يوسف وسط وخير الامور اوسطها كذا فی شرح عمدة المصلّی آه. ما فی شرح الغزنوية ووقع فی النهر هنا خطأ وخلل فی النقل ايضاً عن شرح الغزنويّة فاجتنبه فافهم (قوله ولا تكره اتفاقاً) ولهذا صرّح فی الذخيرة والمجتبٰی بانه ان سمی بين الفاتحة والسورة المقروءة سراً او جهراً كان حسناً عند ابی حنيفة رحمه الله عليه ورجحه المحقق ابن الهمام وتلميذه الحلبی لشبهة الاختلاف فی كونها اٰية من كل سورة. بحر (رد المحتار ج۱، ص۴۵۸) فقط والله تعالٰی اعلم ۸ ربيع الاول ۱۳۸۷ هجری

## په قرائت کښې د غږ د لوړ والي اندازه

**سوال**: په بهشتي زيور کښې دي چه که په لمانځه کښې الحمد لله او سورت په دومره ټيټ آواز سره وويل شي چه خپل آواز څوک وا نه وري نو لمونځ ئې نه کيږي. نو آيا دومره په زوره لمونځ کول چه خپل غږ واوريدل شي فرض دی او که واجب. که چيرته ئې په غلطۍ سره ټيټ يا سو که ووائي نو آيا په سجدهٔ سهو سره لمونځ صحيح کيږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا يو قول دی. دويم قول دا دی چه که چيرته له خولې څخه حروف صحيح را ووځي نو لمونځ کيږي اگر که ئې پخپله وا نه وريدلی شي. په لومړي قول باندې له عمل کولو څخه اکثره وهم پيدا کيږي او اکثره خلک د همدې وهم له وجې په زوره زوره لمونځ کوي چه له وجې ئې د نورو خلکو په لمونځونو کښې خلل پيدا کيږي. د دې لپاره زما په خيال په دويم قول باندې بايد عمل وشي فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۵ ذی قعده ۱۳۹۸ هجری

## په دواړو رکعتونو کښې يو سورت ويل

**سوال**: که چيرته په اول او دويم رکعت دواړو کښې سورت اخلاص وويل شي نو لمونځ مکروه کيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په فرائضو کښې په قصد سره داسې کول مکروه تنزيهي دي او په نوافلو کښې کوم کراهت نشته.

قال فی العلائية لا بأس ان يقرأ سورة ويعيدها فی الثانية وفی الشامية افاد انه يكره تنزيها. (ردالمحتار ج۱، ص۵۱۰) وفی العلائية ولا يكره فی النفل شیء من ذلك. (ردالمحتار ج۱، ص۵۱۱) فقط والله تعالیٰ اعلم

۲۷ شعبان ۱۳۸۸ هجری

## په يوه رکعت کښې دوه سورتونه ويل

**سوال**: د فرض لمانځه په لومړي يا دويم رکعت کښې د دوه سورتونو ويل جائز دي او که نه؟ که چيرته قصداً يا سهواً وويل شي نو سجدهٔ سهو واجبيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د فرض لمانځه په يوه رکعت کښې دوه سورتونه يو ځای کول او ويل د اولی خلاف دی او د دوه سورتونو په منځ کښې يو يا زيات سورتونه پريښودل مکروه دي. البته په نوافلو کښې کوم کراهت نشته.

که چيرته دوه سورتونه په قصد سره ووائي يا په سهو سره سجدهٔ سهو پرې نه واجبيږي قال ابن عابدين رحمه الله تعالیٰ تحت (قوله و يكره الفصل بسورة قصيرة) و هذا لو فی رکعتين اما فی رکعة فيكره الجمع بين

سورتين بينهما سُوَرٌ او سورة (فتح) وفي التاتارخانية اذا جمع بين سورتين في ركعة رأيت في موضع انه لا بأس به وذكر شيخ الاسلام لا ينبغي له ان يفعل على ما هو ظاهر الرواية آه. وفي شرح المنية الاولى ان لا يفعل في الفرض. ولو فعل لا يكره الا ان يترك بينهما سورة او اكثر. (ردالمحتار ج۱، ص۵۱۰)

فقط والله تعالى اعلم ۳ شعبان ۹۲ سـ ـهجرى

## يو سورت په دوه ركعتونو كښې د ويلو حكم

**سوال**: كه چيرته په يوه ركعت كښې نيم سورت وويل شي او په دويم ركعت كښې پاتې نيمائي وويل شي نو په دې كښې كوم كراهت شته او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له كراهت پرته جائز دى. البته په منځ كښې د يوه آيت پرېښودل مكروه دي. د دوه يا زياتو آيتونو په پرېښودلو كښې كراهت نشته ليكن د اولى خلاف دى.

قال في شرح التنوير لا بأس ان يقرأ سورة ويعيدها في الثانية وان يقرأ في الاولى من محل وفي الثانية من من اٰخر ولو من سورة ان كان بينهما اٰيتان فاكثر. وقال ابن عابدين رحمه الله قال في النهر وينبغي ان يقرأ في الركعتين اٰخر سورة واحدة لا اٰخر سورتين آه. (قوله ولو من سورة الخ) واصل بما قبله اى لو قرأ من محلين بان انتقل من اٰية الى اخرى من سورة واحدة لا يكره اذا كان بينهما اٰيتان فاكثر لكن الاولى ان لا يفعل بلا ضرورة لانه يوهم الاعراض والترجيح بلا مرجح، شرح المنية وانما فرض المسألة في الركعتين. (ردالمحتار ج۱، ص۵۱۰)

فقط والله تعالى اعلم ۱۷ صفر ۹۹ سـ ـهجرى

## د فاتحه خلف الامام، په زوره آمين ويل او د لاسونو په پورته كولو كښې د مذهب د امامانو تفصيل

**سوال**: امام شافعي، امام احمد او امام مالک يعنې درې ګوني امامان رحمهم الله تعالى د امام شا ته د سورت فاتحه دويلو قائل وو او كه نه. رفع يدين او آمين ئې په زوره وايه او كه نه او د كوم امام په نزد دا جائز دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د امام اعظم، امام مالک او امام احمد رحمهم الله په نزد په جهري لمانځه كښې قرائت خلف الامام جائز نه دى. البته په سرّي (پټ لمانځه) كښې د امام مالک او امام احمد په نزد مستحب دى. په ائمه اربعه وو كښې يواځې امام شافعي رحمه الله د دې قائل دى چه په سرّي لمانځه كښې قرائت خلف الامام واجب دى. په جهري لمانځه كښې هغه هم له قرائت څخه منع كوله. شوافع وائي چه "امام شافعي رحمه الله په آخر عمر كښې په جهر لمانځه كښې هم د قرائت خلف الامام په وجوب باندې قائل شوى وو" ليكن لومړى دا فيصل كول مشكل دي چه د ده آخري قول

څه دی؟ ده په کتاب الام کښې له دې څخه منع فرمايلې ده. دا کتاب څېنو په قديمي کتابونو کښې شمار کړی دی ليکن صحيح دا ده چه کتاب الام د ده له نوي کتابونو څخه دی كما صرح به السيوطي في حسن المحاضرة ج۱،ص۱۲۲، والحافظ ابن كثير في البداية والنهاية ج۱،ص۲۵۲ دويم که چيرته د منع کولو قول مخکښينی يا قديم هم فرض کړی شي نو له دې څخه ئې رجوع د ايجاب په صورت کښې کړی دی او که د استحباب يا جواز په صورت کښې؟ درې واړه قولونه دي. غرض دا چه له امام شافعي رحمه الله څخه په جهري لمانځه کښې د فاتحه خلف الامام د وجوب کوم يقيني ثبوت نه پيدا کيږي. همدارنګه ده له امام سره د قرائت کولو اجازه نه ده ورکړې. بلکه د امام په سکته ګانو کښې د قرائت قائل دی. (مغنى لابن قدامة ج۱،ص۶۰۹/ تحفة الاحوذی ج۱،ص۲۵۷/فيض البارى ج۲،ص۲۷۱/تفسير ابن كثير ج۲،ص۲۸۰/ كتاب القراءة للبيهقى ص۷۱/ مختصر المزنى ج۱،ص۷۶/تنوع العبدات لابن تيمية ص۸۷/ فصل الخطاب للشيخ انور شاه).

**د آمين ويل**: د امام اعظم او امام مالک رحمهما الله تعالى په نزد پټ ويل ئې افضل دي او امام شافعي او احمد رحمهما الله په نزد جهراً ويل ئې مندوب دي. (فيض الباري ج۲. ص۲۹۱، فتح الملهم ج۲، ص۴۹)

همدارنګه د لاسونو پورته کول هم د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله تعالى په نزد مستحب دي او د امام اعظم او امام مالک رحمهما الله په نزد ئې نه پورته کول مستحب دي.

فقط والله تعالى اعلم ۲۹ ربيع الأخر ۹۳ هجری

## له ضرورت څخه په زيات لوړ آواز سره قرائت جائز دی

**سوال**: په لمانځه کښې جهري قرائت په ډير لوړ آواز سره شرعا صحيح دی او که نه او د دې آيت چه ﴿وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا﴾ څه مطلب دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له ضرورت څخه په زيات لوړ آواز باندې قرائت جائز دی. البته په جهر کښې تکلف کول يا دومره په لوړ آواز سره جهر کول چه په لمانځه کښې د تشويش سبب وګرځي يا چا ته پکښې ضرر وي ناجائز دی.

في الشامية تحت (قوله فان زاد عليه اساء) وفي الزاهدى عن ابى جعفر لو زاد على الحاجة فهو افضل الا اذا اجهد نفسه او اذى غيره. قهستانى (رد المحتار ج۱،ص۴۹۷)

د آيت شان نزول دا دی چه نبي کريم ﷺ په لوړ آواز سره قرائت کولو نو مشرکينو به واوريده او رد بد به ئې ويل په دې باندې دا حکم نازل شو چه په معتدل (درميانه) آواز سره قرائت وکړه چه يواځې ئې صحابهٔ کرام واوري او مشرکينو ته آواز و نه رسيږي، په دې سره مطلقاً په لوړ آواز سره

د قرائت ممانعت نه ثابتيږي فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۲ رجب ۱۳۹۴ هجری

## په (فَادْخُلِي فِي عِبَادِي) كښې چي (فِي) پاتې شي؟

**سوال**: امام صاحب په لمانځه كښې د فَادْخُلِي فِي عِبَادِي په ځاى فَادْخُلِي عِبَادِي ووايه. آيا په دې سره لمونځ فاسديږي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په معنىٰ كښې څو كوم فساد نه راځي د دې لپاره ئې لمونځ كيږي.

فانه يجوز حذف اداة الظرف لما في ادخلوا الجنة. فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۹ شعبان ۱۳۹۴ هجری

## چا ته چه كوم سورت ياد نه وي هغه به لمونځ څرنګه ادا كوي؟

**سوال**: كه چيرته چا ته يو آيت هم ياد نه وي نو هغه به څه كوي؟ حضرت مولانا مفتي كفايت الله رحمه الله د دې ځواب دا سې ليكلى دى چه سبحان الله والحمد لله دې د قرائت په ځاى ووائي او په زر نه زر په ده باندې د قرآن مجيد زدل كول او يادول فرض دي. د فرض قرائت په اندازه قرآنكريم يادول فرض او د واجب په اندازه واجب دى. او په نه زده كولو سره به سخت ګنهګار وي. د مفتي صاحب رحمه الله دا فتوىٰ صحيح ده او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د حضرت مفتي كفايت الله صاحب رحمه الله دا فتوىٰ صحيح ده.

**قال في الهندية وفي المبسوط الوبري والاخرس والأمي الذي لا يحسن شيئاً يصير شارعاً بالنية ولا يلزمه التحريك باللسان كذا في التبيين. (عالمگيرية ج۱، ص۶۹)**

په نوي مسلمان باندې د دې ډول لمونځونو بيرته را ګرځول واجب نه دي البته كه چيرته كوم مسلمان په داسې غفلت كښې ډوب پاتې شوى وي او اوس ئې د توبې توفيق پيدا كړى وي نو په مذكوره طريقې سره به فوراً لمونځ شروع كوي ليكن په اندازه دې ضرورت د قرآنكريم تر يادولو وروسته به دا لمونځونه بيرته را ګرځوي. فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۲ ربيع الاوّل ۱۳۹۶ هجری

## منفرد چه د جهري لمونځونو قضاءي اړوي نو په قرائت كښې د جهر اختيار لري

**سوال**: كه چيرته له چا څخه جهري لمونځ قضاء شوي وي اوس هغه سرى په ورځ كښې همدغه قضائي لمونځ منفرداً (يواځې) بيرته را ګرځول غواړي نو قرائت دې په زوره وائي او كه په پټه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: منفرد (يواځې لمونځ كوونكې) ته لكه څرنګه چه په جهري لمانځه

کښې د وخت په دننه کښې د جهر او اخفاء دواړو اختيار دی همدارنګه د جهري لمانځه په قضائي کښې هم د دې اختيار لري.

قال فى الدر المختار و يخافت المنفرد حتماً اى وجوباً ان قضى الجهرية فى وقت المخافتة كان صلّى العشاء بعد طلوع الشمس كذا ذكره المصنّف بعد عد الواجبات قلت و هكذا ذكره ابن الملك فى شرح المنار من بحث القضاء على الاصح كما فى الهداية لكن تعقبه غير واحد ورجّحوا تخييره كمن سبق بركعة من الجمعة فقام يقضيها يخير. (ردالمحتار ج۱،ص۴۹۸) فقط والله تعالیٰ اعلم غرۂ رجب ۱۳۹۷ هجری

## چه کله د جهري لمانځه قضائي د ورځې په جماعت سره راګرځوي نو جهر واجب دی

**سوال**: که چیرته د یوې ډلې جهري لمونځ قضاء شي، اوس ئې هغوی د ورځې په جماعت سره را ګرځوي نو امام به قرائت په زوره کوي او که په پټه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په نوموړي صورت کښې په امام باندې جهر واجب دی. قال فى التنوير و يجهر الامام فى الفجر و اولى العشاءين اداءً او قضاءً و جمعة و عيدين و تراويح و وتر بعدها. (ردالمحتار ج۱،ص۴۹۷) فقط والله تعالیٰ اعلم غرۂ رجب ۱۳۹۷ هجری

## د سهار په سنتو او وترو کښې د ټاکلي سورتونو د ويلو حکم

**سوال**: څه فرمائي د دين علماء کرام او د شرع متين مفتيانِ عظام د دې مسئلې په باره کښې چه په لمونځونو کښې ټاکل شوي سورتونو ويل لکه د سهار د سنتو په لومړي رکعت کښې سورۂ الکافرون او دويم رکعت کښې سورۂ اخلاص او د وترو په لومړي رکعت کښې سورۂ التکاثر او په دويم رکعت کښې سورۂ الکافرون او دريم رکعت کښې سورۂ اخلاص د تل لپاره ويل څنګه دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د سهار په سنتو کښې د سورۂ الکافرون او اخلاص او په وترو کښې سورۂ اعلی، کافرون او اخلاص ويل له نبي کريمﷺ څخه ثابت دي. د وترو په اول رکعت کښې د سورۂ تکاثر د تخصيص هيڅ وجه نشته. سره له دې که چيرته غير ماثوره سورت د سهولت په غرض سره يا سورۂ ماثوره د تبرّک په نيت سره غوره کړي نو په دې کښې هيڅ کراهت نشته ليکن دا به لازم نه ګڼي. او کله کله ئې ناغه کول بهتر دي. البته د وترو په امامت کښې په دغو سورتو باندې دوام مکروه دی. ځکه چه له دې څخه ناخبره سړي ته د وجوب شبهه ور لوېږي، د

دي لپاره د فرائضو په امامت کښې هم په کوم مخصوص سورت باندې همیشه والی مکروه دی

## په عوامو کښې په غیر معروف طریقې سره تلاوت جائز نه دی

**سوال**: څه فرمایي د دین علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې په یوه کلي کښې ناپوهه خلک ډیر دي او د هغو په مخکښې چه قرآن پاک څنګه لیکلی دی عین په هغه ډول ویل ئې صحیح ګڼي او که چیرته ئې له روایت سره مثلاً (قل هو الله احد ۔ الله الصمد) ووائي نو په امام باندې دا مقتدیان اعتراض کوي. په دې صورت کښې امام صاحب باید څه وکړي. آیا الله الصمد دې لکه څرنګه چه مشهور دی هغسې دې وائي او که په غیر معروف طریقې سره یعنې ن الله الصمد ئې هم ویلی شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په عوامو کښې په غیر معروف طریقې سره د قرآنکریم په ویلو کښې انتشار او بدګماني پیدا کیږي. نو ځکه جائز نه دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۱ شوال ۱۳۹۷ هجری

## په سورهٔ زلزال کښې د ((خیراً)) په ځای ((شَرّاً)) په ویلو سره لمونځ کیږي

**سوال**: په سورهٔ زلزال کښې چا د خیراً په ځای شَرّاً ووایه، وروسته ئې بیا خیراً ووایه نو آیا په دې سره سجدهٔ سهو واجبیږي او که نه؟ لمونځ ئې مات شوی دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په معنیٰ کښې کوم فساد نه راځي د دې لپاره لمونځ کیږي، سجدهٔ سهو نه ده واجبه.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۸ شوال ۱۳۹۷ هجری

## د جُمعې په ورځ د سهار په لمانځه کښې دسورهٔ سجده ویلو حکم

**سوال**: زید وایي چه د جُمعې په ورځ د سهار په لمانځه کښې په لومړي رکعت کښې سورهٔ سجده او په دویم رکعت کښې سورهٔ دهر ویل مستحب دي. عمرو وائي چه حنفي فقهاء کرامو دا مکروه لیکلی دی. په دوی دواړو کښې د کوم یوه خبره صحیح ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د جُمعې په ورځ د سهار په لمانځه کښې په لومړي رکعت کښې د سورهٔ سجده ویل او په دویم رکعت کښې د سورهٔ دهر ویل في نفسه مستحب دی لیکن په دې باندې همیشه والی مکروه دی، تر څو چه عوام ئې واجب و نه ګڼي. نن صبا د جوماتونو امامانو دا مستحب بالکل ترک کړی دی، دا غفلت دی. او اصلاح ئې لازمه ده.

قال فی الدر و یکره التعیین کالسجدة و هل اتٰی لفجر کل جمعة بل یندب قراءتهما احیاناً و قال ابن

عابدين رحمة الله عليه وفي فتح القدير لان مقتضى الدليل عدم المداومة لا المداومة على العدم كما يفعله حنفية العصر فيستحب ان يقرأ ذٰلك احياناً تبركاً بالمأثور فان لزوم الايهام ينتفي بالترك احياناً. (الى قوله) و قيد الطحاوي و الاسبيجابي الكراهة بما اذا رأى ذٰلك حتماً لا يجوز غيره اما لو قرأه للتيسير عليه او تبركاً بقراءته عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام فلا كراهة لكن بشرط ان يقرأ غيرها احياناً لئلا يظن الجاهل ان غيرها لا يجوز. (ردالمحتار ج۱، ص۵۰۸)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۳ ربيع الاول ۱۳۹۸ھجری

## آمين سوکه ويل بهتر دي

**سوال**: د جماعت په لمانځه کښې آمين بايد په لوړ آواز سره وويل شي او که په ټيټ آواز سره، په ابو داؤد او ابن ماجه کښې د (ابن کثير په حوالې سره) په لوړ آواز سره آمين ويل ثابت دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دواړه جائز دي ليکن سوکه ويل ئې بهتر دي. بهتري ئې له قرآنکريم او د حضرت شعبه رضي الله عنه له حديث څخه ثابته ده کوم چه په ترمذي شريف کښې دی. په قرآنکريم کښې ارشاد دی چه اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّ خُفْيَةً له دې څخه د دُعاء اخفاء ثابتيږي او آمين هم دُعاء ده. كما نقل الامام البخاري عن عطاء رحمهما الله تعالى، د شعبه رضي الله عنه حديث د قرآنکريم د آيت مطابق دی. له دې وجې دا بايد غوره شي. او په نورو حديثونو کښې د تطبيق په کولو سره هغو ته له قرآنکريم سره تطبيق ورکول کيږي.

فقط والله تعالىٰ اعلم ٤ ربيع الاول ۱۳۹۸ھجری

## د سورهٔ فاتحه په هر آيت باندې وقف افضل دی

**سوال**: يو مولوي صاحب وائي چه په لمانځه کښې چه کله سورهٔ فاتحه ويل کيږي نو په هر آيت باندې وقف کول مستحب او بهتر دي. يو بل مولوي صاحب وائي چه له وقف پرته په پرله پسې توګه ويل ئې مستحب دي. په دې دواړو کښې د کوم يوه قول صحيح دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د سورهٔ فاتحه په هر آيت باندې وقف کول بهتر دي.

عن ابن جريج عن ابن ابي مليكة عن أم سلمة رضي الله عنها قالت كان رسول الله ﷺ يقطع قراءته يقول الحمد لله رب العٰلمين ثم يقف ثم يقول الرّحمٰن الرحيم ثم يقف رواه الترمذي. (مشكوٰة ص۱۹۱/ شمائل ترمذی ص۵۲۲) و في كنز العمال عن ابي عثمان النهدي عن عمر بن الخطاب رضي الله عنه ان النبي ﷺ كان يقطع قراءته بسم الله الرحمٰن الرحيم، الحمد لله ربّ العٰلمين الى أخرها. السلفي في انتخاب حديث الفراء، و رجاله ثقات. (كنز العمال ج۸ ص۱۰۴)

له لاندي حديث څخه هم د دې فضيلت ثابتيږي. عن ابی هريرة رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم قال من صلّٰی صلوة لم يقرأ فيها بام القرآن فهی خداج ثلاثا غير تمام فقيل لابی هريرة رضي الله عنه انا نكون وراء الامام فقال اقرأ بها فی نفسك فانی سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول قال الله تعالٰی قسمت الصلوة بينی وبين عبدی نصفين ولعبدی ما سأل فاذا قال العبد الحمد لله رب العٰلمين قال الله تعالٰی حمدنی عبدی واذا قال الرحمٰن الرحيم قال الله اثنی علیّ عبدی فاذا قال مالك يوم الدين قال مجدنی عبدی وقال مرة فوّض الیّ عبدی فاذا قال اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ، قال هذا لعبدی ولعبدی ما سأل. (صحيح مسلم ج۱، ص۱۶۹)

فقط والله تعالٰی اعلم ۳ جمادی الاولٰی ۱۳۹۸ هجری

## د باران په وخت کښې له مسنوني اندازې څخه دې قرائت بايد کم شي

**سوال**: که چيرته عين د جُمعې د جماعت په وخت کښې باران شروع شي او امام صاحب ته دا معلومه وي چه ګڼ شمير لمونځ کوونکي د لمانځه په صحن کښې ولاړ دي او لمديږي. نو آيا په داسې صورت کښې به دا سنتو ته نژدې نه وي چه امام صاحب په ډيرو کوچنيو سورتونو سره لمونځ ادا کړي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! همداسې صحيح دی. قال ابن عابدين رحمه الله فقد ظهر من كلامه (الكمال) انه لا ينقص عن المسنون الا لضرورة كقراءته صلى الله عليه وسلم بالمعوذتين لبكاء الصبیّ. (رد المحتار ج۱، ص۵۲۸)

فقط والله تعالٰی اعلم ۱۶ جمادی الثانی ۱۳۹۱ هجری

## د سورۀ فاتحه څه برخه په پټه تر ويلو وروسته که چيرته د امامت نيت وکړي سورۀ فاتحه دې له سره نه شروع کوي

**سوال**: منفرد په جهري لمانځه کښې په پټه سره لمونځ کاوه. د سورۀ فاتحه د قرائت په منځ کښې چا اقتداء ور پسې وکړه او هغه هم د امامت نيت وکړ. نو اوس به سورۀ فاتحه به له سره شروع کوي او که له هم هغه ځايه دې په جهر سره ويل شروع کړي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې کښې اختلاف دی. ځيني د وجوب قائل دي او ځيني د نه وجوب قائل دي. دويم قول راجح دی له دې امله دې اعاده نه کوي. که چيرته ئې له سره شروع کړي نو د راجح قول په بناء په قصد سره ئې واجب پريښودل لهذا لمونځ بايد واجب الاعاده وي. ليکن د اختلاف له وجې په داسې صورت کښې دا فيصله مناسبه تر نظر راځي چه د لمانځه اعاده بهتره ده، واجبه نه ده.

قال فی العلائیة ولو ائتم به بعد الفاتحة او بعضها سرّاً اعادها جهراً بحر لکن فی اٰخر شرح المنیة ائتم به بعد الفاتحة یجهر بالسورة ان قصد الامامة والا فلا یلزمه الجهر وقال ابن عابدین رحمه الله علیه (قوله لکن الخ) استدراك علی قوله ولو ائتم به وهذا قول آخر وقد حکی القولین القهستانی حیث قال ان الامام لو خافت ببعض الفاتحة او کلها او المنفرد ثم اقتدی به رجل اعادها جهراً کما فی الخلاصة وقیل لم یعد وجهر فیما بقی من بعض الفاتحة او السورة کله او بعضها کما فی المنیة آه. وعزا فی القنیة القول الثانی الی القاضی عبد الجبار وفتاوٰی اوعدی و لعل وجهه انّ فیه التحرز عن تکرار الفاتحة فی رکعة و تأخیر الواجب عن محله وهو موجب لسجود السهو فکان مکروها وهو اسهل من لزوم الجمع بین الجهر والاسرار فی رکعة علی ان کون ذٰلك الجمع شنیعا غیر مطرد لما ذکره فی اٰخر شرح المنیة ان الامام لو سها فخافت بالفاتحة فی الجهریة ثم تذکر یجهر بالسورة ولا یعید ولو خافت بآیة او اکثر یتمها جهراً ولا یعید وفی القهستانی ولا خلاف انه اذا جهر باکثر الفاتحة یتمها مخافتة کذا فی الزاهدی آه ای فی الصلٰوة السرّیة و کون القول الاوّل نقله فی الخلاصة عن الاصل کما فی البحر و الاصل من کتب ظاهر الروایة لا یلزم منه کون الثانی لم یذکر فی کتاب اُخر من کتب ظاهر الروایة فدعوٰی انه ضعیف روایة ودرایة غیر مسلّمة فافهم. (رد المحتار ج۱، ص۴۹۷) فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ شعبان ۱۳۹۸ هجری

## امام که چیرته د سورهٔ فاتحه څه حصه په پټه ووائي نو بیرته دې نه راګرځوي

**سوال**: امام صاحب په جهري لمانځه کښې د سورهٔ فاتحه څه آیتونه په پټه وویل، وروسته ور یاد شو، یا چا فتح ورکړه نو له هم هغه ځایه دې په زوره شروع کړي او که دې سورهٔ فاتحه له سره جهراً شروع کړي. او که سورهٔ فاتحه له سره جهراً شروع کړي نو آیا سجدهٔ سهو ساقطیږي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې کښې هم د اختلاف او دلائلو هغه تفصیل دی کوم چه په پورنی مسئلې کښې بیان شول او راجحه دا ده چه د سورهٔ فاتحه له سره شروع کول مکروه دي. که چیرته ئې سورهٔ فاتحه له سره ووئیل نو د لمانځه اعاده بهتره ده. **کما مر فی المسئلة السابقة** په اندازه د **ما تجوز به الصلوٰة** (دیرش حرفونه) ئې سراً ووئیل نو سجدهٔ سهوه واجبه ده کوم چه په اعاده سره ساقطیږي ځکه چه دا اعاده د نقصان جابر نه دی.

## په لمانځه کښې د سورت له منځنۍ برخې څخه قرائت کول

**سوال**: نن صبا په عامه توګه د جوماتونو امامان په لمونځونو کښې د پوره سورت په ځای د سورت له منځه کومه رکوع تلاوت کوي. آیا دا صحیح ده او که کوم کراهت پکښې شته؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په مروّج رواج کښې لوی قباحت دا دی چه په لمونځونو کښې د سنت په مطابق مفصل سورتونه نه لوستل کیږي. په داسې حال کښې چه دا سنت دي.

د مفصلو سورتونو د یوې برخې په لوستلو کښې دا تفصیل دی چه د یوه سورت له آخر څخه په دواړو رکعتونو کښې قرائت کول مکروه نه دی. له دې پرته نور صورتون مثلاً د سورت له شروع یا د سورت له منځه تلاوت کول یا په یوه رکعت کښې د یوه سورت آخر او په بل سورت کښې د بل سورت آخر لوستل مکروه تنزیهي دی.

قال فی شرح التنویر لا بأس ان یقرأ سورة ویعیدها فی الثانیة وان یقرأ فی الاولیٰ من محل وفی الثانیة من اٰخر ولو من سورة ان کان بینهما اٰیتان فاکثر، وقال ابن عابدین رحمة الله علیه قال فی النهر وینبغی ان یقرأ فی الرکعتین اٰخر سورة واحدة لا اٰخر سورتین فانه مکروه عند الاکثر آه. لکن فی شرح المنیة عن الخانیة الصحیح انه لا یکره و ینبغی ان یراد بالکراهة المنفیة التحریمیّة، فلا ینافی کلام الاکثر ولا قول الشارح لا بأس تأمل.

و یؤیده قول شرح المنیة عقب ما مرّ و کذا لو قرأ فی الاولیٰ من وسط سورة او من سورة اولها ثم قرأ فی الثانیة من سط سورة اخرٰی او من اولها او سورة قصیرة الاصح انه لا یکره لکن الاولیٰ ان لا یفعل من غیر ضرورة آه. (قوله ولو من سورة الخ) واصل بما قبله ای لو قرأ من محلین بان انتقل من آیة الیٰ اخرٰی من سورة واحدة لا یکره اذا کان بینهما اٰیتان فاکثر لکن الاولیٰ ان لا یفعل بلا ضرورة لانه یوهم الاعراض والترجیح بلا مرجّح شرح المنیة و انما فرض المسألة فی الرکعتین لانه لو انتقل فی الرکعة الواحدة من اٰیة یکره وان کان بینهما اٰیات بلا ضرورة فان سها ثم تذکر یعود مراعاة لترتیب الاٰیات شرح المنیة. (ردالمحتار ج۱، ص۵۱۰)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ رمضان ۱۳۹۸ هجری

## د قرآنکریم د تجوید فرض مقدار

**سوال**: یو ښاغلی وائي چه د قرآن تجوید فرض دی او له تجوید پرته د قرآنکریم لوستل حرام دي. آیا دا خبره صحیح ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په متشابهو حروفو لکه ظاء، ضاد، ذال، زاء، او سین، صاد، ثاء او

تاء او طاء کښې فرق زده کول فرض دي. د تجويد نور قواعد لکه اخفاء، اظهار، تفخيم، ترقيق او داسې نور زده کول مندوب دي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۹ ذی قعده ۱۳۹۸ هجری

## د وقفِ لازم شرعي حيثيت

**سوال**: څه فرمايي د دين علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه که چيرته څوک په لمانځه کښې په وقف لازم باندې وقف و نه کړي لکه ﴿فَلَا يَحْزُنْكَ قَوْلُهُمْ إِنَّا نَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ - الأية﴾ کښې په (قولهم) باندې وقف و نه کړي نو په دې سره په لمانځه کښې کومه خرابي راځي او که نه؟ او د وقف په ځای باندې د وقف په نه کولو سره کفر لازميږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په قرآنکريم کښې چه چيرته وقف لازم ليکلی وي هلته د وقف لازم والی د تجويد د فنّ له لحاظه دی. او شرعاً په کوم ځای باندې وقف لازم نه دی. لهذا د وقف په نه کولو سره په نه په لمانځه کښې کوم فرق راځي او نه کفر پرې لازميږي. يواځې د تجويد د رعايت له وجې په وقفِ لازم باندې وقف کول ضروري دي.

فقط والله تعالیٰ اعلم ٦ رمضان المبارك ۱۳۸۷ هجری

## د پورتني سوال غوندې يو بل سوال

**سوال**: په قرآنکريم کښې د تلاوت کوونکو لپاره صحيح او مناسب محل وقوع باندې د دريدلو او ساه اخيستلو په غرض سره د اوقافو علماوو چه د وقف کوم تقسيم کړی دی لکه تام، مختار، کافي، جائز، حسن، مفهوم، قبيح، متروک او داسې نور او علامه سجاوندي صاحب خو د وقف په کولو سره د هغو لپاره د اوقافو رموز وضع کړي دي، ګوا که د هغه اصطلاحات د اوقاف د نورو علماوو څخه مختلف دي ليکن مفهوم ئې تقريباً سره يو دی. او دا رموزِ اوقاف په هر ملک کښې چاپيدونکي په ټولو نسخو کښې پيدا کيږي. او له علامه سجاندي څخه مخکښې هم د اوقافو امامانو د معنیٰ د لحاظ په ساتلو سره د وقف تقسيم کړی دی او د وقف په ځايونه ئې په ټول قرآنکريم کښې تعيين کړي دي او د هغو احکام ئې بيان کړی دی او په دې موضوع باندې ئې مستقل کتابونه ليکلي دي مثلاً ايضا الوقف و الابتداء للانباری متوفی ۳۲۸ هجری، الاكتفاء فی معرفة الوقف و الابتداء لابی عمر الدانی متوفی ٤٤٤ هجری، الاهتداء فی بيان الوقف و الابتداء للعلامة ابن الجزری، منار الهدٰی فی بيان الوقف و الابتداء للاشمونی (دا کتاب په عامه توګه لاس ته راوړل کيږي) المرشد للشيخ زکريا الانصاری دا کتاب د منار الهدٰی په شرح باندې دی او نورو ډيرو حضراتو د ځانګړې موضوع په توګه د دې علم خدمت کړی دی. ځواب غوښتونکي خبره دا ده

چه د علماء وقف دا تقسیم او د هغو لپاره د رموزونو وضع کول او په د قرآنکریم په نسخو کښې ئي د شاملولو شرعي حیثیت څه دی؟ او همدارنګه حکم ئي څه دی؟

علامه زرکشي او علامه سیوطي د وقف اقسام، د هغو حکمونه او متعلقاتو تر بیانولو وروسته پخپلو کتابونو البرهان فی علوم القرآن ج ۱،ص ۳۵٤ او الاتقان فی علوم القرآن ج ۱،ص ۸۹ کښې لیکلي دي **وذهب ابو یوسف القاضی صاحب ابی حنیفة الی ان تقدیر الموقوف علیه من القرآن بالتام و الناقص والحسن والقبیح وتسمیته بذلك بدعة ومتعمد الوقف علی نحوه مبتدع قال: لان القرآن معجز وهو كا للفظة الواحدة فكله قرآن وبعضه قرآن وكله تام حسن وبعضه تام حسن، حکی ذلك ابو القاسم برهان النحوی عنه.** چه کله دا خبره مولوي حفیظ الدین صاحب او مولانا سید نزیر حسین صاحب او داسې نورو ثو اهل حدیثو حضراتو وکړه چه د علامه سجاوندي مقرر شوي رموز اوقاف او په هغو باندې وقف کول بدعت دي او په آیاتو بانې وقف کول ضروري او واجب دي نو حضرت مولانا رشید احمد ګنګوهي رحمه الله د هغو په رد کښې رد الطغیان في اوقاف القرآن په نامه کتاب ولیکه او دا ئي پکښې ثابته کړه چه په دغو ځایونو باندې وقف کول د سنتو خلاف نه دی. قاضي ابو یوسف له عبارت سره چه کوم تکر پیدا کیږي هغه حل کړی او مفصل، مدلل له حوالې سره ځواب څخه مو ګټمن کړی او د شکریې د ادا کولو موقع راکړی.

**الجواب**: حامداً و مصلیاً؛ د قرآنکریم اوقاف له صحیحو روایتونو او د امت له اجماع څخه ثابت دي او بدعت ویل ورته صحیح نه دي. البته په دغو اوقافو باندې دریدل د هیچا په نزد واجب نه دي لهذا واجب ګڼل ئي او په هغو باندې پابندي نه کوونکي ګنهګار بلل خامخا بدعت دی. د دې تول تفصیل د حضرت مولانا رشید احمد ګنګوهي نوّر الله رساله رد الطغیان في اوقاف القرآن کښې دي چه هغه د روایاتو او اجماع له مخې د قرآن په اوقافو باندې دریدل ثابت کړي دي او کوم چه تا د امام ابو یوسف قول را نقل کړی دی. د هغه په اړه عرض دا دی چه کوم وخت د قرآنکریم په تلاوت کښې د تسهیل (آسانتیا) او تعلیم (زده کړې) په غرض سره مختلف اقدامات وشول نو ځینو حضراتو په قرآنکریم کښې د تحریف له مخې د هغو مخالفت وکړل مثلاً چه کله په قرآنکریم باندې نقطي ولګول شوې یا حرکات ښکاره شول یا د نښې په توګه تر هرو پنځو آیتونو وروسته د (خمس) یا (خ) او تر هرو لسو آیتونو وروسته د (عشر) یا (ع) ولیکل شول نو علماء متقدمینو په دې کښې اختلاف وکړ. ځینو حضراتو جائز ورته ویل او ځینو مکروه ورته ویل. د صحابه او تابعینو په اقوالو کښې همدا ډول اختلاف وو لیکن په دغو ټولو اقوالو کښې مفتٰی به او غوره شوی قول هغه بلل شوی دی کوم چه اُمت هغه لره د خپل تعامل له مخې غوره کړی دی او د تعامل

په خلاف چه د سلفو کوم قولونه مخې ته راځي هغه اوس د شاذ کیدلو پر بناء مفتٰی به پاتې نه شوي. تر کومه ځایه چه د امام ابو یوسف د مذکور قول تعلق لري په هغه کښې دوه احتماله دي. یو دا چه د هغه مقصد به اوقافو لره له پلوه بدعت ویل نه وي بلکه د دغو اوقافو مطابق که چیرته څوک وقف لازم وبولي نو هغه به ئې بدعت بللی وي. په دې صورت کښې د هغه په قول کښې کوم اشکال نه پاتې کیږي ځکه چه د امت مفتٰی به مسلک همدغه دی، دویم احتمال دا دی چه هغه به اوقافو ته مطلقاً بدعت ویلی وي. په دې صورت کښې چونکه د امت تعامل د دې په خلاف ګرځیدلی دی نو ځکه دا قول په شاذ قولونو کښې شامليږي کوم چه متروک شوی دی. لهذا د اُمت د تعامل په خلاف په هغه باندې استدلال به صحیح نه وي. و الله اعلم با لصواب

**احقر عبد الشکور**

**دار الافتاء دار العلوم کراچي نمبر ۱۴**

الجواب صحیح

محمد تقي عثماني ۱۹ ذی قعده ۱۴۰۰ هجری

الجواب صحیح

رشید احمد ، یوم الترویة ۱۴۰۰ هجری

## د سنتو او نفلو په ټولو رکعتونو کښې د سورت یو ځای کول (ډک ادا کول) واجب دي

**سوال**: په سنتو او نوافلو کښې په دریم او څلورم رکعت کښې له سورهٔ فاتحه سره بل سورت یو ځای کول (ډک ادا کول) ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! واجب دي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ رمضان المبارک ۱۴۰۰ هجری

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

لَوْلَا الْاِسْتِطَالَةُ لَكَانَ الضَّادُ عَيْنَ الظَّاءِ

# الارشاد الٰی مخرج الضاد

## د ضاد د لفظ تحقیق

**سوال**: د ضاد لفظ د دواد په ادا کولو سره لمونځ کیږي او که نه؟ او آیا دا لفظ له ظاء سره مشابهت لري او که له دال یا ډال سره؟ بینوا با لدلیل اُجرکم الله الجلیل.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ضاد په ځای د ډال په ادا کولو سره لمونځ نه کیږي. ځکه چه ډال د عربي ژبې توری نه دی. ضاد با لکل له دال یا ډال سره مشابهت نه لري ځکه چه ضاد د رخوه له حروفو څخه دی چه د صوت (آواز) جریان پکښې لازم دی او دال د شدیده حروفو له جملې څخه دی چه په هغه کښې د صوت جریان امکان نه لري. په ټولې نړۍ کښې هیڅوک هم ضاد له دال سره د مشابهت په ورکولو سره په هغه کښې جریانِ صوت نه شي کولی. د تجوید د علم د اصولو مطابق همدا یو دلیل کافي دی چه ځواب ئې ت قیامته ممکن نه دی. د دې اصولي نه وروسته د بل کوم دلیل ضرورت نشته. که چه په چا کښې طاقت وي نو په دال کښې دې د صوت جریان وښئي. **ودونه خرط القتاد**. له دې سره سره څو داسې دلائل وړاندې کیږي چه له هغه څخه دا څرګندیږي چه د ضاد حرف له ظاء سره مشابهت لري.

۱- د علم تجوید په ټولو کتابونو کښې دي چه **لولا الاستطالة لكان الضاد عين الظاء**.

۲- فقهاء رحمهم الله لیکي چه په ضاد او ظاء کښې دومره زیات مشابهت دی چه فرق پکښې کول مشکل دي. **قال في الخانية وان ذكر حرفاً مكان حرف وغير المعنى فان امكن الفصل بين الحرفين من غير مشقة كالطاء مع الصاد فقرأ الطالحات مكان الصالحات تفسد صلاته عند الكل وان كان لا يمكن الفصل بين الحرفين الا بمشقة كالظاء مع الضاد والصاد مع السين والطاء مع التاء اختلف المشائخ فيه قال اكثرهم لا تفسد صلوته. (خانية على هامش الهندية ج۱، ص۱۳۱)**

**وفي شرح التنوير الا ما يشق تمييزه كالضاد والظاء فاكثرهم لم يفسدوها. (ردالمحتار ج۱، ص۵۹۲)**

۳- صاحب اتقان او نور مفسرین لیکي چه: (وُجُوۡهٌ يَّوۡمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ اِلٰى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ) کښې د تجنیس صنعت دی او دا په هغه صورت کښې ممکن کیدلی شي چه ضاد او ظاء متشابه الصوت وي.

٤- په ضاد او ظاء کښې د فرق د مشکل والي له وجې علماوو لیکلي دي چه په هغو کښې د فرق د کولو کوشش باید وشي. په جزري کښې داسې الفاظ چه په هغو کښې ضاد او ظاء شته جمع کړي او د فرق د کولو تاکید ئې کړی دی. په مقاماتو کښې ئې هم داسې ډول الفاظ یو ځای کړي دي. امام غزالي په کیمائ سعادت کښې فرمایي چه (فرق درمیان ضاد وظاء بجاآوردا گرنتواند روا باشد)

او په احیاء العلوم کښې دي چه: ویجتهد فی الفرق بین الضاد والظاء.

٥- په قرآنکریم کښې د قرائت د اختلاف له وجې که چیرته د یوه حرف په ځای بل حرف وویل شي نو په عمومي توګه دا دواړه حرفونه متشابه الصوت وي. مثلاً (اهۡدِنَا الصِّرَاطَ الۡمُسۡتَقِيۡمَ) کښې د صاد په ځای د سین قرائت هم شته. همدارنګه وَ (مَا هُوَ عَلَى الۡغَيۡبِ بِضَنِيۡنٍ) کښې د ظاء قرائت هم شته چه له دې ځخه ثرګندیږي چه ضاد او ظاء متشابه الصوت دي.

٦- د عربو په کلام کښې داسې الفاظ ډیر لیدل کیږي چه په هغو کښې د ضاد په ځای دظاء په ویلو سره معنی نه بدلیږي. قال العلامة الألوسی رحمة الله علیه وقد جمع بعضهم الالفاظ التی لا یختلف معناها ضاداً وظاءً فی رسالة صغیرة ولقد احسن بذلك فلیراجع فانه مهم. (روح المعانی ج۳۰ ص٦١)

۷د متقدمینو په نزد د ضاد او ظاء رسم الخط هم تقریباً سره یو غوندې وو. کما نقل الألوسی رحمة الله علیه تعالٰی عن ابی عبیدة ان الظاء والضاد فی الخط القدیم لا یختلفان الا بزیادة رأس احداهما علی الاخری زیادة یسیرة قد تشتبه. (روح المعانی ج۳۰ ص٦١)

۸- اردو، سندځي، فارسي، پنجابي، انګریزي لنډه دا چه د دُنیا په هرې ژبې کښې ضاد د ظاء مشابه بلکه عین ظاء ادا کوي. فقط والله تعالٰی اعلم وعلمهٔ اتم واحکم ۲ صفر ۷٤ هجری

## د پورتني سوال غوندې بل سوال

**سوال**: د ضاد لفظ له ظاء سره مشابه ده او که له دال سره. مولوي ......... په یوه لیک کښې لیکلي دي چه ضاد له ظاء سره مشابهت نه لري. مدلل ئې بیان کړی؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: ضاد له ظاء سره مشابهت لري، د صرفو، تجوید، تفسیر، فقهي او فتاواوو ټول کتابونه په دې باندې متفق دي. د ځینو کتابونو نومونه په لاندې ډول دي

۱. شافیة ۲. رضی ۳. جاربردی ۴. فصول اکبری ۵. جزریة

۶.شروح جزریه ۷.منهاج ۸.نشر ۹.طیبة النشر ۱۰.تمهید ۱۱.رشحة فیض ۱۲.شاطبیه ۱۳.شرح قصیدهٔ لامیه ۱۴.جهد المقل ۱۵.منهیهٔ جهد ۱۶.رعایه ۱۷.تفسیر کبیر ۱۸.اتقان ۱۹.کشاف ۲۰.عزیزی ۲۱.حسینی ۲۲.بیضاوی ۲۳.حاشیهٔ بیضاوی ۲۴.تفسیر المنار ۲۵.روح المعانی ۲۶.برهان ۲۷.تجنیس ۲۸.خلاصة الفتاوی ۲۹.خزانة المفتین ۳۰.خزانة اکمل ۳۱.فتاوی نقشبندیه ۳۲.حلیه ۳۳.عتابیه ۳۴.تاتارخانیه ۳۵.خزانة الروایات ۳۶.رسائل الارکان ۳۷.تهذیب ۳۸.جامع الروایات ۳۹.مفتاح الصلوة ۴۰.محاسن العمل ۴۱.مختار الفتاوی ۴۷.سمرقندی ۴۸.مجموعهٔ سلطانی ۴۹.بغیة المرتاد ۵۰.میزان ۵۱.حروف الهجاء ۵۲.وجیز کردری ۵۳.رسالهٔ نجم الدین ۵۴.ذخیره ۵۵.معیه ۵۶.کبیری ۵۷.بزازیه ۵۸.خانیه ۵۹.عالمگیریه ۶۰.خیریه ۶۱.فتح القدیر ۶۲.در مختار ۶۳.طحطاوی ۶۴.ردالمحتار

خو ورځې کیږي چه د یوه مولوي صاحب......... فتوی راورل شوې وه په هغې کښې چه څومره عبارتونه دي ټول زمونږ د مسلک تائید کوي.

په لومړي مخ باندې د تفسیر سراج المنیر عبارت دی چه په ضاد او ظاء کښې د فرق کولو په خاطر محنت کول ضروري دي. که چیرته په دغو دوارو حرفونو کښې تشابه نه وي نو د فرق کولو لپاره د محنت څه ضرورت دی؟

دهمدې عبارت په آخر کښې دي چه: **فان اکثر العجم لا یفرقون بین الحرفین.** او د تفسیر بیضاوي په حاشیه کښې دي چه: **ان اکثر الناس خصوصاً العجم کانوا فی الزمان الاول لا یعلمون الفرق بینهما.**

**(مجموعة الفتاوی ج۲،ص۳۴)**

له دې څخه ثابته شوه چه اسلافو ضاد لره ظاء ادا کاوه. دا کومه خبره چه کیږي چه اسلافو به دال ادا کاوه دا غلطه ده.

له دې وروسته ئې د جزریه عبارت وړاندې کړی دی. په دې کښې هُم همدا خبره ده چه په ضاد او ظاء کښې فرق ضروري دی. دا هم د تشابه مستلزم دی.

په دویم مخ کښې ئې د شامیه عبارت دی چه ضاد ضعیفه قبیح ده. البته زمونږ هم همدغه مسلک دی.

له دې وروسته ئې د شرح فقه الاکبر او جامع الفصولین له عبارتونو ځخه ئې ثابته کړې ده چه ضاد په ظاء سره اداکول جائز نه دي او په قصد سره ادا کول ئې کفر دی. زمونږ هم همدګه مسلک دی چه له عذر پرته په ظاء سره ادا کول ئې جائز نه دي.

په دریم مخ کښې ئې د رد المحتار عبارت دی: **ان جرى على لسانه اولا يعرف التمييز لا تفسد وهو المختار وفي البزازية وهو اعدل الاقاويل وهو المختار** او د کتاب الاذکار للنووي عبارت دی: **ولو قال ولا الظالين بالظاء بطلت صلوته على ارجح الوجهين الا ان يعجز عن الضاد بعد التعلم فيعذر.**

له دغو دواړو عبارتونو ځخه ځرګنده شوه چه د ضاد حقیقي مخرج باندې د قدرت د نه درلودلو له وجې د ضاد په ځاى ظاء ويل جائز دي. زمونږ هم همدغه مسلک دی.

لنډه دا چه نوموړي ليکنه له اوله تر آخره زمونږ د مسلک مؤيد ده. په دې کښې د ضاد په ځاى د دال د ادا کولو په باره کښې يوه جزئيه هم نشته. د عذر په وخت کښې د ظاء ويلو په باره کښې عبارتونه دي. ليکونکي دا عبارتونه د تشابه په ظاء سره په ترديد او تشابه په دال سره په تائيد کښې وړاندې کړي دي ليکن حقيقت برعکس دی.

وكم من كائب قولاً صحيحاً وآفته من الفهم السقيم

فقط والله تعالى اعلم ١٤ شوال ١٣٧٤ هجرى

## د دې په شان يو بل سوال

**سوال:** ١ تاسو ليکلي دي چه د ضاد په ظاء سره له ويلو ځخه لمونځ نه فاسديږي او د شاميه حواله مو ورکړې ده حالانکه د متشابه حروفو له جملې ځخه يو د بل ځاى له ادا کولو ځخه سره د معنى له تغيره د لمانځه عدم فساد د متاخرينو مذهب دی او شاميه د متقدمينو مذهب ته ترجيح ورکړې دی او احوط ئې ورته ويلي دي.

٢ - که چيرته د لمانځه فاسد والى او نه فاسد والى د حروفو په تشابه او عدم تشابه باندې کينبودل شي نو بايد چه د غير المغظوب په ويلو سره د عدم فساد او د ولا الدالين په ويلو سره د فساد حکم ورکړ شوى واى حالانکه په کبيري او داسې نورو کښې حکم برعکس ليکل شوى دی.

٣- ضاد لره په مطلقه توګه د ظاء د ويلو په جواز کښې کوم صريح عبارت شته؟ سره له حوالې ئې وليکى. ځکه چه ځينو قراوو ته چه کله ويل کيږي نو هغوى وائي چه مونږ خو ضاد وايو ليکن تاسو ته لکه ظاء غوندې ښکاريږي. دا عجيبه توجيه ده. آيا د دوى لمونځونه کيږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ١ - علامه ابن عابدين رحمه الله د منيې له شرحې ځخه د لمانځه د فساد ضابطه داسې نقل فرمايي: **ان الخطاء اما فى الاعراب اى الحركات والسكون ويدخل فيه تخفيف**

المشدّد وقصر الممدود وعكسهما اوفى الحروف بوضع حرف مكان اٰخر اوزيادته اونقصه اوتقديمه اوتأخيره اوفى الكلمات اوفى الجمل كذلك اوفى الوقف ومقابله.

و القاعدة عند المتقدمين ان ما غير المعنى تغييرا يكون اعتقاده كفرا يفسد فى جميع ذلك سواء كان فى القراٰن اولا الا ما كان من تبديل الجمل مفصولا بوقف تام و ان لم يكن التغيير كذلك فان لم يكن مثله فى القراٰن والمعنى بعيد متغير تغيرا فاحشا يفسد ايضا كهذا الغبار مكان هذا الغراب و كذا اذا لم يكن مثله فى القراٰن ولا معنى له كالسرائل باللام مكان السرائر و ان كان مثله فى القراٰن والمعنى بعيد ولم يكن متغيرا فاحشا تفسد ايضا عند ابى حنيفة ومحمد رحمهما الله وهو الاحوط وقال بعض المشائخ لا تفسد لعموم البلوٰى و هو قول ابى يوسف رحمة الله عليه وان لم يكن مثله فى القراٰن ولكن لم يتغير به المعنى نحو قيامين مكان قوامين فا لخلاف على العكس فالمعتبر فى عدم الفساد عند عدم تغير المعنى كثيرا وجود المثل فى القراٰن عنده و الموافقة فى المعنى عندهما فهٰذه قواعد الائمة المتقدمين.

و اما المتأخرون كابن مقاتل و ابن سلام و اسمٰعيل الزاهد و ابى بكر البلخى و الهندوانى و ابن الفضل و الحلوانى فاتفقوا على ان الخطاء فى الاعراب لا يفسد مطلقا ولو كان اعتقاده كفرا لان اكثر الناس لا يميزون بين وجوه الاعراب قال قاضى خان وما قاله المتأخرون اوسع وما قاله المتقدمون احوط وان كان الخطاء بابدال حرف بحرف فان امكن الفصل بينهما بلا كلفة كالصاد مع الطاء بان قرأ الطالحات مكان الصالحات فاتفقوا على انه مفسد وان لم يمكن الا بمشقة كالظاء مع الضاد والصاد مع السين فاكثرهم على عدم الفساد لعموم البلوٰى وبعضهم يعتبر عسر الفصل بين الحرفين وعدمه وبعضهم قرب المخرج وعدمه ولكن الفروع غير منضبطة على شىء من ذلك فالاولى الاخذ فيه بقول المتقدمين لانضباط قواعدهم و كون قولهم احوط واكثر الفروع المذكورة فى الفتاوٰى منزلة عليه اھ. ونحوه فى الفتح وسيأتى تمامه. (ردالمحتار ج۱، ص۵۹۰)

ثم قال فى شرح (قوله الا ما يشق الخ) قال ف الخانية والخلاصة الاصل فيما اذا ذكر حرف امكان حرف وغير المعنى ان امكن الفصل بينهما بلا مشقة تفسد والا يمكن الا بمشقة كالظاء مع الضاد المعجمتين و الصاد مع السين المهملتين و الطاء مع التاء قال اكثرهم لا تفسد اھ. وفى خزانة الاكمل قال القاضى ابو عاصم ان تعمد ذلك تفسد وان جرٰى على لسانه اولا يعرف التمييز لا تفسد وهو المختار حلية وفى البزازية وهو اعدل الاقاويل وهو المختار اھ. وفى التاتارخانية عن الحاوى حكى عن الصفار انه كان يقول الخطاء اذا دخل فى الحروف لا يفسد لان

فيه بلوى عامة الناس لانهم لا يقيمون الحروف الا بمشقة آ. وفيما اذا لم يكن بين الحرفين اتحاد المخرج ولا قربه الا ان فيه بلوى العامة كالذال مكان الضاد او الزاء المحض مكان الذال و الظاء مكان الضاد لا تفسد عند بعض المشائخ آه. قلت فينبغي على هذا عدم الفساد في ابدال الثاء سينا و القاف همزة كما هو لغة عوام زماننا فانهم لا يميزون بينهما و يصعب عليهم جدا كالذال مع الزاء ولا سيما على قول القاضي ابي عاصم وقول الصفار وهذا كله قول المتأخرين وقد علمت انه اوسع وان قولا لمتقدمين احوط قال في شرح المنية وهو الذي صححه المحققون وفرعوا عليه فاعمل بما تختار و الاحتياط اولى سيما في امر الصلوة التي هي اول ما يحاسب العبد عليها. (ردالمحتار ج۱، ص۵۹۲)

## د متقدمينو ضابطه

د متقدمينو د ضابطې حاصل دا دی چه که چيرته په معنٰی کښې داسې تغير واقع شي چه عقيده پرې کفر وي نو دا په هر صورت په اتفاق سره د لمانځه مفسد دی. او که چيرته تغير د کفر تر سرحده نه وي نو د امام ابو يوسف رحمه الله په نزد بيا ئې مدار په وجود المثل في القرآن وعدمه باندې دی او د طرفينو رحمهما الله په نزد ئې مدار په وقوع التغير البعيد في المعنٰى وعدمه باندې دی. وهو الراجح. د متقدمينو دا ضابطه مطلقه ده کوم چه په ظاهره حروف متشابهة الصوت هم پکښې شامل دی ليکن د متشابهو حروفو په باره کښې له متقدمينو څخه کوم نص نه دی راغلی په څينو عباراتو کښې دضاد په ظاء سره تبديلول د معنٰی د تغير په وخت کښې د لمانځه مفسد والی د طرفينو خوا ته منسوب شوی دی. مثلا په روح المعاني کښې دي چه

و اختلفوا في تبديل احداهما بالاخرى هل يمتنع و تفسد به الصلوٰة ام لا. فقيل تفسد قياساً و نقله في المحيط البرهاني عن عامة المشائخ ونقله في الخلاصة عن ابي حنيفة و محمد رحمهما الله تعالى. (روح المعاني ج۳۰، ص۲۱)

همدارنګه په خانيه او داسې نورو کښې ئې مغضوب په ظاء يا ذال سره ويل د متقدمينو د مذهب پر بناء مفسد بللی دی. له دغو عباراتو څخه دا مقصد نه دی چه مفسد والی ئې له متقدمينو څخه منصوص دی بلکه مقصد دا دی چه دا د متقدمينو د ضابطې په بناء سره دا صورت د مفسد دی. چنانچه علامه حلبي رحمه الله له خانيه څخه د مذکوره فروع تر نقل کولو وروسته

فرمايي: **هذا ما ذكره قاضيخان من ابدال هذه الاحرف الثالثة بعضها من بعض و كله مخرج على قواعد المتقدمين.** (كبيري ص۴۵۰)

غرض دا چه د متشابهه حروفو د تبديلي حکم له متقدمينو څخه منصوص نه دی، چه کله متاخرينو په دې باندې غور وکړ چه د متقدمينو قاعده په متشابهه حروفو باندې هم شامله ده او که نه ده. نو متاخرينو په دې کښې اختلاف وکړ. ځينو د متقدمينو ضابطه عامه وبلله او اکثرو حروف متشابهه له هغې څخه مستثنٰی وبلله. او همدا صحيح هم ده. چنانچه علامه آلوسي رحمه الله د قياس له مخې د لمانځه د فساد د حکم تر ذکر کولو وروسته فرمايي:

**وقيل لا استحساناً ونقله فيها عن عامة المشائخ كابي مطيع البلخي ومحمد بن سلمة وقال جمع انه اذا امكن الفرق بينهما فتعمد ذلك وكان مما لم يقرأ به كما هنا وغير المعنى فسدت صلاته والا فلا لعسر التمييز بينهما خصوصاً على العجم و قد اسلم كثير منهم في الصدر الاول و لم ينقل حثهم على الفرق و تعليمه من الصحابة رضي الله عنهم ولو كان لازماً لفعلوه و نقل و هذا هو الذي ينبغي ان يعول عليه و يفتى به.** (روح المعاني ج۳۰، ص۶۱)

مولانا عبدالحی صاحب لکهنوي رحمه الله فرمايي چه په تفسير کبير کښې دي: **فثبت بما ذكرنا ان المشابهة بين الظاء و الضاد شديدة و ان التمييز عسير و اذا ثبت هذا فنقول لو كان هذا الفرق معتبراً لوقع السؤال عنه في زمان رسول الله ﷺ او في ازمنة الصحابة رضي الله عنهم لا سيما عند دخول العجم في الاسلام فلما لم ينقل وقوع السؤال عن هذه المسألة علمنا ان التمييز بين هذين الحرفين ليس في محل التكليف.** او د بيضاوي شريف په حاشيې باندې دي: **ان اكثر الناس خصوصاً العجم كانوا في الزمان الاول لا يعلمون الفرق بينهما** او محمد بن محمد الجزري په تمهيد في علم التجويد کښې فرمايي: **فمنهم من يجعلها ظاءً (الى قوله) وهم اكثر الشاميين.** او ځينې اهلِ مشارق او د شيخ جمال حنفي مکي په فتوٰی کښې دي چه ضاد په ظاء سره ويل د اکثرو اهل عربو لغت دی. او د جهد المقل په حاشيه کښې مسطور دي: **فمنهم من يجعلها ظاء وهذا ليس بعجب.** (مجموعة الفتاوٰی ج۲، ص۳۳)

د متقدمينو په زمانه کښې د ضاد او ظاء رسم الخط هم تقريباً سره يو وو. **كما نقل العلامة الآلوسي رحمه الله قول ابي عبيدة بان الظاء و الضاد في الخط لا يختلفان الا بزيادة رأس احدهما على الاخرى زيادة يسيرة قد تشتبه.** (روح المعاني ج۳۰، ص۶۱).

له پورتني عباراتو څخه ثابته شوه چه متقدمینو په متشابهه حروفو کښې د فرق اهتمام نه کاوه او که نه نو داسې سوالونه به خامخا منقول وای. متقدمینو چه کله په ضاد او ظاء کښې د فرق اهتمام واجب نه باله نو په تبدیل سره ئې د لمانځه د فساد حکم د متقدمینو خوا ته منسوبول څنګه صحیح کیدلی شي؟ مولانا عبد الحی لکهنوي صاحب رحمه الله تر زمانې پورې هم عوامو د ضاد او ظاء تر منځ فرق نه کاوه، چنانچه مجموعة الفتاوی ج۲، ص۳۳ کښې یو سوال په دې الفاظو سره راغلی دی. "په دې زمانې کښې اکثره خلک ضاد د ذال او زاء مشابه ادا کوي".

علامه آلوسي رحمه الله په حواله د خلاصه د طرفینو رحمهما الله تعالی په نزد چه د فساد کوم حکم نقل کړی دی که چیرته د هغه منصوص والی هم تسلیم شي نو دا به په عمد باندې محمولیږي. په اولې زمانې کښې د ضاد او ظاء کښې د فرق د کولو اهتمام نه وو تر دې پورې چه د دواړو رسم الخط هم تقریباً متحد وو کما قدمنا. ځکه چه د یوه حرف په ځای په قصد سره د بل حرف د ویلو قوي ګومان وو. له دې وجې طرفینو رحمهما الله تعالی په قصد سره تبدیلي مفسد وبلله. په دې باندې مزیده قرینه دا هم ده چه د خلاصې په مذکوره عبارت کښې د معنیٰ د تغیر ذکر نشته. پس د معنیٰ له تغیر پرته هغه مفسد کیدلی شي کوم چه په قصد سره وي.

لنډه دا چه د متقدمینو له ضابطې څخه متشابه حروف په ځانګړې توګه ضاد او ظاء مستثنیٰ دي: الا فی العم قال فی البزازیة ان تغیر المعنی ولیس مثله فی القرآن عنده والاصل فیه انه ان امکن الفصل بین الحرفین بلا کلفة کالصاد مع الطاء بان قرء الطالحات مکان الصالحات فسد عند الکل وان لم یمکن الا بمشقة کالظاء مع الضاد والصاد مع السین والطاء مع التاء فالاکثر علی انه لا یفسد لعموم البلوی واطلق البعض الفساد ان تغیر المعنی وقال القاضی ابو الحسن وابو عاصم ان تعمد فسد وان جری علی لسانه او کان لا یعرف التمییز لا یفسد وهو اعدل الاقاویل وهو المختار. (بزازیة علی هامش العالمگیریة ج۴، ص۴۲)

په دې عبارت کښې لومړی د متقدمینو د ضابطې بیان دی او بیا والاصل فیه انه ان امکن الفصل بین الحرفین بلا کلفة ـ الخ څخه د دې ضابطې توضیح کیږي.

## ۲ - د کبیرې جزئیه

قال فی الخانیة لو قرء غیر المغضوب بالظاء او بالذال تفسد صلوته ولو قرء الضالین بالظاء او بالذال لا تفسد صلوته ولو قرء الدالین بالدال تفسد صلوته. (خانیة علی هامش العالمگیریة ج۱، ص۱۳۳)

وفی غنیة المستملی غیر المغضوب بالظاء والذال المعجمتین تفسد اذ لیس لهما معنی ولا الضالین بالظاء المعجمة والدال المهملة لا تفسد لوجود لفظهما فی القرآن وقرب المعنی لصحة تقدیر ولا الظالین ای

المستمرين فى الضلال والدالين اى القائلين هل ندلكم على رجل الأية ول قرأة بالذال المعجمة تفسد لبعد معانه لانه اسم فاعل ذل النخلة اذا وضع عذقها على الجريدة لتحمله وليس من الذلة اذلم يستعمل الوصف منها على فاعل بل على فعيل. (كبيرى ص۴۴۸)

د خانيې عبارت مخې ته له کيښودلو څخه ثابته شوه چه په کبيري کښې له خانيې څخه په نقل کولو کښې تسامح (غلطي) شوې ده. په خانيه کښې ئې ذال غير مفسد او دال مفسد بللى دى او په کبيري کښې د دې برعکس شوے دى. په کبيري کښې دا فروع له خانيه څخه را اخيستل شوى دى چنانچه فرمايي: وهذا فصل وهو ابدال احد هٰذه الاحرف الثالثة اعنى الضاد والظاء والذال من غيره فلنورد ما ذكره فى فتاوٰى قاضيخان من هٰذا القبيل. بيا د پورتنيو مذکوره جزئياتو له بيانولو وروسته فرمايي: هذا ما ذكره قاضيخان من ابدال هٰذه الاحرف الثلاثة بعضها من بعض و كله مخرج على قواعد المتقدمين. (كبيرى ص۴۵۰)

له کبيري پرته بل په يوه کتاب کښې هم ددالين غير مفسد والى نه دى راغلى، په کبيري کښې چه د عدم فساد کوم تاويل بيان شوى دى هغه هم ډير لرې تاويل دى. كما لا يخفى همدارنګه د متقدمينو د ضابطې مطابق که چيرته د دالين غير مفسد والى و هم منل شي نو د متقدمينو ضابطه د غير عمد په صورت کښې دى او نن صبا خلک عمداً (قصداً) دال ادا کوي د دې لپاره د معنٰى د تغير باوجود دال ويل مفسد وګرځيد.

په المغضوب کښې د ظاء يا ذال ويل د متقدمينو د ضابطې لاندې د مفسد بللو ځواب پورته تير شو، يعنې د متشابهه حروفو تبديل د متقدمينو له ضابطې څخه وتلى دى.

## د متاخرينو ضابطه

د متاخرينو په نزد د اعرابو تبديلوالى د لمانځه مفسد نه دى اګر که ئې اعتقاد کفر وي. د متشابهه حروفو تبديلي هم مفسد نه دى، د متشابهه حروفو په اړه د متاخرينو دا فيصله د متقدمينو د ضابطې خلاف نه ده بلکه د هغې توضيح ده. كما قدمنا.

ځينو متاخرينو د متقاربة المخرج (نژدې مخرج درلودونکو) حرۆفو تبديلي هم غير مفسد ګڼلې ده او ځينو عموم بلوٰى ته اعتبار ورکړى دى.

علامه ابن عابدين رحمه الله د قاضي ابو العاصم قول: (ان تعمد ذٰلك تفسد و ان جرى على لسانه اولا يعرف التمييز لا تفسد) نقل کوي په دې باره کښې له حليه څخه (وهو المختار) او له بزازيه څخه (و

هواعدل الاقاویل وهو المختار) نقل کړی دی. له دې ښخه په ظاهره دا څرګندېږي چه دا مستقل قول دی لیکن د بنده په خیال کښې د قاضي ابو العاصم قول د متاخرینو د قول توضیح دی ځکه چه دا ډیره لرې خبره ده چه کوم فقیه په قصد سره د حروفو تبدیلي هم مفسد و نه بولي.

## ضاد په دال سره ادا کول

په ضاد او دال کښې نه د صوت تشابه (یو شان والی) دی.نه د تمیز سخت والی او نه د مخرج نژدې والی که چیرته څوک د ضاد په صحیح تلفظ باندې قادر نه وي نو له ضاد سره متشابه حرف په ظاء سره ئې ویلی شي.لهذا د دغو قواعدو لاندې ضاد لره دال ویل به د لمانځه مفسد وي البته دریمه قاعده "عموم بلوی" لاندې دا مسئله د غور وړ ده. په مذکوره عباراتو کښې د عموم بلوی چه کوم مثالونه بیان شول په هغو ټولو کښې ئې هغه حروف یاد کړي دي چه متشابهة الصوت وي البته ابن عابدین رحمه الله د قاف په همزه سره د ویلو مثال هم بیان کړی دی. په هر صورت په ظاهره د عموم بلوی قاعده د ټولو حروفو په باره کښې عامه ده او د بحث لاندې مسئلې کښې عموم بلوی ښکاره ده. اګر که له مخرج ښخه عاجز سړی ضاد په ظاء سره ویلی شي لیکن د جهل د زیاتوالي له وجې ګڼ شمیر عوام په دې غلط فهمی کښې لویدلي دي چه د ضاد تلفظ د مفخم دال غوندې دی او هغوی ئې په مفخم دال سره ادا کوي او دا ګني چه هغوی هغه لفظ ادا کړ کوم چه په قرآنکریم کښې دی. د دې لپاره د هغوی د لمونځونو د صحیح ګڼلو ګنجائش معلومیږي.

کمامرّ من قول ابی العاصم اولا یعرف التمییز لا تفسد.وقال العلامة الحلبی رحمه الله روی عن محمد بن سلمة انها لا تفسد لان العجم لا یمیزون بین هٰذه الحروف (الضاد و الظاء و الذال) و کان القاضی الامام الشهید المحسن یقول الاحسن فیه ای فی الجواب فی هٰذه الابدال المذکورة ان یقول المفتی ان جری ذٰلك علی لسانه ولم یکن ممیزاً بین بعض هٰذه الحروف وبعض و کان فی زعمه انه ادی الکلمة علی علی وجهها لا تفسد صلوته و کذا ای مثل ما ذکر المحسن روی عن محمد ابن المقاتل و عن الشیخ الامام اسمٰعیل الزاهد و هذا معنی ما ذکر فی فتاوی الحجة انه یفتی فی حق الفقهاء باعادة الصلوة و فی حق العوام بالجواز کقول محمد بن سلمة اختیاراً للاحتیاط فی موضعه والرخصة فی موضعها.(کبیری ص۴۴۸)

دا عبارات هم اګر که د دریو حروفو (ضاد . ظاء. ذال) په اړه دي لیکن تعلیل (لایعرف التمیز و کان فی زعمه انه ادی الکلمة علی وجهها) عام دی. البته د مفخم ډال ویلو په صورت کښې د لمانځه د صحت د قول هیڅ ګنجائش نشته ځکه چه ډال عربي حرف نه دی

## له صحیح تلفظ څخه عاجز سړي لپاره د کوشش د کولو حکم

**سوال:** دمتقدمینو په نزد چه کوم سړی د کوم حرف په صحیح تلفظ باندې قادر نه وي په هغه باندې د تصحیح کوشش کول فرض دي. ترهغه وخته پورې چه په صحیح تلفظ باندې قادر شوی نه وي تر هغه وخته پورې په یوه صحیح تلفظ کوونکي په اقتداء باندې قادر وي نو په هغه پسې دې لمونځ کوي او که نه نو د غلط تلفظ تر څنګ ئې لمونځ کیږي. او که چیرته د تصحیح کوشش پریږدي یا دُ صحیح تلفظ کوونکي پسې د اقتداء تر څنګ ئې منفرداً (یواځې) لمونځ ادا کړ نو لمونځ ئې فاسد یږي.

قال فی العلائیة وحرر الحلبی وابن الشحنة انه بعد بذل جهده دائماً حتماً کالامیّ فلا یؤم الا مثله ولا تصح صلاته اذا امکنه الاقتداء بمن یحسنه او ترک جهده او وجد قدر الفرض مما لا لثغ فیه هذا هو الصحیح المختار فی حکم الالثغ وکذا من لا یقدر علی التلفظ بحرف من الحروف الخ. وفی الشامیة (قوله دائماً) ای فی أناء اللیل واطراف النهار فما دام فی التصحیح والتعلم ولم یقدر علیه فصلاته جائزة وان ترک جهده فصلاته فاسدة کما فی المحیط وغیرہ الخ (قوله حتماً) ای بذلاً حتماً فهو مفروض علیه ط (قوله وکذا من لا یقدر علی التلفظ بحرف من الحروف) عطفه علی ما قبله بناءً علی ان اللثغ خاص بالسین والراء کما یعلم مما مرّ عن المغرب وذٰلک کالرحمٰن الرهیم والشیتان الرجیم والألمین وایاک نأبد وایاک نستئین، السرا، انأمت فکل ذٰلک حکمه ما مرّ من بذل الجهد دائماً والا فلا تصح الصلاة به. (رد المحتار ج۱، ص۵۴۴)

وقال العلامة الحلبی رحمه الله علیه وذکر فی فتاوی الحجة ما یوافق قوله صاحب المحیط فانه قال ما یجری علی السنة النساء والارقاء الخطاء الکثیر من اول الصلوٰة الیٰ أخرها کالشیتان والألمین وایاک نأبد وایاک نستئین السرات، انأمت فعلی جواب الفتاوی الحسامیة ما داموا فی التصحیح والتعلم والاصلاح باللیل والنهار ولا یطاوعهم لسانهم جازت صلاتهم کسائر الشروط اذا عجز عنها من الوضوء وتطهیر الثوب والقیام والقراءة والرکوع والسجود والقعود والتوجه اذا حصل العجز عنها فکذا هنا اما اذا ترکوا التصحیح والجهد فسدت صلاتهم کما اذا ترکوا سائر الشروط. (کبیری ص۴۵۲)

ددغو عباراتو پر بناء ضاد په دال سره د ویونکي لمونځ باید صحیح نه شي ځکه چه د ضاد د مخرج د تصحیح لومړی مرحله دا ده چه په ظاء سره وویل شي او په دې باندې هر سړی قادر دی. لیکن د متاخرینو په نزد چه د عموم بلوی په اړه کوم عبارت تیر شول له هغو څخه د عمومو بلوی په صورتونو کښې د لمانځه د صحت لپاره د بذل جهد (د کوشش د کولو) شرط نشته لهذا د

متاخرینو د دې قاعدې لاندې که چیرته څوک د ضاد په صحیح مخرج باندې قادر نه وي او هغه د تصحیح کوشش هم نه کوي لیکن پخپل گومان کښې د ضاد صحیح تلفظ د مفخم دال غوندې کښې نو لمونځ ئې کیږي. کما قدمنا.

## د ضاد په دال سره ویونکي پسې د اقتداء حکم

قال فی شرح التنویر و لا غیر الالثغ به ای بالالثغ علی الاصح کما فی البحر عن المجتبی و حرر الحلبی و ابن الشحنة انه بعد بذل جهده دائماً حتماً کالامی فلا یؤم الا مثله (الی قوله) هذا هو الصحیح المختار فی حکم الالثغ و کذا من لا یقدر علی التلفظ بحرف من الحروف. و فی الشامیة (قوله علی الاصح) ای خلافاً لما فی الخلاصة عن الفضلی من انها جائزة لان ما یقوله صار لغة له و مثله فی التاتارخانیة و فی الظهیریة و امامة الالثغ لغیره تجوز و قیل لا و نحوه فی الخانیة عن الفضلی و ظاهره اعتمادهم الصحة و کذا اعتمدها صاحب الحلیة قال لما اطلقه غیر واحد من المشائخ من انه ینبغی له ان لا یؤم غیره و لما فی خزانة الاکمل و تکره امامة الفأفاء آه. و لکن الاحوط عدم الصحة کما مشی علیه المصنف و نظمه فی منظومة تحفة الاقران و افتی به الخیر الرملی قال فی فتاواه الراجح المفتی به عدم صحة امامة الالثغ لغیره ممن لیس به لثغة. (رد المحتار ج۱، ص۵۴۴)

له دې څخه ثابته شوه چه اصح او احوط خو دا دی چه په الثغ پسې د غیر الثغ اقتداء صحیح نه ده لیکن یو قول ئې د صحت هم شته. د جهل یا ناپوهی د غلبې له وجې ضاد په مفخم دال باندې ویونکي خلک هم په الثغ باندې قیاس کیدلی شي. لهذا د الثغ په دال ویونکي پسې اقتداء خو په هر حال کښې جائزه ده او کوم سړی چه په دې جهالت کښې مبتلا نه ده هغه دې په دوال ویونکي پسې اقتداء نه کوي. البته د ابتلاء په موقعه کښې د دال ویونکي پسې د لمانځه د ادا کولو گنجائش شته لیکن بیرته را گرځول ئې احوط دی. دا حکم دا حکم په جهل مرکب کښې گرفتار د دال ویونکي دی، که چیرته د (اضله الله علی علم) په مطابق عناداً یا د خلکو له ویرې دال وائي نو نه ئې خپل لمونځ کیږي او نه د مقتدیانو.

۳ - ضاد په مطلقه توگه د ظاء ویلو د جواز هیڅوک هم قائل نه دی البته کوم سړی چه د ضاد په مخرج باندې قادر نه وي د هغه لپاره د ظاء د ادا کولو اجازه شته. چه په مخرج باندې قادر وي نو هغه ته عمداً ظاء ادا کول جائز نه دي، که ئې خطاءً ووائي نو لمونځ کیږي. په کیمیای سعادت کښې دي چه: فرق در میان ضاد و ظاء بجا آورد اگر نتواند روا باشد۔

وفي الشامية عن خزانة الاكمل قال القاضي ابو عاصم ان تعمد ذلك تفسد وان جرى على لسانه اولا يعرف التمييز لا تفسد وهو المختار حلية. وفي البزازية وهو اعدل الاقاويل وهو المختار. (رد المحتار ج۱،ص۵۹۲)

پاتې شوه دا پوښتنه چه ځينې قراء حضرات وائي چه مونږ ضاد وايو ليکن تاسو ته لکه ظاء داسې ښکاريږي. البته په دې کښې لومړی بايد دا څرګنده شي د ضاد او ظاء په سماع او صوت کښې فرق ډير سخت او انتهائي متعسر دی.

قال في التفسير الكبير ان المشابهة بين الظاء والضاد شديدة وان التمييز عسير وفي جهد المقل الضاد والظاء والذال المعجمات الكل متشاركة في الجهر والرخاوة ومتشابهة في السمع وايضاً فيه ويشبه صوتها (الضاد) صوت الظاء المعجمة بالضرورة وفي شرح الشاطبية ان هذه الثلاث متشابهة في السمع وايضاً في جهد المقل لثبوت التشابه وعسر التمييز بينهما. (مجموعة الفتاوى ج۲،ص۴۳)

وفي الهندية وان كان لا يمكن الفصل بين الحرفين الا بمشقة كالظاء والضاد الخ وهكذا في شرح التنوير والشامية والخانية وفتح القدير والنهر الفائق وخزانة المفتين وخلاصة الفتاوى وغيرها.

لنډه دا چه کله په ضاد او ظاء کښې فرق کول سخت دی نو ښکاره ده چه په دې فرق باندې[1] هغه څوک پوهيدلی شي چه په دې فن کښې پوره مهارت ولري. د سين، ثاء، ذال او زاء په سماع او صوت کښې په ښه توګه فرق باندې پوهيږي، بلکه په ضاد او ظاء په فرق باندې پوهيدل د سين، ثاء يا ذال او زاء کښاي د فرق له پوهيدو څخه زيات سخت دی. كما هو ظاهر وثابت بالادلة المذكورة. لهذا دا د تعجب او حيرانتيا کومه خبره نه ده چه قاري فرق پکښې کوي ليکن په دې فن کښې ماهر نه وي هغه ته په اوريدو سره کوم فرق معلوم نه شي او که چيرته اوريدونکی په دې فن کښې د ماهر والي تر څنګ فرق نه شي معلومولی نو معلومه ده چه قاري د ضاد په مخرج باندې قادر نه دی اګر که د قدرت په درلودو باندې دعوی کوي او چه څوک پرې قادر نه وي هغه د ظاء د ادا کولو اجازه شته البته که چيرته سامع په دې فن کښې ماهر وي او دا يقين ئې هم وي چه قاري د ضاد په اصل مخرج باندې قادر دی ليکن په قصد سره په مخرج باندې د قدرت درلودلو تر څنګ يو اخې د عناد او ضد له مخې ظاء وائي نو د داسې قاري لمونځ په واقعيت کښې فاسديږي. ليکن په دُنيا کښې د داسې سړي وجود مشکل دی کوم چه په مخرج باندې د قدرت درلودلو باوجود په ضاد او ظاء تر منځ په فرق باندې د پوهې سره سره هم عمداً ظاء ووائي

---

[1] - په راتلوني سوال او ځواب کښې د شرح قصيدة امنيه عبارت را روان دی چه د عربو د فصيحانو د ضاد تلفظ اوريدونکی ظاء ګڼي. ۱۲ منه.

فقط والله تعالیٰ اعلم و علمه اتم وحکمه احکم غرۂ جمادی الاولی ۱۳۷۵ هجری

## د پورتني سوال په شان يو بل سوال

**سوال:** د ضاد لفظ له دال سره مشابهت لري او که له ظاء سره، په مفصله توګه ئې وليکئ مشهوره ده چه د حجاز علماء دال وائي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې اړه په نږدې وخت کښې د حجاز د علماوو له خوا څخه څو فتواوې را ورسيدې، په دې وخت کښې د هغو په نقل کولو اکتفاء کوم. د هرې فتوی يواځې ضروري او د کفايت په اندازه برخه ئې ليکل کيږي.

**حضرت مولانا شير محمد سندهي مهاجر مدينه منوره ليکي:**

د قصيدۂ امنيه په شرح کښې دي: **فلذلك اشتد شبهته و عسر التمييز و احتاج القارى فى ذلك الى الرياضه لاتصال بين مخرجهما و فصحاء العرب يتلفظون بها بحيث يشبه صوتها صوت الظاء كما فى المجلد الاول من تفسير المنار للشيخ محمد عبده مفتى مصر انا نجد اعراب الشام و ما حولها يعطقون بالضاد فيحسبها السامع ظاء لشدة قربها منها و شبهها بها و هذا هو المحفوظ عن فصحاء العرب الاولين.**

په دې حرف کښې اختلاف هلته شروع شو چه کله عربو ته د مختلفو ممالکو وينځې راغلې، له هغو څخه اولادونه وشول نو د دې حرف په صحت کښې خلل پيدا کيدل شروع شول.

**انها فى لغة قوم ليس فى لغتهم ضاد فاذا احتاجوا الى التكلم بها فى العربية اعتاصت عليهم فربما اخرجوها ظاء لاخراجهم اياها من طرف اللسان و اطراف الثنايا و ربما تكلفوا اخراجها من مخرج الضاد فلم يتأت لهم فخرجت بين الضاد و الظاء.** (شرح الشافية)

**مفتي سعد الله رامپوري صاحب فرمايي:**

خواندن دال مهمله يا زا بجائے ضاد نه بدعتے ست امرزے اهلِ هند بلکه بعض اهلِ عرب نيز از پيشتر درين بلا مبتلا بوده اند.

ملا علي قاري رحمه الله ليکي: **من يخرجه دالا مهملة و من يخرجه لاما مفخمة و من يخرجه طاء مهملة كالمصريين الخ.**

په دې رسالې باندې د حرمينو د علماوو تقاريظ هم شته. دلته دوه درې مصري قاريان راغلي وو هغو په قرائت کښې ضاد ډير ښه ادا کړ. اکثره عرب مخرج صحيح را باسي ليکن د رخاوة صفت ناقص ادا کوي چه له وجې ئې د شديد دال غوندې اوريدل کيږي.

قاري عبد الرحمٰن اله آبادي. استاذ الكل صاحب كوم چه خپل مشر ورور قاري عبد الله صاحب سره له كلونو كلونو راهيسې د صولتيه په مدرسه كښې د عربو استاذ هم پاتې شوى دى د فوائد مكيه د رسالې په حاشيه كښې فرمايي چه په ضاد كښې چه كوم رخاوت ليدل كيږي هغه اكثره عرب ئې ښائي نه ادا كوي، دا لحن خفي دى. انتهٰى. تحرير السندى رحمة الله عليه

## د حسن بن ابراهيم الشاعر فتوٰى

اقول وانا الفقير الى رحمة ربّه القدير حسن بن ابراهيم المدرس بالحرم النبوى ان نهاية القول فى الضاد هو انها اقرب الى الظاء فقط كما فى الرعاية وجهد المقل وغيرهما واما كون الضاد شبيهة بالدال او الغين فما سمعنا به قط ولا وجد فى كتاب فمن صلى خلف امام يعتقد ذٰلك فصلاتهما باطلة والله على ما نقول وكيل.

كتبه بيده راجى عفو ربه القادر حسن بن ابراهيم الشاعر المدرس بالحرم النبوى بالمدينة المنوّرة

## د موصوف دويمه فتوٰى

اعلم وفقنى الله تعالى واياك للصواب قال الجزرى رحمة الله عليه والضاد باستطالة ومخرج ميز من الظاء فلا بد من اخراجها من مخرجها المعلوم بين القراء ضاداً خالصة وقراءتها بالظاء لا يجوز الا اذا تعسر النطق هكذا اخذنا من مشائخنا ولا يجوز قراءتها بالدال كذٰلك ان قصد ولا بغيره طاءً او ظاءً. والله ولى التوفيق.

كاتبه حسن بن ابراهيم الشاعر خادم القراء والمدرس بالحرم النبوى

تحريراً ٤ صفر ۱۳۷۵ هجرى

په دې فتوٰى باندې د مكې او مدينې نورو مشهورو علماوو او قراوو دستخطونه او تقريظونه هم موجود دي رشيد احمد ۱۲ ذى الحجة ۱۳۷۵ هجرى

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿ وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْءَانُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴾

# نيل المرام

## بالتزام السكوت عند

# قرائت الامام

**سوال** : زمونږ په کلي کښې يو ښاغلی اهل حديث دی، هغه وائي چه په امام پسې چه کوم خلک سورۂ فاتحه نه لولي د هغه لمونځ با لکل نه کيږي او هغه په دې باندې قسمونه هم کوي او وائي چه په دُنيا کښې هيڅوک داسې حديث نه شي وړاندې کولی چه په هغه کښې له امام سره د سورۂ فاتحه له ويلو څخه منع راغلې وي.

دا سړی شپه او ورځ همدا شور او غوغا جوړه کړې وي او هر وخت د صافو او ساده لمونځ کوونکو د غلطولو په کوشش کښې مصروف وي. د بيلمازو دومره فکر ورسره نشته چه لمونځ کوونکي ترې جوړ کړي بس هر وخت د لمونځ کوونکو د غلطولو او د هغوی د لمونځونو د باطل ګڼلو په فکر کښې مشغول دی. ځينې لمونځ کوونکي ئې له فتنې څخه متاثر کيدونکي تر سترګو کيږي. له تاسو ښاغلي څخه هيله ده چه دا مسئله په تفصيل سره وليکی او زمونږ د خلکو لارښوونه وکړی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په امام پسې د سورۂ فاتحه ويلو په مسئله کښې له حضراتو صحابۂ کرامو څخه را ونيسه په هرې زمانې کښې اختلاف را روان دی. دا ډول نورې هم ډيرې اجتهادي مسئلې دي. داسې مسائل له قرآن او حديثو څخه د مستنبط کيدو له وجې د مجتهدو صحابۂ کرامو رضی الله تعالی عنهم او د دين د امامانورحمهم الله تر منځ اختلافي ده. په دغو کښې پخپله د مجتهدينو د تل لپاره دا عمل پاتې شوی دی چه د دليل د قوت پر بناء باندې چه کوم طرف راجح ور ته ښکاره شوی دی هغه ئې غوره ګڼلی دی. ليکن په نورو باندې ئې هر ډول اعتراض، پيغور او بد رد ويلو باندې د ژبې اوږدول روا نه دي بللي. او نه ئې خپل اجتهاد په چا باندې په زوره د مسلط کولو کوشش کړی دی. بلکه يواځې ئې د رائې په ښکارولو باندې سره د دلائلو د تفصيل او يا پرته د کوم دليل په ليکلو باندې اکتفاء کوله . او په خلکو کښې به د خپلې

رائې د قبلولو او نه قبلولو څخه تل بې نيازه وو. هغوی له خپلې رائې سره اختلاف کوونکي نه هيڅکله ګمراه بللي دي او نه ئې د هغوی د عبادت د باطل والي د فتوٰی په ورکولو سره په امت کښې د تخريب او منافرت تخم کرلی دی.

د هغو حضراتو دا عمل د قرآنکريم د هدايت او د نبي کريم ﷺ په ښوونې او تعليماتو باندې مبني دی. د الله تعالی ارشاد دی: ﴿وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ﴾ په دې کښې د اجتهاد خاوندانو ته په غامضه (مشکلو او پټو) مسائلو کښې د دعوت فکر ورکړ شوی دی همدارنګه د هر مجتهد د فکر رسيدنه د هغه لپاره حق او واجب العمل ګڼل شوی دی. لکه څرنګه چه مجتهد په غير منصوصي مسائلو کښې د غور او فکر په کولو سره هغه په منصوصي باندې دقياس کولو په ذريعه د هغو حکم معلوموي همدارنګه هغه منصوصي مسائل چه ادله ئې متعارض يعنې سره ټکر دي په هغو کښې د تطبيق، ترجيح او تساقط اصول د غور لاندې راولي او فيصله کوي. دنبي کريم ﷺ په زمانه کښې داسې څو مثالونه پيدا کيږي چه په کومې مسئلې کښې به د صحابهٔ کرامو رضی الله تعالی عنهم رائې مختلفې شوې او هر يوه به پخپل اجتهاد باندې عمل کاوه په هغه وخت کښې نه چا په يوه او بل باندې اعتراض وکړ او نه وروسته د نبي کريم ﷺ خدمت ته په حاضريدو باندې نبي کريم ﷺ د چا په فعل او عمل باندې نيوکې کړې.

غرض دا چه مجتهد صحابهٔ کرام رضی الله عنهم او مجتهدين امامان رحمة الله عليهم کښې هر يوه سړي پخپل اجتهاد باندې عمل کاوه ليکن د نورو په اجتهاد باندې ئې کوم اعتراض نه کاوه. د دغو مجتهدينو د پيروانو هم همدغه معمول وو چه پخپل منځ کښې د لاس او ګريوان کيدلو په ځای د خپلو خپلو مقتدايانو د اجتهاد مطابق عمل کاوه. په دې کښې هيڅ خبره نشته چه اکابرو علماوو د اجتهادي مسائلو تنقيح او تنقيد او د هغو د مناشي او مباني د تنقير او تفتيش لپاره په زړه پورې بحثونه ليکلي دي. د خپلو دلائلو تفصيل او د مقابل لوري د دلائلو ځوابونو لپاره ئې فاضلانه مضمونونه ليکله ليکن د مخالف لوري تفسيق، تضليل، تحقير او تذليل او عباداتو لره ئې ضائع او باطل بللو حماقت هيچا نه دی کړی. او نه دغه خالص علمي مباحث کوم چه د عوامو له پوهې څخه ډير لوړ دي د هر کس و ناکس مخې ته په راوړلو سره په عوامو کښې د انتشار او فتنې د پيدا کولو کوم جواز را وايستلو.

راقم الحروف د صحيح البخاري په تدريس کښې د خپل عمر ډيره لويه برخه مصرف کړې ده. په دې زمانې کښې د قرآن او حديثو لوړ پوړي مضامين، د حقائقو، دقائقو، نکاتو او لطائفو د مطالعې شوق او د حديثو د طالبانو د استعداد او ضرورت مطابق د هغو په مخکښې د بيانولو عادت پاتې شوی دی. ليکن د طلبه وو د اصرار تر څنګ په اجتهادي مسائلو باندې څخه مې له زيات بحث او تمحيص کولو څخه تل تر تله څنګ کاوه. لومړی د دې لپاره چه په کومو مسائلو

کښې چه د حضراتو صحابهٔ کرامو رضی الله تعالی عنهم رائې مختلفې دي په هغو کښې زيات بحث او مباحثه همداسې هم بې ضرورته او د ديني تقاضاوو په خلاف دي. دويم دا چه په دغو مسائلو باندې د کفايت له اندازې څخه هم ډير څه ليکل شوي دي. دريم دا چه په دې دور کښې په دين کښې نظرياتي او عملي فتنې په دومره کثرت او شدت سره را پورته کيږي چه د هغو په موجودوالي کښې مجتهد فيه مسائلو کښې په جزئي اختلافاتو کښې د لويدلو هيڅ جواز نشته. يوې خوا ته مرزائيت، نيچريت، اباحيت، انکارِ حديث او ديندار انجمن غوندې اعتقادي او ارتدادي فتنو وريځ په خوريدو دي او بلې خوا ته بد اعمالي، په ښکاره فسق او فجور او د بې حيائی سيلاب د برق غوندې په تيزي سره په مخ روان دی او له عوامو څخه په تيريدنې سره د علماوو او صلحاوو کورونو ته هم داخل شوي دي. د کوم سړي په زړه کښې چه د ذرې غوندې احساس او د دين درد هم وي او د اسلام او مسلمانانو د خير خواهی لږ غوندې خيال هم ولري په دغو حالاتو کښې جزئي اختلافاتو په هوا ورکولو سره د الحاد او نورو بې دينيو خپريدلو ته موقع ورکول هيڅکله نه شي برداشتولی. ليکن په دې باره کښې د اهل حديث د ډلې د ډيرو کردار د اهل حديث د ډلې په تندي باندې کلنګ دی. د هغو دا رسوا کوونکی او اسلام دښمنه کردار له برکته په هغو کښې د پوهې د خاوندانو سرونه ټيټ شوي دي ليکن هغوی پخپل دې بې واکې قوم باندې د برلاسي له پيدا کولو څخه عاجز دي.

د دوی په عقل باندې حيرانتيا ده چه يوې خوا ته خو دومره د نظر د پراخوالي جواز چه د اجتهاد د جواز لپاره هيڅ شرط نشته هر سړی له موره پيدا مجتهد دی او بلې خوا ته دومره تنګ نظري چه د خپل اجتهاد نه بغير نور ټول خلک ګمراه بولي.

## د غير مقلدينو خصوصيات

۱ - اهلِ حديث حضرات په اجتهادي مسائلو کښې خپل اجتهاد په قطعي توګه صحيح او د نورو اجتهاد په قطعي توګه غلط ګني او په دې کښې تر دې اندازې پورې غلو کوي چه ګوا که خپله رايه معاذ الله الهي وحی ګني په خلاف د نورو مجتهدينو چه وه خپلې رائې د وحی غوندې قطعي نه ګني بلکه محض د غلبهٔ ظن درجه ورکوي چه د خطا احتمال هم پکښې موجود دی. چنانچه د خطا د تر واضح کيدو وروسته هغه له خپلې رائې څخه رجوع کوي. ليکن په دنيا کې يو اهلِ حديث هم داسې په نظر نه راځي چه هغه ته پخپل اجتهاد کښې چيرته د يوې ادنی غوندې شبهه هم پيدا شوې وي، د غلطي اعتراف او له خپلې رائې څخه رجوع کول خو لويه خبره ده.

۲ - په مجتهد فيه مسائلو کښې په حضراتو صحابهٔ کرامو رضی الله تعالی عنهم، تابعين او تبع تابعين ائمهٔ دين رحمهم الله کښې د رائې اختلاف پيدا کيږي او دا اختلاف لازم هم دی د دې

لپاره چه د اجتهادي مسائلو په استنباط کښې او د دلائلو د تعارض په وخت کښې د تطبیق او ترجیح د کلیات په استعمال کښې د انسان عقل دخل لري، یو مجتهد یوه جزئیه د یوې کلیې لاندې په راوستو سره د جواز قول کوي او بل مجتهد ئې له بلې کلیې سره زیاث منطبق په ګڼلو سره هغه ناجائزه بولي. له کلیاتو سره د جزئیاتو په انطباق کښې د رائې له اختلاف څخه حفاظت محال دی. چنانچه په همدې بناء باندې مونږ شپه او ورځ په ډاکټرانو، انجنئیرانو، وکیلانو او قاضیانو کښې اختلافات پخپلو سترګو وینی. لیکن د اهلِ حدیثو حضراتو په رایه کښې هیڅکله اختلافات نه لیدل کیږي. له دې څخه ثابته شوه چه د هغوی عمل په حدیثو باندې شور او غوغا او د مخامخ اجتهاد دعوٰی غلطه ده. په حقیقت کښې دا یوه مستقله ډله ده چه هر غړی ئې د خپلو اسلافو په راندہ تقلید کښې مبتلا دی. له دې سره د حیرانتیا خبره خو دا ده چه د ائمه اربعه وو تقلید ته حرام او شرک وائي.

۳ - د مجتهدینو امامانو په دې باندې اتفاق دی چه په اختلافي مسائلو کښې دا حتیاط په اړخ باندې باید عمل وشي چنانچه کوم سړي چه پخپله حج نه وي کړی هغه په حنفي مذهب کښې د بل چا له خوا څخه حج بدل کولی شي لیکن لکه څرنګه چه په ځینو نورو مذاهبو کښې دا جواز نه لري د دې لپاره د همدې بل مذهب د رعایت په خاطر په حنفي فقه کښې د داسې سړي د حج بدل لپاره تلل مکروه تاکل شوی دی. همدارنګه که چیرته طواف کوونکی بیت الله ته دومره نژدې ورشي چه کیڼ لاس ئې په شاذروان (د بیت الله په بنیاد) باندې تیر شي نو په حنفي مذهب کښې ئې طواف صحیح کیږي لیکن یواځې د نورو مذاهبو د مراعات په خاطر ئې دې ته هم مکروه ویلي دي. د فقهې په کتابونو کښې د دې بې شمیره مثالونه پیدا کیږي لیکن د اهلِ حدیثو حضراتو طریقهٔ کار تر ټولو جلا دی. د هغوی په نزد په داسې مسائلو کښې د نورو مذاهبو پر خلاف کول د زیات اجر او ثواب باعث دی. چنانچه د ذی الحجې په دیارلسم تاریخ کښې د قربانۍ جواز مختلف فیه دی د دې لپاره په عبادت کښې د احتیاط تقاضا خو دا وو چه په دې تاریخ کښې قرباني و نه شي. کوم حضرات ئې چه د جواز قائل دي د هغو په نزد بهترینه ورځ ئې لسم، بیا یوولسم، بیا دولسم او بیا دیارسلم دی لیکن اهل حدیث خلک یواځې د نورو مذاهبو د مخالفت لپاره په دریارلسم تاریخ باندې قرباني افضله بولي او په همدې باندې عمل کوي. همدارنګه د اوښ په قرباني کښې خاص له نورو مذاهبو سره د مخالفت په خاطر لس کسان شریکیږي او که نه نو د عبادت د اهمیت تقاضا خو دا وه چه په دې کښې له احتیاط څخه کار اخیستل شوی وای او په اوښ کښې له اوه کسانو څخه زیات نه وای شریک شوي.

**یوه بله نادره واوری:** د آبادۍ په منځ کښې د متیازو په حالت کښې قبلې ته د مخ اړولو جواز مختلف فیه دی. ځکه په هر حال کښې احتیاط په دې کښې دی چه قبلې ته له مخ اړولو څخه پرهیز

وشي ليکن د اهل حديثو په نزد له نورو مذاهبو سره مخالفت لوی جهاد دی چنانچه په کراچی کښې ئې د خپل جومات استنجا خانې رنګې او له نوي سره ئې قبلې ته مخامخ استنجاء خانې جوړې کړې. چه کله ئې د وجې پوښتنه وشوه نو و ئې ويل چه دا سنت له څوارلس سوه کلونو څخه مړ وو مونږ را ژوندی کړ. الحمدلله الذی عافانا مما ابتلاکم به.

٤ - اهلِ حديث په جزئي اختلافي مسائلو په خپرونه او تبليغ کښې بلکه د خپلې نظريې په ټول امت باندې د مسلط کولو په کوشش کښې دومره مخبوط الحواس (ګډوډ حواس) دي چه نه هغوی دا فکر کوي چه په دغو مسائلو کښې د حضراتو صحابهٔ کرامو رائې هم مختلفې دي او هغوی د رائې د اختلاف باوجود هغه د بحث او مباحثې موضوع نه جوړول. او نه دا احساس کوي چه له فتنې څخه ډک په دې دور کښې په داسې حال کښې د دين په اصولو باندې حملې کيږي او د فسق او فجور روان شوی سيلاب ديني ارزښتونه هم د خس او خاشاک غوندې ورسره وړي. د جزئي مسائلو په څيړلو سره مسلمه امت په نورو فتنو او ابتلاوو کښې مه اچوی او پخپل منځ کښې د منافرت د فضا په پيدا کولو سره بې دينه قوتونو ته د نور پرمختګ سبب مه جوړيږی. بلکه دا فروعي اختلافات د نسيان په طاق کښې کښيږدی او د بې دينی زياتيدونکو موجونو د مخ نيوي لپاره ټول په يوه صف کښې ودريږی او جهاد وکړی.

په انصاف سره ووايئ چه اهلِ حديث د سبائيت، مرزائيت، نيچريت او اباحيت غوندې فتنو څخه د اسلام د حفاظت لپاره کوم ښکاره خدمت کړی دی؟ يا د فسق او فجور د مخ نيوي لپاره ئې کله کوم کار کړی دی؟ د هغوی خپل ټول کوششونه او جهاد يواځې د فاتحه خلف الامام، آمين با لجهر او رفع يدين باندې مصرفيږي يا بيا ټول امت مسلمه بلکه د دين تر امامانو پورې د فسق او ګمراهی نسبت کوي. که چيرته يو څوک چه ږيره يا خرئي او يا ئې لنډوي، لباس د شرعې په خلاف اغوندي، سود خوري، رشوت اخلي، عکسونه ساتي، په رقص او سروز باندې ئې زړه ورکړی وي، شراب چښې. له کوم اهل حديث سره مخامخ شي نو هغه ته تر ټولو مخکښې دا تبليغ کوي چه په امام پسې د الحمد لله په نه ويلو سره لمونځ نه کيږي، چه کوم خلک ئې نه وائي هغه ټول ګمراه دي او د حديث مخالفت کوي.

٥ - کوم سړی چه په امام پسې الحمد لله، آمين په زوره او د رفع يدينو په تيزي سره تبليغ کوي او په امامانو پسې د رد بد ويلو امتيازي شان ولري هغه که هر څومره په فسق او فجور کښې مبتلا وي بلکه کفريه عقائد دې هم ولري د اهل حديثو په ډله کښې مقبول ګرځي.

په دې باره کښې د (شَهِدَ شَاهِدٌ مِّنْ أَهْلِهَا) لاندې پخپله د اهل حديث عالم قاضي عبد الواحد خانپوري صاحب شهادت (ګواهي) ملاحظه کړی. دی فرمائي:

د دې زمانې دروغجن اهل حديث د مبتدعين مخالفينو، سلف صالحينو كوم چه د ما جاء الرسول له حقيقت څخه جاهل دي هغوی په صفت كښې د شيعه ګانو او روافضو خليفه ګان شوي دي، يعنې لكه څرنګه چه په مخكښينيو زمانو كښې د كفر او نفاق دروازه او دهليز وو او د ملاحده او زنادقه وو د اسلام خوا ته مدخل وو. همدارنګه دا جاهل او بدعتي اهل حديث په دې زمانې كښې د ملاحده او زنادقه وو منافقينو دروازه، دهليز او مدخل دي. بعينه د شيعه ګانو غوندې (الى ان قال) مقصود دا دی چه په رافضيانو كښې ملاحده وو د تشيّع په ښكارولو سره د حضرت علي او حسنينو رضى الله تعالى عنهم له غلو (له حد څخه زيات) سره د تعريف په كولو سلف ته ظالمان وويل او ښكنځا ئې ورته وكړه او بيا چه څومره الحاد او زندقه خپره كړي څه پروا نشته. همدارنګه دا جاهلان بدعتي درواغجن په اهل حديثو كښې يو ځل رفع يدين وكړي او تقليد رد كړي او سلفو ته بد ووائي لكه امام ابو حنيفه رحمه الله ته چه په فقهه كښې ئې امامت د اجماع اُمت له مخې ثابت دی. او بيا چه څومره كفر، بد اعتقادي، الحاد او زنديقيت په هغوی كښې خپور كړي په ډيرې خوښی. سره ئې قبلوي او د يوې ذرې غوندې نه خفه كيږي. اګر كه د اهلِ سنت علماء او فقهاء ئې زر ځله خبرداِر كړي هيڅكله ئې نه اوري. **سبحان الله ما اشبه الليلة البارحة** او د دې راز دا دی چه هغه د اهل السنة و الجماعة له عقائدو څخه په را وتلو سره د سلفو له اتباع څخه مخ اړوونكي او مستكبر شوي دي. فافهم و تدبّر.

**(التوحيد والسنّة فى ردّ اهل الالحاد والبدعة "الملقب به" اظهار كفر ثناء الله بجميع اصول اُمنت بالله ص ۲۶۲)**

د نفس مسئلې په اړه له بحث څخه مخكښې د دې اوږده تمهيد څخه مقصد دا دی چه لوستونكو ته د دې اندازه ولګيږي چه په پورتنيو مذكوره حالاتو كښې د فاتحه خلف الامام په اړه له څه ويلو او اوريدلو تكليف يا د كوم مدللې ليكنې لپاره ليكنه او دماغي محنت تر كومې اندازې پورې ګټور كيدلی شي. له بحث او تمحيص (پلټنې) څخه د فهم او انصاف د خاوندانو پوهنه مقصود وي ليكن د پورتنيو خصوصياتو درلودونكې د اهل حديثو له جماعت څخه د دې څه توقع كيدلی شي؟ كله كله له تقريري يا تحريري دلائل بازيو څخه د كومې فتنې د وركولو او د عامو مسلمانانو د دين ساتنه مقصود وي اګر كه د فتنې له خاوندانو څخه د حق د قبلولو هيڅ اميد نه وي ليكن په دې كښې د الاهمّ فا لاهمّ د اصولو لحاظ ساتل لازم دي. د الحاد او ارتداد غوندې تباه كوونكو فتنو په موجودوالي كښې په فروعي مسائلو باندې بحث، مباحثه او په هغې باندې د وخت او دماغ د مصرفولو هيڅ جواز نشته. چنانچه كله كله ما ته ويل شوي دي چه فلاني ښاغلي د كوم اهل حديث د خوشحالولو لپاره فاتحه خلف الامام شروع كړی دی تاسو هغه پوه كړی. ما ځواب وركړی دی چه هغه پريږدی چه په امام پسې فاتحه ووائي له ما سره د هغه د پوهولو وخت

نشته. حقيقت دا دی چه چا ته د خپل ځان د پوهولو فکر نه وي د هغه پوهول بې فائدې او د وخت ضائع کول دي. څو خله څو له موره پيدا شويو مجتهدينو په دغو مسائلو باندې له ما سره د خبرې کولو هيله ښکاره کړې ده ليکن ما په هر ځلې عذر وړاندې کړی دی. وجه ئې هم هغه ده چه د اهمو مسائلو په موجودوالي کښې د دغو فروعي مسائلو خوا ته مخ اړول جائز نه دي. با لخصوص کله چه په مخاطب (چا ته چه خبره کيږي) کښې نه صلاحيت وي او نه ئې د حق تحقيق مطلوب وي. په داسې حالت کښې د خبرو کولو څه فائده؟ يو ځل يوې مجتهدې صاحبې ته په فاتحه خلف الامام باندې د بحث کولو جذبه وراغله او د حديث پوهنې ډيره لويه دعوه ئې وکړه، ما ترې پوښتنه وکړه چه د صحيح البخاري نوم څه دی؟ بس د اجتهاد نشه ئې مړه شوه، يوه چا څومره ښه ويلي دي:

الف کو کيل جانيں سب بچارے مگر دعوی ہے سب کا اجتہادی

د فاتحه خلف الامام په اړه د اهل حديثو پرله پسې شور او غوغا تر څنګ ما د خپل عمر اوه پنځوس کاله له پوره چوپتيا او صبر سره تير کړل. زمونږ د اکابرو همدغه شان پاتې شوی دی ليکن اوس اهل حديثو لې دې چوپتيا څخه د ګټې په اخيستو سره دا غلطه پروپيګنډه شروع کړې ده چه د احنافو په نزد داسې يو حديث هم نشته چه په هغه کښې خلک په امام پسې د فاتحه له ويلو څخه منع شوي وي.

دا پروپيګنډه دومره تيزه شوه او له عوامو څخه د داسې حديث مطالبه په دومره سختۍ سره وشوه چه عام مسلمانان ډير تنګ او پريشان شول او له ما څخه ئې په دې باره کښې غوښتنې وکړې. زه چا چا ته ځواب ورکړم؟ او خالص علمي تحقيق څرنګه د عوامو په دماغو کښې واچوم؟ با لاخره مې په نه زړه سره قلم پورته کړ او دا فيصله مې وکړه چه په لنډه توګه له دلائلو سره د مسئلې وضاحت وليکم. مخکښې هر سړی د خپل ظرف (قابليت) او علمي استعداد په مطابق له هغه څخه ګټه اخيستلی شي. کم تر کمه چا ته خو د دې موقع په لاس نه ورځي چه د احنافو په نزد يو حديث هم نشته. الله تعالے دې مونږ ټولو ته سالمه پوهه او په صراط مستقيم باندې هدايت را بخښي او له هر ډول فتنو څخه مو دې پخپل حفاظت کښې وساتي. آمين.

## د عمل بالحديث په شکل کښې له قرآن څخه انحراف (مخ ګرځونه)

اهل حديث په حديثو باندې د عمل کولو مدّعيان دي ليکن په قرآن باندې عمل نه کوي. يوه مجتهد صاحب ما ته وويل چه آيا د امام پسې د سورهٔ فاتحه د نه ويلو په باره کښې کوم حديث شته؟ ما وويل چه په امام پسې د قرائت له کولو څخه په قرآن کښې منع راغلې ده. هغه وويل چه حديث يو هم نشته؟ حقيقت دا دی چه په امام پسې د فاتحه ويلو ممانعت له حديثو څخه هم ثابت

دی لکه څرنګه چه مونږ به ئې مخکښې بيان کړو انشاء الله تعالى. ما د هغه ښاغلي په خواب کښې د حديث په ځای د قرآن حواله ځکه ورکړه چه هغه تر ټولو مقدم دی ليکن په دې باندې سخت حيران شوم چه هغه د قرآني ارشاد منلو ته تيار نه وو او د هغه په مقابله کښې ئې خاص په حديث باندې ټينګار کاوه. د دې برعکس د احنافو اصول دا دي چه هغوی لومړی قرآنکريم ګوري، له هغه وروسته په احاديثو باندې نظر اچوي چه کوم حديث د قرآنکريم مطابق وي هغه را اخلي او کوم چه په ظاهره له قرآنکريم سره متعارض په نظر راشي د هغه يو داسې مفهوم لټوي چه د قرآن په خلاف نه وي. چنانچه د فاتحه خلف الامام مسئله وګوری په قرآنکريم کښې ارشاد دی: ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾ په دې کښې صاف حکم دی چه کله قرآنکريم ويل کيږي نو تاسو ئې په توجه سره واوری او چُپ او غلي پاتې شی. امام احمد رحمه الله فرمايي چه دا آيت په اتفاق سره په امام پسې د سورهٔ فاتحه د قرائت په باره کښې نازل شوی دی. اوس احاديث را واخلی په يوه حديث کښې هم دا حکم نشته چه له امام سره تاسو هم تلاوت کوی. ارشاد دی: **انما جعل الامام ليؤتم به فلا تختلفوا عليه فاذا ركع فاركعوا و اذا قال سمع الله لمن حمده فقولوا ربنا لك و الحمد و اذا سجد فاسجدوا.** په دويم حديث کښې دی: **ليؤمكم احدكم فاذا كبر فكبروا و اذا قال غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ فقولوا آمين الخ** په دې کښې له امام سره د ټولو افعالو د ادا کولو حکم ورکړی شوی دی ليکن **(واذا قرأ فاقرءوا)** ئې و نه ويل بلکه **(واذا قرأ فانصتوا)** په ويلو سره ئې له امام سره د ويلو څخه منع وفرمايله. احنافو دې حديث ته ترجيح ورکړه ځکه چه دا حديث د سند له لحاظه تر صحيح والي د قرآني حکم مطابق دی. د دويم حديث ئې داسې معناوي بيان کړې چه له هغو څخه تضاد پاتې نه شي.

همدارنګه د آمين په مسئله کښې احنافو لومړی د قرآنکريم خوا ته رجوع وکړه نو دا ارشاد لاس ته راغی چه ﴿ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً﴾ امام بخاري رحمه الله د عطاء رحمه الله قول را نقل کړی دی چه (آمين دعا دی) او قرآنکريم د دُعاء د اخفاء حکم ورکړی دی. پس له قرآنکريم څخه ثابته شوه چه آمين بايد سوکه وويل شي د دې لپاره احنافو هغه حديث ته ترجيح ورکړه په کوم کښې چه د آمين اخفاء مذکور دی او نور حديثونه ئې په دې باندې منطبق کړل.

د رفع يدينو (د لاسونو د پورته کولو) په اړه ئې هم په قرآن کريم باندې غور وکړ نو څرګنده شوه چه په لمانځه کښې د خشوع او سکون حکم ورکړ شوی دی. الله تعالى فرمايي: ﴿وَالَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ - قُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ﴾ اوس احاديث مطالعه کړی. په صحيح مسلم کښې روايت

دی چه صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم په لمانځه کښې دسلام په وخت په لاس سره اشارې کولې په دې باندې نبي کریمﷺ وفرمایل:
یعني دا څه حرکت دی چه په لمانځه کښې داسې لاسونه پورته کوی لکه څرنګه چه مست اسونه لکۍ اچوي، په لمانځه کښې په سکون پاتې شی. څومره زبردسته خبرداري ده. د سلام په وخت کښې لمونځ په ختمیدو وي چه کله په دې وخت کښې هم د لاسونو پورته کول د سکون په خلاف دی نو د لمانځه په منځ کښې د رکوع په وخت کښې د لاسونو پورته کول په څنګه مناسب وي؟
البته تکبیر تحریمه چونکه په لمانځه کښې داخل نه دی د دې لپاره په دې وخت کښې د لاسونو پورته کول په لمانځه کښې د سکون د حکم په خلاف نه دی. غرض دا چه په دې مسئله کښې هم د قرآني حکم له مخې احنافو د رفع یدین د نه کولو روایتونو ته ترجیح ورکړی دی. په دې باندې نور مسائل قیاس کړی چه احناف تر ټولو مخکښې د قرآنکریم خوا ته رجوع کوي بیا په احادیثو کښې هغه حدیث ته ترجیح ورکوي چه د قرآني نص مطابق وي.

## د حدیث د صحت معیار

اهل حدیث دا الزام لګوي چه احناف په ځینو مسائلو کښې د صحیح حدیث په خلاف عمل کوي. د غور وړ خبره دا ده چه دصحیح تعریف حدیث څه شی دی؟ اهل حدیث تقلید ته د ناجائز او حرام ویلو تر څنګ په دې باب کښې د حدیثو د امامانو بخاري، مسلم، ابو داؤد او داسې نور رحمهم الله تعالی تقلید کوي. کوم حدیث چه امام بخاريؒ صحیح ووائي هغه صحیح دی. که چیرته د حدیثو د امامانو رحمهم الله تقلید جائز بلکه ضروری دی چه له هغو پرته د یوه حدیث تصحیح نه شي کیدلی نو د فقهې د امامانو رحمهم الله تعالی تقلید ولې ناجائز دی؟
د حدیثو امامانو رحمهم الله د حدیث په صحت او نه صحت چه کوم اصول لیکلي دي هغه ئې د خپل اجتهاد له مخې ټاکلي دي، په هغو باندې کومه وحی نه ده نازله شوې. همدارنګه د فقهې د امامانو په نزد هم د حدیثو د تصحیح څه اصول مقرر دي کوم چه د فقهې په اصولو کښې مذکور دي چه له هغو څخه لاندیني دوه اصوله دځانګړي اهمیت درلودونکي دي.

۱ - کوم حدیث چه له کتاب الله یا سنتِ مشهوره سره زیات نژدې وي هغه به راجح وي.

۲ - د حضراتو صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم له جملې څخه چه کوم حضرات په تفقه کښې مشهور دي د هغو روایت د غیر فقیه په روایت باندې به راجح وي.

له دې ضروري توضیح څخه وروسته اوس د اصل مسئلې یعنې قرائت خلف الامام د ممانعت په اړه دلائل لیکل کیږي.

**قرآني نصوص:**

۱ وَلَا تَعْجَلْ بِالْقُرْاٰنِ مِنْ قَبْلِ اَنْ يُّقْضٰٓى اِلَيْكَ وَحْيُهٗ وَقُلْ رَّبِّ زِدْنِيْ عِلْمًا ○ (۲۰/۱۱۴)

په دې آيت کښې نبي کريم ﷺ ته دا تعليم ورکړ شوی دی چه د وحی د نازليدو په وخت پخپله ئې مه ورسره وايه. له دې څخه ثابته شوه چه د قرآن د تلاوت په وخت کښې هغه په چوپتيا سره اوريدل او ټول د هغه خوا ته متوجه کيدل او په هغه کښې تفکر او تدبّر شرعاً مامور به دی.

۲ لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ ○ اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَقُرْاٰنَهٗ ○ فَاِذَا قَرَاْنٰهُ فَاتَّبِعْ قُرْاٰنَهٗ ○ (۷۵/۱۶، ۱۷)

په دې آيت کښې هم نبي کريم ﷺ له جبريل عليه السلام سره له تلاوت کولو منع کړی شوی دی حالانکه دلته د قرآن د حفظ په غرض سره د يو ځای ويلو ضرورت هم وو. سره له دې الله تعالی د قرآنکريم د حفظ ذمه واري پخپله اخيستی او په خاموشي او توجه سره ئې د اوريدلو حکم وفرمايه. له دې څخه د قرآنکريم د دې ادب څومره سخت تاکيد ثابتيږي چه له قاري سره پخپله د تلاوت کولو په ځای د هغه قرائت په خاموشي او پوره توجه سره بايد واورول شي. بيا ئې د لاتقرأ په ځای (لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ) په ويلو سره دپوره چوپتيا مزيد تاکيد وکړ چه ژبه هم مه ښوروه. تر دې وروسته په تاکيد باندې له پاسه تاکيد لپاره دوباره فرمايي چه (فَاِذَا قَرَاْنٰهُ فَاتَّبِعْ قُرْاٰنَهٗ) د دې په تفسير کښې حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهما فرمايي **فاستمع له وانصت** (صحيح البخاري ج۲،ص۱، مسلم ج۱،ص۱۸۴، طيالسی ص۳۴۳)

د اتباع دوه معناوې دي يوه دا چه کوم کار متبوع کوي هغسې کار دې تابع کوي. بله دا چه په خاموشي سره اوريدل. له مذکوره آيت څخه ثابته شوه چه په قرائت کښې د اتباع معنٰی د يو ځای ويلو نه ده بلکه په خاموشي سره اوريدل دي. ځکه چه له يو ځای ويلو څخه منع شوې ده. د همدې لپاره حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهما د هغه تفسير (فاستمع له وانصت) سره کړی دی.

مونږ مخکښې يو حديث وړاندې کوو (انما جعل الامام ليؤتم به الخ د التمام) معنٰی اتباع ده. حافظ ابن حجر رحمه الله د دې په تشريح کښې فرمايي: **قال البيضاوی و غيره الائتمام الاقتداء و الاتباع ای جعل الامام اماما ليقتدی به ويتبع. (فتح الباری ج۲،ص۱۳۹)** له دې څخه ثابته شوه چه که چيرته په حديث کښې د واذا قرأ فانصتوا زياتوالی هم نه وای نو بيا به هم په دې سره له فاتحه خلف الامام څخه ممانعت شوی وای ځکه چه په رکوع، سجده او داسې نورو کښې د امام د اتباع معنٰی دا ده چه مقتدي هم له امام سره دا ارکان ادا کړي او په قرائت کښې د اتباع معنٰی دا ده چه په خاموشي سره ئې واوري. کما مرّ

۳ وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ○ (۷/۲۰۴)

دا آیت په لمانځه کښې د سورۀ فاتحه په اړه نازل شوی دی چه څرګند هدایت پکښې شوی دی چه کله امام قرائت وائي نو په هغه وخت کښې په مقتدیانو باندې فرض دی چه د امام قرائت واوري او چُپ و اوسيږي.

امام احمد رحمه الله په دې باندې اجماع را نقل کړې ده چه دا آیت د قرائت خلف الامام په اړه ده. د امام احمد رحمه الله د دې قول څو حواله جات په لاندې ډول دي.

۱ - علامه جمال الدین زیلعي رحمه الله فرمائي: قد اخرج البیهقی عن احمد رحمه الله قال اجمع الناس علی ان هٰذه الأیة فی الصلوة. (زیلعی ج۱، ص۲۳۲)

۲ - قال العلامة موفق الدین بن قدامة فی المغنی قال احمد رحمه الله الناس علی ان هٰذا فی الصلوة (الی قوله) و قال احمد فی روایة ابی داوٗد اجمع الناس علی ان هٰذه الأیة فی الصلوة. (مغنی ج۱، ص۶۰۵)

۳ - قال العلامة شمس الدین بن قدامة قال احمد رحمه الله فی روایة ابی داوٗد اجمع الناس علی ان هٰذه الأیة فی الصلوة. (شرح المقنع الکبیر ج۲، ص۱۳)

۴ - قال الامام ابن الهمام رحمه الله و اخرج البیهقی عن الامام احمد رحمه الله قال اجمع الناس علی ان هٰذه الأیة فی الصلوة. (شرح نقایة ج۱، ص۸۳)

۶ - غیر مقلدینو امام شیخ الاسلام ابن تیمیه فرمایي: و ذکر احمد بن حنبل رحمه الله الاجماع علی انها نزلت فی الصلوة و ذکر الاجماع علی انها لا تجب القراءة علی المأموم حال الجهر. (فتاوٰی ابن تیمیة ج۲، ص۱۴۳)

وقال ایضاً و قول الجمهور هو الصحیح فان الله سبحانه و تعالٰی قال: وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ۝ قال احمد رحمه الله اجمع الناس علی انها نزلت فی الصلوة. (فتاوٰی ابن تیمیة ج۲، ص۴۱۲)

۷ - غیر مقلد عالم مولانا عبد الصمد پشاوري پخپل کتاب (اعلام الاعلام فی القرائة خلف الامام) کښې لیکي: و الاصح کونها فی الصلوة لما روی البیهقی عن الامام احمد قال اجمعوا علی انها فی الصلوة. (اعلام الاعلام ص۱۹۰)

په مذکوره عبارت کښې له امام احمد رحمه الله څخه د بیهقي د اجماع روایت لره غیر مقلد عالم هم منلی دی. لهذا د مبارکپوري صاحب دا وینا صحیح نه ده چه «ما ته د امام بیهقي په معرفة السنن و الأثار او کتاب القراءة کښې دا قول تر لاسه نه شو». د بیهقي د روایت لیدونکي یو جماعت دی چه غیر مقلد او د غیر مقلدینو امام هم شته. د دغو ټولو په مقابله کښې که چیرته مبارکپوري صاحب

ته دا روایت تر نظر نه وي تیر شوی نو هغه ته دا ویل کیږي چه:

واذا لم تر الهلال فسلم لاناس رأوه بالابصار

د وجدان نشتوالی د نه وجود دلیل نه دی، بیا دا منطق هم څه عجیبه دی چه د بیهقي یواځې دوه کتابونه ئې ولیدل او فیصله ئې واوروله چه بیهقي دا روایت نه دی کړی. دا د استدلال کوم ډول دی چه کوم شی په دوه کتابونو کښې نه وي هغه به د بیهقي په یوه کتاب کښې هم نشته. برسیره پر دې له امام احمد رحمه الله څخه په نقل کښې بیهقي یواځې نه دی بلکه موفق الدین ابن قدامه، شمس الدین ابن قدامه او شیخ الاسلام ابن تیمیه هم ناقلین دي. کما مرّ.

له امام احمد رحمه الله څخه علاوه له حافظ ابن عبد البر رحمه الله څخه هم د اجماع قول منقول دی. و

نصه لا خلاف انه نزل فی هذا المعنٰی دون غیره. (اوجز المسالك ج۱، ص۲۴۸)

د اجماع تر ثبوت وروسته د دې آیت د شان نزول په اړه د مزید کوم روایت ضرورت نشته. سره له دې د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم، تابعینو او تر دوی وروسته رحمهم الله ارشادات ملاحظه کړی.

۱ - صلی ابن مسعود رضی الله عنه فسمع اناسا یقرؤن مع الامام فلما انصرف قال اما أن لکم ان تفهموا أما أن لکم ان تعقلوا وَإِذَا قُرِءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا کما امرکم الله تعالٰی. (تفسیر ابن جریر ج۹، ص۱۰۳)

۲ - قال عبد الله رضی الله عنه فی القراءة خلف الامام انصت للقرآن کما امرت فان فی القراءة لشغلا وسیکفیك ذٰلك الامام. (کتاب القراءة للبیهقی ص۴۳)

۳ - عن ابن عباس رضی الله تعالٰی عنهما فی قوله تعالٰی (وَإِذَا قُرِءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ۝) یعنی فی الصلٰوة المفروضة. (کتاب القراءة للبیهقی ص۴۳)

۴ - قال ابن عباس رضی الله تعالٰی عنهما المؤمن فی سعة من الاستماع الیه الّا فی صلٰوة مفروضة او مکتوبة او یوم جمعة او یوم فطر او یوم اضحی یعنی واذا قرئ القرآن الآیة. (کتاب القراءة ص۴۳)

له حضرت عبد الله ابن مسعود او عبد الله بن عباس رضی الله تعالی عنهم څخه د دې مضمون نور هم څه روایتونه شته. دلته یواځې له هر یوه څخه یواځې د دوه دوه روایتونو په نقل کولو باندې اکتفاء کوو.

په لومړي روایت کښې یو راوي محاربي دی. د ده په باره کښې یو غیر مقلد لیکلي دي چه د هغه نوم عبد الرحمٰن بن محمد بن زیاد دی کوم چه د آخرې درجې ضعیف دی.

لیکن د هغه ښاغلي دا دواړه دعوې غلطې دي. په دې سند کښې عبد الرحمٰن بن محمد بن زیاد

المحاربي نه دی بلکه يحيیٰ بن يعلي المحاربي دی کوم چه په اتفاق سره ثقه دی، په هغه باندې هیڅا جرح نه ده کړې، امام ابو حاتم او حافظ ابن حبان د هغه توثیق کړی دی (تهذیب التهذیب ج۱۱، ص۳۰۳)

عبد الرحمٰن بن محمد بن زياد المحاربي لره انتهائې ضعيف بلل هم غلط او سر تر پایه ظلم دی. د هغه په باره کښې اگر که ځینو د مضطرب، کثیر الغلط، یهم او داسې نورو الفاظ ویلي دي لیکن د دې لپاره صحیح نه دي چه دی د صحاح سته راوي دی. امام ابن معین، نسائي، ابو حاتم، ابن حبان، ابن سعد، ابن شاهین، بزار او دار قطني د هغه توثیق کړی دی. عثمان ابن ابي شیبه او ساجي ورته صدوق ویلي دي. امام وکیع فرمایي چه د اوږدو حدیثونو لوی حافظ وو. عجلي ئې په اړه لابأس به ویلي دي. (تهذیب التهذیب ج۶، ص۲۶۶)

تفسیر ابن جریر او ابن کثیر په ځینو نسخو کښې د کتابت په غلطۍ سره د عبد الله بن مسعود ﷺ د شاگرد نوم بشیر بن جابر لیکل شوی دی کوم چه قطعاً غلط دی، د مسند احمد بن حنبل ج۲، ص۳۸۳، مسند طیالسی ص۱۵، او صحیح مسلم ج۲، ص۳۹۲ کښې د یوه بل روایت په سند کښې یُسَیر بن جابر دی او همدا صحیح هم دی. (نووی ج۲، ص۳۹۲، تجرید اسماء الصحابة للذهبی ج۲، ص۱۵۳، استیعاب ج۱، ص۱۰۰/و ج۴، ص۱۵۸۳)

د یُسیر بن جابر حافظ ابن حبان، ابن سعد او امام عجلي توثیق کړی دی او عوام بن حوشب هغه لره صحابي گڼلی دی. (تهذیب التهذیب ج۱۱، ص۳۷۹) حافظ ابن عبد البر هم هغه ته صحابي ویلي دي (استیعاب ج۱، ص۱۰۰/ ج۴، ص۱۵۸۳)

د دویم حدیث یوه راوي عبد الوهاب ثقفي په حافظه کښې په آخري عمر کښې څه گډوډي راغلي وه لیکن په دې زمانه کښې هغه یو روایت هم نه دی بیان کړی. (میزان الاعتدال ج۲، ص۱۶۱)

د دریم حدیث یو راوي عبد الله بن صالح لره ابن عدي مستقیم الحدیث گڼلو تر څنگ لیکلي چه دا سړی په قصد سره دروغ نه وایه لیکن په سند او متن کښې به ئې غلطي کوله (تهذیب التهذیب ج۵، ص۲۵۶)

د ابن عدي دا جرح د حدیث د جمهورو امامانو د تعدیل په مقابله کښې کوم وزن نه لري، امام ابن معین، ابو حاتم، ابن حبان، عبد الملک بن شعیب، ابو زرعه، یعقوب بن سفیان او مسلمة بن قاسم د هغه توثیق کوي. ابو هارون الخریبي فرمایي چه ما له ابو صالح څخه زیات اثبت بل څوک نه دی لیدلی. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایي چه دی د صحیح البخاري راوي دی. امام بخاري رحمه الله

په الادب المفرد او جزء القرائت کښې هم له هغه څخه تخريج کړی دی. امام حاکم او ذهبي او حافظ ابن کثير د هغه سند صحيح، قوي او جيد ګڼلی دی.
ابن القطان فرمايي چه دی صدوق دی په هغه باندې هيڅ يو داسې الزام ثابت نه شو چه د هغه پر بناء د هغه روايت ته غير معتبر وويل شي. البته دی مختلف فيه ی. د هغه حديث حسن دی.
د هغه د مختلف فيه کيدو وجه دا ده چه خالد بن نجيح يو شرير سړی وو کوم چه د ده ګاونډي وو. هغه پرته له کومې وجې د هغه د بدنامولو کوشش کړی دی. (تهذيب التهذيب ج۵،ص۲۵۹، ۲۶۰/ تذکره ج۱،ص۲۵۶/مستدرك ج۲،ص۱۹۹/تفسير ابن کثير ج۳،ص۴۲۸)
د دې حديث د دويم راوي علي بن ابي طلحه باندې دوه اعتراضونه شوي دي. يو دا چه د هغه په باره کښې امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمايي: له اشياء منكرات.(ميزان ج۲،ص۲۲۸)
دويم اعتراض دا دی چه علي بن ابي طلحه ته له ابن عباس رضی الله تعالی عنهما څخه سماع حاصل نه دی ځکه دا روايت منقطع دی.
د لومړي اعتراض ځواب دا دی چه د "له اشياء منكرات" مطلب دا نه دی چه د هغه په روايت کښې کوم امر قادح دی بلکه مطلب دا دی چه په هغه کښې خرابي دا وه چه ده د خليفه په مقابل کښې را وتل جائز ګڼلو. و لکن له رأی سوء يری السيف کښې د دې تصريح دی. و قال الحافظ رحمه الله و نقل البخاری رحمه الله من تفسيره رواية معاوية بن صالح عنه عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما شيئا كثيرا فی التراجم وغيرها ولكنه لا يسميه يقول قال ابن عباس رضی الله تعالی عنهما او يذكر عن ابن عباس وقد وقفت علی السبب الذی قال فيه ابو داؤد يری السيف.(تهذيب التهذيب ج۷،ص۳۴۰) امام نسائي، امام ابو داؤد، ابن حبان او محدث عجلي د هغه توثيق کړی دی. (ميزان ج۲،ص۲۲۸/تهذيب التهذيب ج۷،ص۳۳۹)
امام مسلم رحمه الله له هغه څخه روايت کړی دی. (صحيح مسلم ج۱،ص۳۶۵)
د دويم اعتراض ځواب دا دی چه علي بن ابي طلحه او ابن عباس رضی الله تعالی عنهما په منځ کښې مجاهد بن جبير او سعيد بن جبير واسطه دی. او دا دواړه ثقه دي د دې لپاره دا سند له شبهې پرته صحيح دی. (ميزان الاعتدال ج۲،ص۲۲۸ / تهذيب التهذيب ج۷، ص۳۳۹ / فتح الباری ج۸،ص۳۳۲/ تفسير اتقان ج۱،ص۱۸۸)
امام جعفر نخاس پخپل کتاب الناسخ و المنسوخ کښې د علي بن ابي طلحه له دې تفسيري صحيفې څخه نقل کړی دی. (الاتقان ج۱،ص۱۸۸)
امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري کښې او امام ابن جرير، ابن ابي حاتم او ابن المنذر او

داسې نور هم په تفاسیرو کښې له همدې صحیفې څخه نقل کوي. (فتح الباری ج۸، ص۳۳۸)

د غیر مقلدینو امام نواب صدیق حسن خان صاحب لیکي: اما روایت از ابن عباس رضی الله تعالیٰ عنهما بطریق مختلف آمده اجود آنها طریق معاویة بن صالح از علی بن ابی طلحه از ابن عباس رضی الله تعالیٰ عنهما است، بخاری در صحیح خود اعتماد بر همیں طریق کرده پس بس ـ (اکسیر فی اصول التفسیر ص۱۱۰)

د څلورم حدیث راوي مسکین بن بکیر الحراني باندې اعتراض وارد شوی دی چه امام احمد او ابو احمد هغه وهمي او کثیر الخطاء ویلي دي. د دې ځواب دا دی چه د هغه وهم او خطا یواځې د سعید بن عبد العزیز له روایت سره خاص دی. پخپله ابو احمد تصریح کړې ده. ومن این کان مسکین یضبط عن سعید. (تهذیب التهذیب ج۱۰، ص۱۲۱) له سعید څخه پرته د هغه په روایت کښې هیڅ وهم نشته. چنانچه امام احمد، ابن معین، ابن حبان، ابن عمار او ابو حاتم د هغه توثیق کړی دی.

له حضرت عبد الله بن مسعود او عبد الله بن عباس رضی الله عنهما څخه د دې مضمون نور هم څو روایتونه شته. برسیره له دې دا ډول روایتونه له حضرت ابو هریره او عبد الله بن مغفل رضی الله عنهما څخه هم شته.

## د صحابي رضی الله عنه د تفسیر مقام

حاکم رحمه الله فرمایي چه د امام بخاري او امام مسلم رحمهما الله په نزد د صحابي تفسیر د مرفوع حدیث په حکم کښې دی. (مستدرك ج۱، ص۱۲۳) د امام حاکم خپل تحقیق هم همدغه دی (معرفة علوم الحدیث ص۲۰) اکثره علماء د صحابي تفسیر د مرفوع په حکم کښې ګڼي. (البدایة والنهایة ج۶، ص۲۳۳) علامه سیوطي رحمه الله په نزد هم د صحابي تفسیر مرفوع دی. (تدریب الراوی ص۶۵) علامه جزائري رحمه الله فرمایي چه کوم صحابي چه د وحی د نزول زمانه میندلې وي د هغه د هر یوه آیت شان نزول بیانول د مرفوع په حکم کښې دی. (توجیه النظر ص۱۶۵) نواب صدیق حسن خان لیکي: وکذا حکم اقوالهم فی التفسیر فانها اصوب من اقوال من بعدهم وقد ذهب بعض اهل العلم الی ان تفسیرهم فی حکم المرفوع. (الجنة فی الاسوة الحسنة بالسنة ص۹۶) وقال الحافظ ابن القیم تفسیر الصحابی حجة. (زاد المعاد)

د حضراتو صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم له جملې څخه بالخصوص حضرت عبد الله بن مسعود او عبد الله بن عباس رضی الله عنهما تفسیر ډیر لوړ مقام لري. عبد الله بن مسعود رضی الله عنه ته نبي کریم ﷺ د قرآن په ښوونکو کښې لومړی درجه ورکړې ده. (صحیح البخاری ج۱، ص۵۳۱/مسلم ج۱، ص۳۵۹) او وئې فرمایل چه د ابن مسعود تحقیق او عهد په مضبوطي سره قائم و نیسئ. (استیعاب ج۲، ص۲۵۹) حضرت ابن

عمر رضی الله عنهما به فرمائي چه ابن مسعود د علم انبار وو. **(استعياب ج۲،ص۲۵۹)** حضرت ابن عمر رضی الله تعالی عنهما فرمايي چه د ابن مسعود د علم انبار وو او دی ئې د قرآنکريم د ور ښوولو لپاره د کوفې خوا ته وليږه. **(بغدادی ج۱،ص۱۴۷)**

حضرت عقبة بن عامر ﷺ فرمايي چه تر نبي کريم ﷺ وروسته ما د پروردګار دنازل شوي احکامو تر حضرت ابن مسعود لوی عالم نه دی ليدلی. حضرت ابو موسیٰ ﷺ د دې وجه دا بيانوي چه ابن مسعود به هر وخت د نبي کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر باش اوسيده او نبي کريم ﷺ له ده څخه هيڅ وخت حجاب نه کاوه. **(صحيح المسلم ج۲،ص۲۹۳)** د دې لپاره حضرت ابن مسعود ﷺ په ښکاره ويل چه د په هغه خدای قسم چه له هغه نه بغير بل معبود نشته د قرآنکريم يو سورت او يو آيت داسې نشته چه د هغه د شان نزول علم ما ته نه وي چه په کوم موقع او کو حالت کښې نازل شوی دی او زه د کتاب الله له ځان څخه لوی عالم نه وينم. همدارنګه ئې وفرمايل چه ټولو صحابه وو ته په ښه توګه معلومه ده چه زه د کتاب الله له دوی ټولو څخه لوی عالم يم. **(صحيح البخاری ج۲، ص۷۴۸/صحيح مسلم ج۲،ص۲۹۳)** امام نووي رحمه الله فرمايي چه ابن مسعود ﷺ له خلفاء راشدينو څخه هم د کتاب الله لوی عالم دی. **(مسلم ج۲،ص۲۹۳)**

حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ باندې دا الزام لګيږي چه دی معوذتين له قرآنکريم څخه نه ګڼه. ليکن دا سراسر بهتان او افتراء ده. علامه ابن حزم فرمايي: **كل ما روی عن ابن مسعود رضی الله تعالیٰ عنه من ان المعوذتين و ام القراٰن لم يكونا فی مصحفه فكذب موضوع لا يصح. (محلی ج۱،ص۱۳)** علامه سيوطي فرمايي: **وما نقل عن ابن مسعود ﷺ باطل ليس بصحيح. (اتقان ج۱،ص۷۹)**

امام نووي رحمه الله هم په شرح المهذب کښې فرمايلي دي. امام سبکي فرمايي چه دا خبره له قطعي دليل څخه ثابته ده چه دا په ابن مسعود باندې افتراء ده او هغه له دې څخه با لکل بري دی **(طبقات ج۲،ص۲۰۷)**

د تفسير په فن کښې حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ نه وروسته دويمه درجه د حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله تعالی عنهما ده. حضرت عمر ﷺ غوندې د بصيرت خاوند هم د قرآن په تفسير کښې د هغه خوا ته رجوع کاوه. **(صحيح بخاری ج۲،ص۶۳۳)**

نبي کريم ﷺ د ده لپاره دُعاء کړي وه چه ای الله! هغه په دين کښې پوهه او د قرآنکريم په تفسير کښې مهارت ور په برخه کړه. **(مسند احمد ج۱،ص۳۲۸) قال الهيثمي رجاله رجال الصحيح. (مجمع الزوائد ج۹، ص۲۷۶) و صححه ابن كثير. (البداية والنهاية ج۸،ص۲۹۷) و قال ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما ابن عباس اعلم**

الناس بما انزل الله علی محمد ﷺ. (البداية والنهاية ج۹، ص۳۰۰) علامه ذهبي فرمايي چه دی د دين امام، د علم سمندر او ډير لوی عالم وو. (تذکره ج۱، ص۳۷)

له دې وروسته مونږ د (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا) د شان نزول په اړه دځينو تابعينو روايتونه نقل کوو. د قرآن په تفسير کښې تر صحابهٔ کرامو وروسته د تابعينو رحمهم الله درجه ده. د جمهورو امامانو په نزد د تابعينو تفسير حجت دی. (تفسير ابن کثير ج۱، ص۵۱۴) نواب صديق احمد خان صاحب وائي وهكذا تفسير التابعي حجة. (الجنة في الاسوة الحسنة بالسنة ص۹۶)

مجاهد بن جَبر رحمه الله

په تفسير کښې د تابعينو رحمهم الله له جملې په خاصه توگه حضرت مجاهد بن جبر رحمه الله مقام ډير لوړ دی، امام ذهبي رحمه الله فرمايي چه د ده امامت او د شان جلالت (لوړوالی) متفق عليه دی.
حضرت خصيف رحمه الله فرمايي چه دی د تفسير تر ټولو لوی امام وو. (تهذيب الاسماء ج۱، ص۸۳)
حافظ ابن کثير رحمه الله فرمايي چه دی د مفسرينو له امامانو څخه وو او د حضرت ابن عباس رضی الله عنه له خصوصي شاگردانو څخه وو او پخپلې زمانې کښې د تفسير تر ټولو لوی عالم وو. (البداية و النهاية ج۹، ص۲۲۴)

همدارنگه فرمايي چه مجاهد بن جبر رحمه الله د فنِ تفسير منلی شوی امام دی. سفيان ثوري به فرمايل چه کله تاسو ته د مجاهد تفسير در ورسيږي نو بيا د بل چا د تفسير حاجت نه پاتې کيږي. تر مجاهد وروسته سعيد بن جبير، عکرمه، عطاء بن رباح، حسن بصري، مسروق، سعيد بن المسيب، ابو العاليه ربيع بن انس، قتاده او ضحاک ابن مزاحم او داسې نورو رحمهم الله درجه ده. (تفسير ابن کثير ج۱، ص۵۱۴) نواب صديق حسن خان فرمايي: ابن تيميه گفته اعلم الناس بالتفسير اهل مكة كمجاهد مخکښې له ابن تيميه څخه نقل کوي چه له دې وجې څخه امام شافعي او امام بخاري رحمهما الله د ده په تفسير باندې پوره اعتماد کړی دی. (الاکسير فی اصول التفسير)

**اوس د مجاهد رحمه الله روايتونه ملاحظه کړئ:**

۵ - ابن ابي نجيح حضرت مجاهد بن جبر رحمه الله څخه روايت کوي: كان رسول الله ﷺ يقرأ في الصلوة فسمع قراءة فتى من الانصار فنزل واذا قرئ القرآن الأية. (كتاب القراءة للبيهقي ص۷۲)

۶ - ابو هاشم اسمٰعيل بن کثير المکي مجاهد بن جبر رحمه الله څخه روايت کوي: واذا قرئ القرآن فاستمعوا له قال في الصلوة. (کتاب القراءة ص۷۳)

۷ - حمید اعرج له حضرت مجاهد رحمه‌الله څخه روایت کوي: واذا قرئ القراٰن فاستمعوا له قال في الصلوٰة. (کتاب القراءة ص۷۲)

مونږ له مجاهد رحمه‌الله څخه په همدغو څو روایتونو باندې اکتفاء کوو او که نه نو له ده څخه د صحیحو اسنادو له مخې نور هم ګڼ روایتونه د همدې مضمون شته.

امام بیهقي د کتاب القرائت په مخ ۷۲ کښې فرمايي چه د مجاهد دا روایت منقطع دی آه، لیکن ابو زرعه. ابو حاتم او دار قطني غوندې مشهورو د حدیثو امامان په منقطع او مرسل کښې کوم فرق نه کوي. قال العلامة الجزائري رحمه‌الله وقد اطلق المرسل على المنقطع من ائمة الحديث ابو زرعة وابو حاتم والدار قطني. (توجيه النظر ص۲۴۳)

سعید بن المسیب رحمه‌الله:

امام شافعي رحمه‌الله د نورو تابعینو په مراسیلو په حجیت کښې څه خبره کوي لیکن د صحابهٔ کرامو رضي‌الله‌عنهم د مراسیلو غوندې د سعید بن المسیب مرسل هم حجیت مني. (تدريب الراوي ص۱۲۰) امام ابن معین فرمايي چه د ده مراسیل تر ټولو صحیح دي. (تدريب الراوي ص۱۲۳) امام احمد رحمه‌الله فرمايي چه د ده ټول مراسیل صحیح دي. (تذكرة ج۱، ص۵۱) قال احمد بن حنبل رحمه‌الله مرسلات سعيد بن المسيب اصح المرسلات. (تدريب الراوي ص۱۲۳) حاکم فرمايي چه په ټولو مراسیلو کښې صحیح ترین مراسیل د ده دي. (معرفة علوم الحديث ص۲۵) امام بیهقي د ده مراسیل اصح المراسیل ګڼي. (السنن الكبرٰى ج۱، ص۲۲۱) علامه جزائري فرمايي چه په مراسیلو کښې صحیح ترین مراسیل د سعید بن المسیب دي. (توجيه النظر ص۱۶۶)

امام نووی فرمايي چه د ده په امامت او جلالت باندې د ټولو اتفاق دی، په علمي فضیلت او ټول اعمال خیر کښې له خپلو ټولو هم معاصرو څخه ممتاز وو او د ده په تفوق (لوړوالي) او برتري (بهتري) باندې د ټولو علماوو اتفاق دی. حافظ ابن حبان رحمه‌الله فرمايي چه که دی پخپلې زمانې کښې د مدینې د خلکو سردار وو. (تهذيب الاسماء ج۱، ص۲۲۰) حافظ ذهبي ده لره د تابعینو په مشرانو کښې شماروي. (تذكرة ج۱، ص۴۸) ابن حماد رحمه‌الله فرمائي چه په ده کښې فقه، زهد، ورع، عبادات او ټول علمي او عملي کمالات یو ځای شوي وو. (شذرات الذهب ج۱، ص۱۰۳) حافظ ابن کثیر فرمايي چه دی على الاطلاق د تابعینو سید وو، حضرت ابن عمر رضي‌الله‌عنهما ده ته احد المتقین ویل. (البداية والنهاية ج۹، ص۹۹) امام یحیٰی بن سعید به ویل چه له ده څخه به چه کله د کوم آیت د

تفسير پوښتنه کيدله نو ده به ويل چه مونږ د قرآن په تفسير کښې خپله رايه نه داخلوو بلکه يواځې هغه ويلی شو چه د هغه مونږ ته علم وي. (تفسیر ابن کثیر ج۱، ص۶)

د ده روايت په لاندې ډول دی:

۸ - حضرت قتاده رحمه الله له حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله څخه روايت کوي. **واذا قرء القرآن فاستمعوا له وانصتوا قال في الصلوة.** (کتاب القراءة ص۸۵)

د دې روايت په سند کښې حماد بن سلمه دی. هغه ته علامه ذهبي الامام، الحافظ، المحدث او د شيخ الاسلام غوندې القاب ورکوي. (تذکره ج۱، ص۱۸۹) امام احمد رحمه الله فرمايي چه کوم سړی چه د حماد بن سلمه په حق کښې څه وائي **فاتهمه على الاسلام** يعنې هغه منافق وګڼی. (تذکره ج۱، ص۱۹۰) له امام ابن معين څخه هم همدغه الفاظ منقول دي. (تهذيب التهذيب ۳، ص۲۴۰) نواب صديق حسن خان صاحب فرمايي چه: گويم حماد بن سلمه امام است تفردش ما دام که در مرويش مانع از اصول نبود مضر نيست. (بدور الاهلة ص۳۳۷) په آخر کښې د هغه په حافظه کښې لږ غوندې تغير راغلی وو. (تقريب ص۱۰۱) ليکن د حديثو د اصولو منل شوې قاعده دا ده چه د ثقه رواتو روايتونه د لږ غوندې نسيان له وجې ردول صحيح نه دي. د تفصيل لپاره مفتح المغيث ص۱۳ ملاحظه کړی. په: لسان الميزان ج۱، ص۱۷، ميزان الاعتدال ج۲، ص۲۳۱، ج۲، ص۲۵۵، او بغدادی ج۱۳، ص۱۴۰ کښې هم د لږ وهم او کم تغير له وجې په ثقاتو باندې اعتراض کوونکو سخت ترديد او نکير شوی دی.

په دې روايت باندې دا اعتراض شوی دی چه په دې کښې قتاده مدلس دی د دې لپاره د هغه عنعنه مقبوله نه ده. د دې ځواب دا دی چه د حضرت قتاده رحمه الله تدليس د حديثو امامانو غير مضر (تاوان نه رسوونکی) ګڼلی دی. علامه جزائري رحمه الله له ابن حزم رحمه الله څخه د داسې مدلسينو فهرست نقل کوي چه د هغو تدليس د روايت په صحت باندې اثر نه اچوي. **منهم كان جلة اصحاب الحديث وائمة المسلمين كالحسن البصرى و ابى اسحق السبيعى و قتادة بن دعامة و عمرو بن دينار و سليمان الاعمش وابى الزبير وسفيان الثورى وسفيان بن عيينة.** (توجيه النظر ص۲۵۱)

امام حاکم رحمه الله فرمايي چه د کومو مدلسينو تدليس تاواني دي د هغو له جملې څخه ابو سفيان طلحة بن نافع اوقتادة بن دعامه په ځانګړې توګه د يادولو وړ دي. (معرفة علوم الحديث ص۱۰۳) په صحيحينو کښې د قتاده روايتونه له عنعنې سره سره بيخي ډير دي. دا د صحيحينو خصوصيت نه شي ويل کيدلی د دې لپاره امام حاکم او ابن حزم نوموړې فيصله عامه ده. په معرفة علوم الحديث مخ ۱۰۷ کښې د سليمان شاذ کوفي قول منقول دی چه د اعمش و قتاده يواځې هغه

روايتونه معتبر دي چه په هغو كښې د سماع تصريح موجود وي. ليكن لږ غونډې په لسان الميزان ج۱، ص۸۴ كښې پخپله د سلميان شاذ كوفي (تانا بانا) هم وګورى. د حديثو امامانو هغه ته دا القاب وركړي دي: كذاب، د احاديثو واضع، شرابي، بيهوده، نامراد، عدو الله، خبيث، د وينځو په لوبولو باندې متهم.

حافظ ابن حجر رحمه الله پخپل كتاب طبقات المدلسين كښې قتاده د مدلسينو په دريمې طبقې كښې ګڼي چه د هغو عنعنه قبول نه دي. ليكن پخپله حافظ رحمه الله په فتح الباري كښې د قتاده منعن روايتونه صحيح بولي. د مثال په توګه ج۲، ص۲۰۲ وګورى او پخپله د حافظ فيصله ده چه د هغه په نظر كښې د فتح الباري تحقيق زيات راجح او د اعتماد وړ دى. د مدلسينو طبقات د ده د ابتدائي دور تصنيف دى او په دې زمانې كښې په تصنيفونو باندې دى پخپله مطمئن نه دى. چنانچه قاضي شوكاني فرمايي: **ونقل عنه انه قال لست راضيا عن شيء من تصانيفي لاني عملتها في ابتداء الامر ثم لم يتهيأ لي من يحررها مع سوى شرح البخاري ومقدمته والمشتبه والتهذيب ولسان الميزان وروى عن في موضع اٰخر انه اثنى على شرح البخاري والتعليق والنخبة.(البدر الطالع ص۸۹ طبع ۱۳۴۸ هجرى)** له دې څخه ثابته شوه چه حافظ رحمه الله په طبقات المدلسين كښې د قتاده د عنعنه په باره كښې چه څه ليكلي دي وروسته ئې له هغو څخه رجوع كړې ده.

## حضرت حسن بصري رحمه الله

۹ - منصور له حضرت حسن بصري رحمه الله څخه روايت كوي چه ده وفرمايل. **واذا قرء القراٰن فا ستمعوا له وانصتوا قال في الصلوٰة.(كتاب القراءة ص۵۰)**

امام المحدثين علي بن المديني فرمايي چه د حسن بصري رحمه الله مراسيل چه ثقه راوي ئې نقل كړي با لكل صحيح وي. **(تدريب الراوى ص۱۲۳)**

ابن سعد فرمايي چه حسن بصري جامع الكمالات، عالم، د لوړي مرتبې خاوند، رفيع المنزله، فقيه، مامون، عابد، زاهد، وسيع العلم، فصيح، بليغ، حسين او جميل وو. **(طبقات ابن سعد ج۷ ص۱۱۵)** علامه ذهبي فرمايي چه دى د علم سمند، فقيه النفس، كبير الشان، عديم النظير او بليغ التذكير وو. **(تذكرة ج۱، ص۶۲)** امام نووي فرمايي چه د ده د شان په جلالت باندې د ټولو اتفاق دى. **(تهذيب الاسماء ج۱، ص۱۶۱)** ابو بكر الهندلي فرمايي چه حسن بصري رحمه الله به تر هغو پورې د يوه سورت تفسير او د هغه شان نزول او داسې نورو پوره علم نه حاصلاوه تر هغو پورې به مخكښې نه تلو. **(شذرات ج۱، ص۱۳۷)** دى د فقهې لوى امام او د بصرې لوى مفتي وو. قتاده فرمايي چه دى د

حلالو او حرامو تر ټولو لوی عالم وو. (طبقات سعد ج۱،ص۱۱۸،قسم اول) حافظ ابن کثیر رحمه الله د ده په حق کښې الامام الفقیه المشهور احد التابعین الکبار الاجلاء لیکي او فرمایي چه دی په علم، عمل او اخلاص کښې ځانګړی وو. (البدایة والنهایة ج۹،ص۲۶۹) نواب صدیق حسن خان صاحب فرمایي چه حسن بصري او محمد بن القرظي و ابو العالیة الریاحي او داسې نور رحمهم الله این همه قدماء مفسرین اند وغالب اقوال ایشان متلقی از صحابه رضی الله عنهم بوده است. (اکسیر ص ۱۱۰)

## امام زهري رحمه الله

۱۰ - یونس له امام زهري رحمه الله څخه روایت کوي: قال لا یقرأ من وراء الامام فیما یجهر به الامام یکفیهم قراءة الامام وان لم یسمعهم صوته ولکن یقرؤن فیما لا یجهر به سرا في انفسهم ولا یصلح لاحد خلفه ان یقرأ معه فیما جهر به سرا ولا علانیة قال الله تعالی: وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ○ (کتاب القراءة ص۵۷) په سرّي لمونځونو کښې د قرائت خلف الامام حکم به مخکښې راشي انشاء الله تعالی. دلته یواځې دا مقصود دی چه امام زهري رحمه الله هم د واذا قرئ القرآن الأیة. شان نزول په لمانځه کښې د قرائت په باره کښې بولي.

امام شافعي رحمه الله فرمایي چه زهري په حدیثو، تفسیر او د رجالو په توثیق کښې امام دی. (الرسالة للامام الشافعي ص۶۳) حافظ ابن کثیر د ده په باره کښې فرمایي چه احد الاعلام من ائمة الاسلام، تابعی جلیل و اعلم الناس. (البدایة والنهایة ج۹،ص۳۴۰) امام بیهقي فرمایي چه د ده په زمانه کښې له ده څخه پورته د حدیثو حافظ، عالم او د حدیثو جامع او مرتب بل څوک نه وو. (کتاب القراءة ص۵۷) امام ابن المدیني فرمایي چه په حجاز کښې د ثقاتو ټول علم د زهري او عمرو بن دینار تر منځ تقسیم وو. (تذکرة ج۱،ص۹۹) عمر بن عبد العزیز رحمه الله به ویل چه اوس له زهري څخه پورته څوک د پورته شوي سنت پوهیدونکی نه دی پاتې شوی. (تذکرة ج۱،ص۹۹) عمرو بن دینار به ویل چه ما په حدیثو کښې څوک تر ده زیات انصّ نه دی لیدلی. (تهذیب التهذیب ج۹،ص۴۴۸) ابن خلکان لیکي چه د مدینې د اوه وارو مشهورو فقهاوو علم د ده په سینه کښې محفوظ وو. (فیات الاعیان ج۱،ص۴۵۱) حافظ ابن تیمیه فرمایي چه دی پخپل وخت کښې د سنتو او حدیثو لوی امام وو. (فتاوی ابن تیمیة ج۲،ص۱۳۵)

## ابو العالية الرياحي رحمه الله

۱۱ - مهاجر ابو العاليه رياحي رحمه الله څخه روايت كوي: **كان النبي صلى الله عليه وسلم اذا صلى قرأ فقرأ اصحابه فنزلت فاستمعوا له الآية فسكت القوم وقرأ النبي صلى الله عليه وسلم.** (كتاب القراءة ص۶۲)

امام نووي رحمه الله فرمايي چه ابو العاليه رياحي له كبارو تابعينو څخه وو، ابو القاسم طبري فرمايي چه د ده په توثيق باندې ټول متفق دي. (تهذيب الاسماء ج۱، ص۲۵۱)
ابو بكر بن داؤد وائي چه تر صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم وروسته ابو العاليه څخه پورته څوک د قرآن عالم نه وو. (تذكرة ج۱، ص۵۸) ابن سعد ده ته كثير الحديث وائي. (طبقات ابن سعد ج۷، ص۸۵) پخپله امام بيهقي په لمانځه كښې د قهقهې حديث نه بغير د ده پاتې ټول حديثونه صحيح بولي. (السنن الكبرىٰ ج۱، ص۱۴۷) امام عجلي فرمايي چه دی له ثقه او لويانو تابعينو څخه دی. امام ابن عدي فرمايي چه د په لمانځه كښې د خندا له حديث څخه پرته د ده ټول احاديث صحيح دي. (تهذيب التهذيب ج۳، ص۲۸۵) مولي طاش كبري زاده فرمائي چه دی د لويانو تابعينو څخه وو. د نبي كريم ﷺ تر وفات يواځې دوه كاله وروسته ئې اسلام راوړ او د حضرت ابو بكر صديق رضي الله عنه په خدمت كښې حاضر شو. د حضرت عمر رضي الله عنه پسې ئې لمونځ كړی دی او له صحيح روايت څخه ثابت دی چه ده حضرت عمر رضي الله عنه ته درې ځله قرآنكريم ور اورولی وو. (مفتاح السعادة ج۱، ص۳۶۴/ تهذيب التهذيب ج۳، ص۲۸۴)

**قال الذهبي اما اذا اسند ابو العالية فحجة.** (ميزان ج۱، ص۳۴۰) له دې څخه څرګندېږي چه د ابو العاليه مرسل حجت نه دی ليكن جمهورو محدثينو د ذهبي دا قول نه دی قبل كړی د دې لپاره حافظ ابن حجر رحمه الله دې لره په تهذيب التهذيب كښې نه دی نقل كړی.

## عبيد بن عمير و عطاء بن ابي رباح رحمهما الله

۱۲ - طلحه بن عبيد الله بن كريز له عبيد بن عمير او عطاء بن ابي رباح رحمهما الله څخه روايت كوي: **انما ذلك في الصلوة يعني واذا قرئ القرآن فاستمعوا له وانصتوا الآية.** (تفسير ابن جرير ج۹، ص۱۱۰/ تفسير ابن كثير ج۳، ص۶۲۳) علامه ذهبي فرماي چه عبيد بن عمري عالم، واعظ او د لوی قدر خاوند وو. (تذكرة ج۱، ص۴۸) ابن معين، ابو زرعه او ابن حبان ده ته ثقه ويلي دي. عجلي فرمائي چه دی له ثقه او كبارو تابعينو څخه دی. حضرت ابن عمر رضي الله عنهما د ده د وعظ مجلس ته به حاضريده او د ده به

نې تعریف کاوه (تهذیب التهذیب ج۶، ص۶۱)

عطاء بن رباح رحمه الله ته ذهبي د مکې د خلکو مفتي، محدث، القدوة او العلم ویلي دي (تذکره ج۱، ص۹۲) ابن حبان فرمايي چه دی په فقه، ورع او فضل کښې د تابعینو سردار دی. حافظ ابن حجر دی ثبت، حجه، امام او کبیر الشان لیکي. (تهذیب التهذیب ج۷، ص۲۰۷) حافظ ابن کثیر فرمايي چه دی له کبارو، ثقاتو او د لوړې مرتبې له تابعینو څخه وو، له دوه سوه صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم سره ملاقات شوی دی. ابن سعد فرمائي چه دی ثقه، فقیه، عالم او کثیر الحدیث وو. (البدایة والنهایة ج۹، ص۳۰۶)

## محمد بن کعب القرظي رحمه الله

۱۳ - ابو معشر محمد بن کعب رحمه الله څخه روایت کوي چه نبي کریم ﷺ به چه کله په لمانځه کښې قرائت کاوه نو په ده پسې به صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم هم له ده سره قرائت کاوه. په دې باندې د سورهٔ اعراف دا آیت (واذا قرئ القرآن فاستمعوا له وانصتوا ـ الآية) نازل شو (کتاب القراءة ص۴۳) ابن حبان فرمايي چه محمد بن کعب القرظي رحمه الله په علم او فقه کښې د مدینې منورې له فاضل ترینو علماوو څخه وو. (تهذیب التهذیب ج۹، ص۴۲۱) امام نووي رحمه الله فرمائي چه دی د تابعینو له امامانو څخه وو. (تهذیب الاسماء ج۱، ص۹۰ قسم اوّل) حافظ عجلي ده ته ثقه، صالح او عالم قرآن ویل. ابن سعد ده ته ثقه، عالم او کثیر الحدیث وائي. عون بن عبد الله فرمائي چه ما په تفسیر قرآن کښې له هغه څخه لوی عالم څوک نه دی لیدلی. (البدایة و النهایة ج۹، ص۲۳۰/ تهذیب التهذیب ص۴۲۰، ج۹)

علامه ذهبي فرمايي چه دی د قرآن مفسر وو. (دول الاسلام ج۱، ص۵۶) حافظ ابن کثیر فرمايي چه دی د قرآن د تفسیر عالم، صالح او عابد سړی وو. (البدایة و النهایة ج۹، ص۲۵۷) نبي کریم ﷺ پیشګوئي (وړاند وینه) کړې وه چه په بنو قریظه کښې به یو سړی پیدا شي چه د تفسیر په فن کښې به د هغه مثال نه وي. ائمه رحمهم الله فرمايي چه دا وړاندوینه د محمد بن کعب القرظي په باره کښې ده. (البدایة والنهایة ج۹، ص۲۳۰) مولانا مبارکپوري فرمايي چه په مدینه کښې تر محمد بن کعب نه وروسته زید بن اسلم غوندې د قرآن مفسر بل نه وو. (تحفة الاحوذی ج۱، ص۲۱۷)

مبارکپوري صاحب د مذکوره روایت یو راوي له ځینو محدثینو څخه ضعیف والی نقل کړی دی لیکن امام احمد، ابن معین او ابو زرعه غوندې جلیل القدرو امامانو د ده توثیق کړی دی. ابن عدي فرمايي چه له ده څخه لویو لویو ثقاتو روایتونه کړي دي (میزان الاعتدال ج۳ص۲۲۴/ تهذیب

التهذيب ج۱۰،ص۴۲۰) امام نعيم ده تل كيّس او حافظ ويلى دى. (تهذيب التهذيب ج۱۰،ص۴۲۰) علامه ذهبي فرمايي چه د ده علم ظرف وو او امام نسائي له هغه ره احتجاج كړى دى. (التذكره ج۱،ص۲۱۶) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چه دى د نسائي، ابو داؤد، ترمذي او ابن ماجه راوي دى (تهذيب التهذيب ج۱۰،ص۴۱۹)

برسيره پر دې چه كومو محدثينو ده ته ضعيف ويلى دى هغوى هم دى يواځى د حديثو په روايت كښې ضعيف بولي. د تفسير په فن كښې دى په اتفاق سره منل شى امام وو. لكه څرنگه چه امام احمد بن حنبل، محمد بن عثمان بن ابي شيبة، علي بن المديني او عمرو بن علي الفلاس او داسې نور د حديثو امامان رحمهم الله فرمايي چه د ابو معشر د تفسير په اړه روايتونه په خصوصي توگه هغه روايتونه چه له محمد بن قيس او محمد بن كعب څخه ئې نقل كوي پرته له چون او چرا څخه صحيح او معتبر دي. (تهذيب التهذيب ج۱۰،ص۴۲۰) د ده مذكوره روايت د تفسير په باره كښې دى او له محمد بن كعب څخه دى. د دې لپاره په اتفاق سره صحيح او معتبر دى همدارنگه له ده څخه د تاريخ روايت هم په اتفاق سره حجت دى. امام خليلي فرمايي: وتاريخه احتج به الائمة وضعفوه في الحديث. (تهذيب التهذيب ج۱۰،ص۴۲۲) لكه محمد بن اسحاق چه يواځې د احكامو په اړه په احاديثو كښې ضعيف دى ليكن د مغازي امام دى.

## حجيّة المرسل

د آيت كريمه د شان نزول په اړه له حضراتو صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله څخه چه كوم روايتونه پورته نقل شول دا د هغوى خپل خيال نه دى بلكه د مرفوع حديث په حكم كښې دى. يعني د هغو له روايت څخه ثابتيږي چه پخپله صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم دا شان نزول بيان كړى دى. د صحابه وو د تفسير په اړه پورته له گڼو حوالو څخه ثابته شوې ده چه په حكم دې مرفوع كښې دى. همدارنگه د امت د جمهورو په نزد د تابعينو رحمهم الله تفسير هم په حكم د مرفوع دى. د دې لپاره جمهور محدثين او د دين امامان مرسل لره حجت مني. ټول تابعين او له هغو وروسته د دويمې پيړۍ تر آخره پورې د حديثو امامان په اجماع سره د مرسل د حجيت قائل وو.

و قال ابن جرير اجمع التابعون باسرهم على قبول المرسل ولم يأت عنهم انكاره ولا عن احد من الائمة لعدهم الى رأس المأتين قال ابن عبد البر كانه يعني الشافعي اوّل من ردّه. (توجيه النظر للجزائري ص۳۲۵/ تدريب الراوي للسيوطي ص۱۲۰/ منية الالمعي للعلامة قاسم بن قطلوبغا ص۲۷) و قال العلامة الكوثري رحمه الله: و الاحتجاج بالمرسل كان سنة متوارثة جرت عليه الامة في القرون الفاضلة حتى قال ابن

جریر ردّ المرسل مطلقاً بدعة حدثت فی رأس المأتین اه کما ذکره الباجی فی اصوله و ابن عبد البر فی التمهید و ابن رجب فی شرح علل الترمذی (تأنیب الخطیب ص۱۵۲) واما المراسیل فقد کان یحتج بها العلماء فیما مضی مثل سفیان الثوری و مالك والاوزاعی حتی جاء الشافعی فتکلم فیه. (توجیه النظر ص۲۲۵) و کان ذکر النواب صدیق حسن خان فی الحطة فی ذکر الصحاح الستة ص۱۰۶۔

همدارنګه نواب صاحب فرمايي: اعلال بارسال موجب ترک او نیست زیرا که قبول مراسیل مذهب جمع از فحول علماء اصول است. (دلیل الطالب ص۳۲۵)

د مرسل د حجیت تر ټولو مخکښې امام شافعي رحمه الله انکار کړی دی. تر ده مخکښې د مرسل په قبول والي باندې اجماع وه، امام احمد رحمه الله هم مرسل لره حجت ګڼي. امام شافعي رحمه الله هم د مرسل د حجیت قطعاً انکار نه کاوه بلکه د ځینو شرائطو سره هغه هم مرسل قبلاوه. قال الحافظ رحمه الله وقال الشافعی رحمه الله یقبل اذا اعتضد بمجیئه من وجه اٰخر یباین الطریق الاولیٰ مسنداً کان او مرسلا. (شرح نخبة الفکر ص۵۲) بلکه شیخ الاسلام زکریا انصار فرمايي چه د مرسل مؤید اګر که ضعیف هم وي نو بیا هم قبلیږي. (حاشیهٔ شرح نخبه)

و قال الامام النووی رحمه الله و مذهب مالك و ابی حنیفة و احمد و اکثر الفقهاء رحمهم الله تعالیٰ ان یحتج به و مذهب الشافعی رحمه الله انه اذا انضم الی المرسل ما یعضده احتج به و ذٰلك بان یروی مسنداً او مرسلاً من جهة اخریٰ او یعمل به بعض الصحابة رضی الله تعالیٰ عنهم او اکثر العلماء. (مقدمة النووی لشرحه لصحیح المسلم ص۱۶)

امام ابن تیمیه فرمايي: اذا کان المرسل من وجهین کل من الراویین اخذ العلم عن شیوخ اٰخر فهذا یدل علی صدقه فان مثل ذٰلك لا یتصور فی العادة تماثل الخطاء فیه و تعمد الکذب. (منهاج السنة ج۴ ص۱۱۷) د داسې مرسل په حجیت باندې امام بیهقي په کتاب القرائت ص۱۴۳ کښې، حافظ ابن قیم په زاد المعاد ج۱، ص۱۰۵ کښې او مبارکپوري په ابکار المنن ص۱۳۸ کښې اتفاق را نقل کړی دی همدارنګه مبارکپوري فرمايي: د معتضد مرسل په حجت والي کښې هیڅ شبهه نشته. (تحقیق الکلام ج۱، ص۹۱) مونږ پورته د تدریب الراوي ص۱۲۰ په حوالې سره لیکلي دي چه سعید ابن المسیب رحمه الله مراسیل امام شافعي رحمه الله هم په هر حال کښې حجت تسلیموي اګر که کوم بل مرسل یا مسند د هغه مؤید (تائید کوونکی) نه وي

غرض دا چه د آیت کریمه (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا) د شان نزول په اړه پورتني مذکوره مراسیل د امام شافعي او امام ابن تیمیه د شرائطو مطابق دي او په اجماع سره حجت دي

## د غير مقلدينو امامان

د غير مقلدينو امامانو هم د دې څرګند حقيقت په اعتراف مجبور دي. چنانچه امام بيهقي د چا چه په کتاب القرائت باندې د غير مقلدينو د مسلک مدار دی فرمايي: انا لا ننكر نزول هذه الأية في الصلوٰة اوفى الصلوٰة والخطبة كما ذهب اليه من ذكرنا قوله من سلف هذه الامة.(جزء القراءة ص۶۶)

وقال الشوكاني لان عمومات القرآن والسنة قد دلت على وجوب الانصات والاستماع والتوجه حال قراءة الامام للقرآن.(نيل الاوطار ج۲،ص۲۲۶)

و قال ابن تيمية الذين ينهون عن القراءة خلف الامام جمهور السلف و الخلف و معهم الكتاب و السنة الصحيحة والذين اوجبوها فحديثهم ضعفه الائمة.(تنوع العبادات ص۸۶)

و قال ايضاً و قول الجمهور هو الصحيح فان الله سبحانه و تعالى قال (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ○) قال احمد اجمع الناس على انها نزلت في الصلوٰة.(فتاوٰى ابن تيمية ج۲،ص۱۴۳)

نواب صاحب فرمايي: «اين آيت دلالت نمی کند مگر بر منع قرائت در حال جهر امام بقرائت لقوله: (فا ستمعوا) و استماع نمی باشد مگر از برائے قرائت مجهور بهانه برائے قرائت مخافتت».

اوس مونږ په قرآني نصّ کښې د مخالفې ډلې رکيک (سُست او کمزوري) تاويلات بيانوو.

### ۱ - د مبارکپوري تعنّت (نکته چيني يا باطله وينا):

مبارکپوري صاحب په تحقيق الکلام او تحفة الاحوذي کښې فرمايي چه د دې آيت خطاب مؤمنانو ته نه دی بلکه کافرانو ته دی کومو چه د تبليغ په وخت کښې شور او غوغا جوړاوه او دا ئې ويل چه قرآن مه اورئ لکه څرنګه چه امام رازي پخپل تفسير کبير ج۴ ص۵۰۲ کښې ليکلي دي او دليل ئې دا وړاندې کړی دی چه که چيرته واقعي هم خطاب مؤمنانو ته وای نو دلعلکُم د لفظ به څه ضرورت وو؟ ځکه چه دا لفظ د ترجي (اميد يا هيله) لپاره راځي او مؤمن په هر حال کښې د خداوندي رحمت مورد او مستحق دی.

د مبارکپوري صاحب دا تحقيق يواځې تعنّت دی ځکه چه مونږ پورته د أمت له اجماع څخه ثابته کړه چه دا آيت کريمه په لمانځه کښې د قرائت په باره کښې نازل شوی دی.

### امام رازي

د أمت د اجماع په خلاف دامام رازي رحمه الله خيال معتبر نه دی په ځانګړې توګه په داسې حال کښې چه ده د دې خيال په تائيد کښې هيڅ يو روايت نه دی وړاندې کړی. که چيرته ده کوم روايت نقل کړی هم وای نو بيا به هم د اعتماد وړ نه وای ځکه چه د حديثو امامان ئې اګر که د عقلياتو

امام مني ليکن په تفسير او حديث کښې ئې ضعيف ګڼي.

چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي: امام رازي د عقلياتو مسلم (منل شوی) امام دی ليکن په احاديثو او آثارو کښې د هغه مرتبه کمزورې ده له دې وجې څخه د هغه په تفسير کښې وچ او لانده هر څه دي. (لسان الميزان ج۴،ص۴۲۶)

قال الامام السيوطی رحمه الله قال ابو حيان فی البحر جمع الامام الرازی فی تفسيره اشياء کثيرة طويلة لا حاجة لها فی علم التفسير ولذلك قال بعض العلماء فيه کل شیء الا التفسير. (الاتقان ج۲،ص۱۹۰) وقال المولی طاش کبری زاده رحمه الله قال ابن السبکی فی طبقاته الکبریٰ اعلم ان شيخنا الذهبی ذکر الامام فی کتاب الميزان فی الضعفاء وهذا امر لا معنی له من وجوه اعلاها انه ثقة حبر من احبار الامة وادناها انه لا رواية له وذکره فی الرواة مجرد فضول وتعصب وتحامل تقشعر منه الجلود. (الی قوله) عمد الی امام من ائمة المسلمين وادخله فی جماعة ليس هو منهم اعنی رواة الحديث فان الامام لا رواية له. (مفتاح السعادة ج۱،ص۴۴۸)

نواب صاحب فرمائي: «مؤلف وی از علم حديث بے خبر است ودر علوم کلام و فنون رسميه امام اهلِ زمان، بعضے از اهل معرفت بعلوم کتاب و سنت گفته اند: فيه کل شئ الا التفسير». (اکسير ص۱۰۴)

همدارنګه فرمايي: «رازي از علم حديث خبر ندارد». (اکسير ص۱۱۳)

بيا د «لعل» له لفظ څخه استدلال هم عجيبه دی، په داسې حال کښې چه په شاهي محاوره کښې په يقيني توګه د وعدې لپاره د دې ټکي استعمال مشهور دی. قال العلامة عبد الله بن احمد النسفی ولعل للترجی والاطماع ولکنه من کريم فيجری مجری وعده المحتوم وفائه وبه قال سيبويه. (مدارك التنزيل ج۱،ص۵۵) که چيرته د «لعل» لفظ د مؤمنانو لپاره استعمالول صحيح نه وي نو د لاندينيو آيتونو به څه خواب وي؟

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ (۲/۱۸۳)

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا غَيْرَ بُيُوْتِكُمْ حَتّٰى تَسْتَاْنِسُوْا وَتُسَلِّمُوْا عَلٰٓى اَهْلِهَا ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ (۲۴/۲۷)

وَتُوْبُوْٓا اِلَى اللّٰهِ جَمِيْعًا اَيُّهَ الْمُؤْمِنُوْنَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ (۲۴/۳۱)

فَاِذَا قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوْا فِي الْاَرْضِ وَابْتَغُوْا مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ (۶۲/۱۰)

د امام رازي رحمه الله په مقابله کښې که چيرته موږ د هغو مفسرينو اقوال وليکو چه د دې آيت

کریمه شانِ نزول لمونځ کښي نو د دفترونو دفتر به تور او ډک شي. لیکن مونږ د شانِ نزول په اړه یواځې د روایتونو په وړاندې کولو اکتفاء کړی دی. له روایت پرته د مفسرینو د اقوالو د ذکر کولو نه ضرورت شته او نه هم د دومره اوږده فهرست د نقل کولو فرصت شته

۲ - مبارکپوري صاحب فرمایي: د دې آیت شانِ نزول خطبه ده لکه څرنګه چه امام بیهقي په کتاب القرائت ص ۷۵ کښې لیکلي دي. لهذا له دې آیت څخه د قرائت خلف الامام په نه جواز باندې استدلال صحیح نه دی. (ابکار المنن ص۱۴۵)

دا هم د امام بیهقي خپل خیال دی. له یوه صحیح روایت څخه هم د دې تائید نه دی شوی. د صحیحو روایتونو او اجماع امت په مقابله کښې د امام بیهقي قول هیڅ وزن نه لري. پخپله مبارکپوري په یوه ځای کښې ویلي دي چه اام بیهقي اګر که یو مشهور محدث دی لیکن د هغه یو قول هم له دلیل پرته معتبر کیدلی نه شي. (تحقیق ج۲، ص۳۲)

د امام بیهقي خیال برسیره پر دې چه د اجماع خلاف او بې دلیله دی د دې لپاره هم صحیح نه شي کیدلی چه دا آیت مکي دی او د جُمعې لمونځ په مدینه منوره کښې فرض شوی دی. د امام ابن جریر رحمه الله د تحقیق مطابق جُمعه په سنه ۱ـه هجري کښې فرض شوی دی. با لفرض د ځینو د قول مطابق که چیرته په مکه مکرمه کښې د جُمعې فرضیت تسلیم هم شي نو د جُمعې اقامت په اتفاق سره په مدینه منوره کښې شوی دی او په مکې مکرمې کښې د جُمعې یو لمونځ هم نه دی ادا شوی.

**و قال الامام البغوی رحمه الله الأیة مکیة و الجمعة وجبت بالمدینة. (معالم التنزیل علی هامش تفسیر ابن کثیر ج۳، ص۶۲۳)** غیر مقلد عالم مولانا عبد الصمد صاحب لیکي: کوم خلک چه د دې آیت شانِ نزول خطبه بولي هغوی په سختې غلطۍ باندې دي ځکه چه دا آیت مکي دی او د خطبې حکم په مدینه منوره کښې نازل شوی دی. (اعلام الاعلام ص۱۸۹)

له دې څخه د اختر خطبه هم مراد نه شي اخیستل کیدلی ځکه چه د اختر د لمانځه حکم هم په مدینه منوره کښې نازل شوی دی. (طبری ص۱۲۸۱)

که چیرته فرض نې کړه دا هم و منل شي چه د جُمعې یا اختر خطبه د دې آیت شانِ نزول دی نو بیا هم له دې څخه دا نه ثابتیږي چه لمونځ د دې آیت شانِ نزول نه دی ځکه چه د نزول په اسبابو کښې تعدد (ګنیوالی) جائز دی. قال الشیخ عبد الرحمن بن الحسن. (فتح القدیر شرح کتاب التوحید ص۱۸۴)

مثلاً د دې آیت (وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا) شان نزول په صحیح بخاری ج۲، ص۶۸۶/ صحیح مسلم ص۱۸۲، ج۱/ سنن نسائی ج۱، ص۱۱۶/ مسند احمد ج۱، ص۲۱۵/ او مسند ابی عوانة ج۲،

ص۱۲۲ کښې لمونځ ښوول شوی دی او په صحیح بخاري، مسلم او مسند دا بي عوانه په همدغو ځایونو کښې د دې شانِ نزول دعاء ښوولی دی.

## فائدهٔ جلیله

د قرآن او حدیث له مطالعې څخه دا څرګندیږي چه ډیر واړې داسې واقعات کوم چه د کوم قرآني حکم لاندې داخلیږي د هم هغه آیت شانِ نزول ویل کیږي. حالانکه اصل شان نزول نور څه وي لیکن دې واقعې لره محض د شمول فی الحکم له وجې شان نزول ویل شوی دی. مثلاً نن یو څوک غلا وکړي نو داسې ویل کیږي چه د (وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْا اَيْدِيَهُمَا) آیت د ده په باره کښې نازل شوی دی. قال الحافظ السیوطی رحمه الله و قال ابن تیمیة قولهم نزلت هذه الأية فی كذا يراد به تارة سبب النزول ويراد به تارة ان ذلك داخل فی الأية وان لم يكن السبب كما نقول عنى بهذه الأية كذا. (الی قوله) و قال الزركشی فی البرهان وقد عرف من عادة الصحابة والتابعين ان احدهم اذا قال نزلت هذه الأية فی كذا فانه يريد بذلك انها تتضمن هذا الحكم لا ان هذا كان السبب فی نزولها فهو من جنس الاستدلال على الحكم بالأية لا من جنس النقل لما وقع. (الاتقان ج۱، ص۳۱) وقال الشاه ولی الله رحمه الله فی الباب الرابع من الفوز الكبير - وقسمی آن است که معنی آیت بعموم خود تام ست بغیر احتیاج دانستن حادثه که سبب نزول شده است و حکم عموم لفظ راست نه خصوص سبب را. قدماء مفسرین بقصد احاطهٔ آثار مناسبه بآن آیت یا بقصد بیان ما صدق آن عموم آن قصه را ذکر کرده اند. این قسم را ذکر کردن ضرور نیست پیش این فقیر محقق شده است که صحابه و تابعین بسیار بود که نزلت الأية فی كذا می گفتند و غرض ایشان تصویر ما صدق آن آیت بود و ذکر بعض حوادث که آیت آن را بعموم خود شامل شده است خواه این قصه متقدم باشد یا متأخر، اسرائیلی باشد یا جاهلی یا اسلامی، تمام قیود آیت را در گرفته شد یا بعض آن را. والله اعلم. ازین تحقیق دانسته شد که اجتهاد را درین قسم دخلی هست و قصص متعدده را آنجا گنجائش هست، پس این نکته مستحضر دار و حل مختلفات سبب نزول ادنی عنایت می توان نمود. (الفوز الكبير ص۳۵)

همدا تحقیق نواب صدیق حسن خان صاحب هم نقل کړی دی. (اکسیر ص۱۹)

پس کومو حضراتو چه د (وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا) آیت کریمه شان نزول د جُمعې یا اختر خطبه بللی دی د هغو دا مقصد دی چه د اوریدول او چوپتیا حکم خطبې ته هم شامل دی. د هغو د قول هیڅکله دا مطلب نه شي کیدلی چه د دې آیت اصل شان نزول یواځې خطبه دی. لِما

قد مضا ان الأية مكية والجمعة فرضت فى المدينة.

لنډه دا چه دا آيت په اجماع سره د لمانځه په باره کښې نازل شوی دی او د دې لومړنی مدلول لمونځ دی ليکن د علت د حکم له مخې د جُمعې او اختر خطبو ته هم شامل دی.

۳ - امام بيهقي رحمه الله فرمايي چه صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم به د اقتداء په وخت کښې په لوړ آواز سره خبرې کولې چه له دې څخه د ممانعت په باره کښې دا آيت کريمه نازل شوی دی. امام بيهقي د خپلې دې دعوې د اثبات لپاره څلور روايتونه نقل کړي دي. (كتاب القراءة ص ۷۷)

د امام بيهقي دا دعوه ځکه صحيح نه ده چه مونږ د صحيحو اسنادو له مخې دا ثابته کړه چه دا آيت په امام پسې د قرائت ويلو په باره کښې نازل شوی دی نه د عامو خبرو کولو په باره کښې.

امام بيهقي چه له کومو روايتونو څخه استدلال کړی دی هغه ټول ضعيف او معلول دي. تفصيل ئې په لاندې ډول دی. ملاحظه ئې کړی.

**لومړی روايت:** په دې کښې دوراوي محمد بن دينار او ابراهيم هجري ضعيف دي. د محمد بن دينار تضعيف امام ابن معين، دار قطني، نسائي او عقلي کړی دی. امام ابو داؤد فرمايي چه په آخر کښې د هغه حافظه متغيره شوې وه. (تهذيب التهذيب ج۹، ص۱۵۵) او ابراهيم هجري لره امام بخاري، نسائي، ترمذي، احمد، ابن معين، ابو زرعه، سعدي، حربي، ابو حاتم، ابن عدي او علي بن الحسين بن الجنيد ټولو ضعيف ګڼلی دی. (تهذيب التهذيب ج۱، ص۱۶۵/ ميزان الاعتدال ج۱، ص۲۱)

امام بخاري رحمه الله ابراهيم هجري ته منکر الحديث ويلی دی او د حديث د امامانو فيصله ده چه امام بخاري څوک منکر الحديث وبولي د هغه د روايت قبلول جائز نه دي. (ميزان ج۱، ص۵/ طبقات سبکی ج۲، ص۹/ تدريب الراوی ص۲۳۵)

**دويم روايت:** په دې کښې مؤمل بن اسمٰعيل دی چه ده لره هم امام بخاري رحمه الله منکر الحديث ګڼلی دی. پرته له دې څخه ابو حاتم، ابن حبان، يعقوب بن سفيان، ساجي، دار قطني، ابن سعد، ابن قانع، محمد بن نصر مروزي او امام ابوزرعه هغه لره کثير الخطاء، سيئ الحفظ، منکر الحديث، کثير الغلط ګڼي او د هغه د روايتونو له قبلولو څخه ئې منع فرمايلې ده. (تهذيب التهذيب ج۱۰، ص۳۸۰/ ميزان ج۳، ص۲۲۱)

**دريم روايت:** د دې راوي عبد الله بن عامر دی چه امام بخاري، امام احمد، نسائي، ابو داؤد، ابو زرعه، ابو عاصم، دار قطني، سعدي، امام ابن معين، ابو احمد الحاکم او ابو حاتم ئې تضعيف کړی دی. او امام ابن المديني خو «ضعيف ضعيف» دوه واره وويل دوه چنده تضعيف ئې د ده وکړ. (تهذيب التهذيب ج۵، ص۲۷۵/ ميزان ج۲، ص۵۱/ لسان ج۳، ص۳۰۲)

**خلورم روایت**: په دې کښې عاصم بن عمر دی. امام بخاري رحمه الله ده لره منکر الحدیث ګڼلی دی، امام ترمذي، امام احمد، ابن معین او جوزقاني د هغه تضعیف کړی دی (تهذیب التهذیب ج۵ ص۵۱/میزان ج۲،ص۴)

په کومو راویانو باندې چه یو درجن د حدیثو امامان جرح کړې وي د هغو له روایت څخه استدلال او ځان ویل اهلِ حدیث؟ این چه بو العجبي است. د دې آیت شان نزول ((کلام فی الصلوة)) نه دی په دې باندې لاندیني دلائل دي:

۱ - د اجماع او صحیحو حدیثونو له مخې ثابته شوه چه دا آیت په لمانځه کښې د قرآنکریم د قرائت په باره کښې نازل شوی دی.

۲ - امام بیهقي چه کوم حدیثونه نقل کړي دي هغه ټول د آخرې درجې ضعیف دي.

۳- د صحیح حدیث له مخې ثابته ده چه په لمانځه کښې د خبرې کولو ممانعت د (وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِیْنَ) آیت سره شوی دی. کما روی الشیخان رحمهما الله تعالیٰ عن زید بن ارقم رضی الله تعالیٰ عنه. (بخاری ج۱،ص۱۶۰/مسلم ج۱،ص۲۰۴)

٤ - مبارکپوري صاحب په تحقیق الکلام ج۲، ص۳٦ کښې فرمایي: (وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ ـ الأیة) په دویم آیت (فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰن) باندې منسوخ دی ځکه چه دا وروسته نازل شوی دی چه په دې باندې لاندیني دلائل دي:

۱ - امام سیوطي رحمه الله فرمایي چه ټول سورت مزمل په مکه مکرمه کښې نازل شوی دی لیکن (فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰن) آیت په مدینه منوره کښې نازل شوی دی. (الاتقان ج۱،ص۱۷)

۲ - په دې آیت کښې د زکوٰة حکم هم شته او حافظ ابن حجر رحمه الله په مدینه منوره کښې د زکوٰة په فرضیت باندې داسې استدلال کړی دی چه حضرت قیس بن سعد رضی الله عنه څخه روایت دی چه د زکوٰة له فرض کیدو څخه مخکښې مونږ ته د صدقهٔ فطر د ادا کولو حکم راکړل شوی وو. زکات چه فرض شو د صدقهٔ فطر د ادا کولو نه تاکیدي حکم ورکړی شو او نه منع ترې وشوله. له دې څخه ثابته شوه چه زکات تر صدقهٔ فطر وروسته فرض شوی دی او صدقة الفطر د روژې تتمه (پوره والی) ده او روژه په اتفاق سره په مدینهٔ طیبه کښې فرض شوی دی. (فتح الباری ج۳،ص۱۱)

۳ - امام ابو نصر مروزي رحمه الله فرمایي: د (فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰن) آیت په مدینه منوره کښې نازل شوی دی ځکه چه په دې د قتال ذکر دی او قتال په مدینه منوره کښې فرض شوی دی. د مبارکپوري صاحب دا دعوه غلطه ده. هغه چه د (فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰن) آیت په نزول کښې په

وروسته والي باندې کوم دلائل بیان کړی دی د هغو ځوابونه په ترتیب سره ملاحظه کړی
د لومړي دلیل ځواب: امام سیوطي صاحب رحمه الله اګر که دا قول را نقل کړی دی لیکن د دې تردید ئې هم کړی دی. ونصله (المزمل) استثنی منها واصبر علی ما یقولون الآیتین حکاه الاصبهانی وقوله ان ربك یعلم الی آخر السورة حکاه ابن الغرس ویرده ما اخرجه الحاکم عن عائشة رضي الله عنها انه نزل بعد نزول صدر السورة بسنة وذلك حین فرض قیام اللیل فی اول الاسلام قبل فرض الصلوات الخمس. (الاتقان ج۱، ص۱۶)
د حضرت عائشه رضي الله عنها دا روایت مسلم ج۱، ص۲۵۶، نسائي ص۱۸۲، مستدرک ج۱، ص۵۰۴ کښې د صحیح سند له مخې مروي دی. له حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه هم د همدې مضمون روایت په مستدرک ج۲، ص۵۰۵ او سنن کبرٰی ج۲، ص۵۰۰ کښې شته. دا د صحیح سند درلودونکي روایتونه د ابن غرس له دې روایت څخه څو درجې زیات قوي دی چه په هغه کښې د یونس بن حبیب غوندې مجهول راوي دی. له دغو روایتونو څخه ثابته شوه چه د سورهٔ مزمل آخري برخه د اولې برخې څخه یو کال وروسته نازل شوی دی. او د سورهٔ مزمل لومړنی برخه په اتفاق سره د نبوت په ابتدائي دور کښې نازله شوې ده. پخپله مبارکپوري صاحب فرمایي: تر ټولو مخکښې سورهٔ قلم نازل شوی دی او له هغه وروسته سورهٔ مزمل. (تحقیق الکلام ج۲، ص۲۸)
د دویم دلیل ځواب: دا دعوه هم صحیح نه ده چه زکٰوة په مدینه منوره کښې فرض شوی دی. حقیقت دا دی چه د زکات حکم په مکې مکرمې کښې نازل شوی وو. په سورهٔ مؤمنون، سورهٔ حٰم سجده او سورهٔ لقمان کښې د زکات حکم راغلی دی حالانکه دا سورتونه ټول مکي دي. د یؤتون الزکٰوة تاویل په تزکیه د نفس باندې غلطه توجیه او له قیاس څخه لرې ده. پرته له دې څخه حضرت جعفر طیار رضي الله عنه د نجاشي رحمه الله په دربار کښې چه کوم تقریر کړی وو په هغه کښې د زکات یادونه شته. (مسند احمد ج۵، ص۲۹۱/ مستدرك ج۲، ص۳۱۰/ وقال الحاکم والذهبی علی شرطهما) حالانکه د دغو حضراتو د حبشې خوا ته د هجرت ابتداء یا پیل د نبوت په پنځم کال کښې شوی وو. (طبری ص۱۱۱۵/ زادالمعاد ج۲، ص۶۱)
د امام ابن خزیمه رحمه الله دعوٰی ده چه زکات له هجرت څخه مخکښې فرض شوی وو. فتح الباری ج۳، ص۲۱۱) امام رازي رحمه الله هم همدغه وائي: (التفسیر کبیر ج۳، ص۲۳۵)
علامه آلوسي رحمه الله فرمایي چه د اکثرو علماوو د تحقیق مطابق زکات په مکه مکرمه کښې فرض شو (روح المعانی ج۱۹، ص۱۳۱)
حافظ ابن کثیر رحمه الله فرمایي: د سورهٔ مزمل آخري آیت د هغو حضراتو تائید کوي کوم چه د دې

قائل دي چه نفس زکات په مکه مکرمه کښې فرض شوی وو لیکن د هغه د نصاب او اندازې تعین په مدینه منوره کښې وشو. (تفسیر ابن کثیر ج۴،ص۳۳۹)

له دې تحقیق څخه ثابته شوه چه د قیس ابن سعد ﷺ په روایت کښې د زکات له فرضیت څخه مراد د زکات د نصاب او د هغه د اندازې تعیین دی. ونظیره ما قاله الحافظ رحمه الله في شرح قول ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما (انما کان هذا قبل ان تنزل الزکاة) هذا مشعر بأن الوعید علی الاکتناز وهو حبس ما فضل عن الحاجة عن المواساة به کان فی اول الاسلام ثم نسخ ذلك بفرض الزکاة لما فتح الله الفتوح وقدرت نصب الزکاة فعلی هذا المراد بنزول الزکاة بیان نصبها ومقادیرها لا انزال اصلها والله اعلم. (فتح الباری ج۳،ص۲۱۶)

د دریم دلیل ځواب: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایي: د امام ابو نصر دې آیت لره مدني ګڼل غلط دي. هغه ته په دې کښې د قتال له ذکر څخه مغالطه ور لویدلې ده په داسې حال کښې چه په دې کښې د «س» حرف دا وائي چه د راتلونکی حکم به د قتال وي. د دې لپاره په آئنده کښې د راتلونکي مشقت له مخې الله تعالی د تهجد د لمانځه تاکید ساقط کړ.

ونصه وذکر الشافعی عن بعض اهل العلم ان صلاة اللیل کانت مفروضة ثم نسخت بقوله تعالیٰ فاقرءوا ما تیسر منه فصار الفرض قیام بعض اللیل ثم نسخ ذلك بالصلوات الخمس واستنکر محمد بن نصر المروزی ذلك وقال الآیة تدل علی ان قوله تعالیٰ فاقرءوا ما تیسر منه انما نزل بالمدینة لقوله تعالیٰ فیها وَاٰخَرُوْنَ یُقَاتِلُوْنَ فِیْ سَبِیْلِ اللهِ والقتال انما وقع بالمدینة لا بمکة والاسراء کان بمکة قبل ذلك اه. وما استدل به غیر واضح لان قوله تعالیٰ علم ان سیکون ظاهر فی الاستقبال فکانه سبحانه وتعالیٰ امتن علیهم بتعجیل التخفیف قبل وجود المشقة التی علم انها ستقع لهم والله اعلم. (فتح الباری ج۱،ص۳۹۳)

بیا د مبارکپوري صاحب دا منطق هم عجیب دی چه (وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ ـ الأیة) څخه د (فاقرءوا ما تیسر ـ الأیة) وروسته والی د نسخ مستلزم دی. نسخ خو به هلته وو چه د دغو دواړو آیتونو په مفهوم کښې یو له بله مخالفت وای. په داسې حال کښې چه دلته هیڅ مخالفت نشته ځکه چه لومړی د قرائت خلف الامام پورې اړه لري او دویم آیت د تهجد د لمانځه په باره کښې دی. چنانچه پخپله غیر مقلد عالم مولانا میر سیالکوټي صاحب فرمایي چه د سورهٔ مزمل دا رکوع د تهجد په لمانځه کښې د تخفیف لپاره نازل شوی دی. (تفسیر واضح البیان ص۴۴۳) مبارکپوري صاحب هم له روح المعاني څخه د دې نقل کړی دی. (تحفة الاحوذی ج۱،ص۲۰۷) امام بیهقي فرمایي وهذا معروف مشهور فیما بین اهل العلم. (کتاب القراءة ص۱۵۳) وقال الشوکانی نزلت فی قیام اللیل فلیست مما نحن فیه

**(نيل الاوطار ج۲،ص۲۱۸)** همدارنګه ابو داؤد ج۱، ص۱۹۲، عون المعبود ج۱، ص۳۰۵، اعلام الموقعين لابن القيم ج۲، ص۳۷۸، السراج المنير للعلامة الشربيني ج٤، ص۲٤۸، تفسير العلامة ابي السعود علي هامش التفسير الكبير ج۸، ص٤۸۵ کښې هم د دې تصريح شته. غرض دا چه د مبارکپوري صاحب د نسخ دعوه غلطه ده. نواب صديق حسن‌خان صاحب د سورهٔ اعراف په اړه فرمايي چه: *در وی یک آیت یا دو آیت منسوخ است باقی همه محکم اول خذ العفو وامر بالعرف، دوم واعرض عن الجاهلین* (افادة الشيوخ ص۶۵) او که چيرته بفرض محال نسخ هم تسليم شي نو پخپله مبارکپوي صاحب فرمايي چه د **(فاقرءوا ما تيسر)** آيت څخه د قرائت فرضيت نه شي ثابتيدلی. **(تحفة الاحوذی ج۱،ص۲۰۷)**

۵- مبارکپوري په تحقيق الکلام ج۱، ص۲۸ کښې فرمايي چه د **(واذا قرئ القرآن)** آيت مکي دی او د امام پسې د قرائت د کولو په باره کښې احاديث له حضرت ابو هريره ﷺ او حضرت عبادة بن الصامت ﷺ څخه مروي دی. حضرت او هريرة ﷺ په سنه۷ ــه هجري کښې اسلام راوړی دی او حضرت عباده ﷺ انصاري دی. له دې څخه څرګنده شوه چه د قرائت خلف الامام حکم په مدينه منوره کښې شوی دی. لهذا دا حديث د آيت لپاره ناسخ دی. مولانا مير صاحب هم په تفسير واضح البيان ص۴۵۳ کښې همدا ليکلی دی.

د دې حضراتو ظلم وګوری په خبر واحد سره قرآني نصّ منسوخوي بيا د قرائت خلف الامام په اړه يو روايت هم داسې نشته چه صحيح هم وي او صريح هم. د دې تفصيل مخکښې راځي انشاء الله تعالی. په داسې ضعيف، معلول او مجملو روايتونو څخه د قرآني نصّ د نسخ دعوی د ګُل په پاڼې سره د الماس پرې کول دي. نواب صاحب ليکي: *ناسخ مثل منسوخ باشد در قوت بلکه اقوی ازان چه در صورت ضعف مزیل قوی نه تواند شد واین حکم عقل است واجماع برآن دلالت کرده، چه صحابه نصّ قرآن را بخبر واحد منسوخ نه کرده اند.* (افادة الشيوخ بمقدار الناسخ والمنسوخ ص۵)

علاوه پر دې د حضرت عبادة بن الصامت ﷺ د مدني والي له وجې د هغه حديث هم مدني ګڼل غلط دي ځکه چه دی په عقبهٔ اولی او عقبهٔ ثانيه دواړو کښې موجود وو. ممکنه ده چه د ده روايت په دې وخت کښې وي. بيا له مدني صحابهٔ کرامو ﷺ بلکه پخپله له حضرت ابو هريره ﷺ څخه هم د قرائت د منع روايتونه هم شته. کما سيأتی.

مبارکپوري په تحقيق الکلام ج۲، ص۲۸ کښې يوه بله نکته بيانوي چه حاصل ئې دا دی چه سورهٔ اعراف له عقبهٔ اولی څخه هم مخکښې نازل شوی دی ځکه چه په سنه ۱۰ ــه نبوي کښې لومړی

سوره جن نازل شو بيا سورهٔ اعراف. (مجمع البحار ج۲،ص۵۳۰) او بيعت عقبهٔ اولی په سـ۱۲ـه نبوي کښې او بيعت عقبهٔ ثانيه په سـ۱۳ـه نبوي کښې شوی دی. همدارنګه له عقبهٔ اولی څخه مخکښې د جماعت لمونځ روا نه وو د دې لپاره د حضرت عبادهؓ دا حديث په هر صورت له آيت څخه وروسته دی.

مبارکپوري په دې نکتې باندې چه څومره تعجب وشي کم دی. لومړی له دې وجې چه حافظ ابن کثيرؒ فرمايي چه بيعت عقبهٔ اولی په رجب سنـ۱۰ـه نبوي کښې شوی دی او عقبهٔ ثانيه په سنـ۱۲ـه نبوي کښې. (البداية والنهاية ج۳،ص۱۵۹) دويم دا چه امام نووي او حافظ ابن حجر رحمهما الله تعالی فرمايي چه د جماعت لمونځ د اسلام له ابتداء څخه روا شوی دی. (نووی علی مسلم ج۱، ص۱۸۳/فتح الباری ج۳،ص۶۰) حضرت ابو ذر غفاريؓ د اسلام تر قبلولو وروسته چه کله د خپل قوم خواته بيرته ورغی نو نيمې قبيلې اسلام قبول کړ او حضرت ايماء بن رحضهؓ د هغو امامت کاوه. (صحيح مسلم ج۲،ص۲۹۶/مستدرك ج۳،ص۵۹۲) حالانکه حضرت ابو ذر غفاريؓ ډير مخکښې اسلام راوړونکی دی. له ده څخه مخکښې په نارينه وو کښې يواځې حضرت ابو بکر صديق او حضرت بلال رضی الله تعالی عنهما او په ښځو کښې يواځې حضرت خديجهؓ ايمان راوړی وو. (مستدرك ج۳،ص۳۴۱/تذکره ج۱،ص۱۷/اکمال ص۵۹۳)

برسيره پر دې که چيرته له عقبهٔ اولی څخه مخکښې د جماعت لمونځ مشروع نه وو نو په د دې منل هم لازميږي چه (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا) آيت د بيعت عقبهٔ اولی نه وروسته نازل شوی دی. ځکه چه پورته ثابت شول چه د دې آيت شان نزول په اتفاق سره قرائت خلف الامام دی. پس د عبادهؓ د حديث له دې آيت څخه تاخر (وروسته والی) ثابت نه شو. دا بحث مې يواځې د اشباع کلام په توګه وليکه او که نه نو حقيقت دا دی چه دا ضعيف او غير صريح روايتونه د قرآن د نص لپاره ناسخ نه شي کيدلی.

۶- مبارکپوري فرمايي چه که چيرته دا خبره و هم منله شي چه (فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ ـ الآية) سره (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ) منسوخ نه دی ليکن په دې کښې د نسخ احتمال خو موجود دی چه کله په دې کښې دا احتمال موجود دی نو په دې سره استدلال څرنګه؟ (تحقيق الکلام ج۲،ص۳۶)

د مبارکپوري دا خيال هم صحيح نه دی ځکه چه هغه احتمال د استدلال مانع دی چه ناشي عن دليل وي که چيرته دلته د نسخ احتمال په کوم دليل باندې مبني وای نو امام احمد، حافظ ابن تيميه او حافظ ابن عبد البر رحمهم الله او د امت نور جمهور علماء له دې آيت څخه استدلال نه

کاوه. حالانکه په دې اړوند مونږ پورته له امام احمد رحمه الله څخه د اجماع قول نقل کړی دی.

۷ - مبارکپوري ابکار المنن ص۱۴۰، تحفة الاحوذي ج۱، ص۲۵۸ او تحقيق الکلام ج۲، ص۳۸ کښې او مولانا مير صاحب په تفسير واضح البيان ص۴۳۸ کښې د ملا جيون او علامه تفتازاني د قول په را نقل کولو سره ليکي چه د احنافو په نزد په دغو دواړو آيتونو کښې تعارض دی د دې لپاره (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا) څخه استدلال صحيح نه دی.

ملا جيون رحمه الله حنفي والی منل شوی دی ليکن د تحقيق مدار د چا په شخصيت باندې نه دی. او علامه سعد الدين تفتازاني رحمه الله حنفي ګڼل غلط دي. دی شافعي وو. د کشف الظنون مصنف علامه کاتب چلپي، علامه حسن چلپي، علامه سيوطي او علامه محمود الکفوي رحمهم الله د دې تصريح کړې ده. په هر صورت د کوم شخصيت له قول څخه حقيقت نه شي بدليدلی. مونږ پورته دا ثابته کړه چه (فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ) متقدم دی او (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا) متاخر دی. همدارنګه لومړی آيت د تهجد د لمانځه په باره کښې دی او دويم آيت د قرائت خلف الامام په باره کښې دی. چه کله په دلائلو کښې تقدم او تاخر معلوم وي او بيا د دواړو محل هم جلا جلا وي نو د تعارض قول به څنګه صحيح شي؟

که چيرته با لفرض په دغو دواړو آيتونو کښې تعارض هم و منل شي نو د تعارض د له منځه وړلو لپاره تر ټولو مخکښې د تطبيق صورت لټول کيږي، که هغه و نه شي نو بيا ترجيح او په دريمه درجه کښې د تساقط حکم دی. په دغو آيتونو کښې د تطبيق صورت هم ميندل کيږي او د ترجيح وجه هم.

د تطبيق صورت: يو صورت خو پورته بيان شو چه په يوه آيت کښې په فرض لمانځه کښې د قرائت بيان دی او په دويم آيت کښې د تهجد په لمانځه کښې د قرائت حکم دی. پرته له دې نه که چيرته دواړه آيتونه يواځې د فرض لمانځه په اړه فرض کړی شي نو د تطبيق صورت ئې دا دی چه د سورۂ مزمل په آيت کښې امام او منفرد ته د قرائت حکم ورکړ شوی دی او په سورۂ اعراف کښې مقتدي له قرائت څخه منع کړی شوی دی. چنانچه امام بيهقي رحمه الله له حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه د صحيح سند له مخې روايت کړی دی چه له (فاقرءوا ما تيسر) څخه له سورۂ فاتحه څخه زائد قرائت مراد دی. (کتاب القراءة ص۶، ص۱۵۳، ص۱۵۴) امام دار قطني رحمه الله هم له حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه همدا مضمون په حسن روايت سره را نقل کړی دی. (دار قطني ج۱، ص۱۲۹) مولانا مير صاحب ليکي: الغرض که چيرته په (فاقرءوا ما تيسر) کښې له قرائت څخه قرائت فی الصلوة مراد واخيستل شي نو له هغه څخه مراد تر فاتحه وروسته قرائت دی. (تفسير واضح البيان

ص۴۴۵)

چونکه اهل حدیث هم د مقتدي لپاره له سورهٔ فاتحه څخه د زیات قرائت په ممانعت قائل دي ځکه له دې څخه په لازمي توګه امام یا منفرد مراد وي.

**د ترجیح صورت :**

که چیرته بالفرض د تطبیق هیڅ صورت موجود نه وای نو له شبهې پرته د سورهٔ اعراف آیت به راجح تاکل شوی وای ځکه چه پورته د صحیحو روایتونو او د امت د جمهورو له تصریحاتو څخه ثابته شوې ده چه په دې آیت کښې مقتدي له قرائت خلف الامام څخه منع کړی شوی دی.

۸ - امام بیهقي په کتاب القرائت ص۷۵ کښې او مبارکپوري صاحب په تحقیق الکلام ج۲، ص۵۱ کښې فرمایي چه په حدیث کښې سکوت د اخفاء په معنیٰ هم استعمال شوی دی. چنانچه د صحیح البخاري روایت دی چه حضرت ابو هریره‌ﷺ له حضور اکرمﷺ څخه پوښتنه وکړه چه **اسکاتك ما بین التکبیر و القراءة ما تقول؟** ده مبارک وفرمایل چه زه **اللّٰهم باعد بینی و بین خطایای الخ** وایم. **(صحیح البخاری ج۱، ص۱۰۳)** حضرت ابو هریره‌ﷺ په دې مقام باندې له سکوت څخه د ورو یا سوکه ویلو تعبیر کړی دی. همدارنګه په مستدرک او داسې نورو کښې روایت دی **(و یسکت بعد القراءة هنیة یسأل الله من فضله)**. په دې کښې سکوت او سوال سره یو ځای شوي دي لهذا په امام پسې سوکه ویل په آیت کښېد انصات (غلي والي) د حکم په خلاف نه دي.

د دغو حضراتو دا تاویل ځکه باطل دی چه د سکوت حقیقي معنیٰ مکمله خاموشي ده. **قال الامام الراغب الاصفهانی السکوت مختص بترك الکلام. (مفردات ص۲۲۵) و قال الامام ابن خالویه نزف الرجل اذا انقطعت حجته عند المناظرة و سکت و اسکت مثله. (اعراب ثلاثین سورة من القراٰن ص۶) و قال مجد الدین الفیروز اٰبادی اسکت انقطع کلامه فلم یتکلم. (قاموس ج۱، ص۹۲) و کذا فی المنجد ص۳۵۲ و قال الامام الرازی رحمه الله علیه ان السکوت عبارة عن معناه انه لم یقل شیئا و لم ینقل امراً و لم یتصرف فی قول و لا فعل و لا شك ان هٰذا المعنی عدمی محض. (مناظرات امام رازی ص۳۵)** د لغت د امامانو له تصریحاتو څخه ثابته شوه چه سکوت د خبرو د پرېښودلو او مکمله خاموشي په معنیٰ ده. لیکن کله کله په مجازي توګه د جهر په مقابله کښې د اخفاء په معنیٰ هم استعمالیږي. ځکه چه د جهر په حالت کښې نور خلک هم د هغه خبرې اوریدلې، تر دې وروسته د اخفاء په حالت کښې د اوردیدونکو په نزد کلام معدوم دی ځکه چه هغو نه اوریدل. په دې مناسبت سره په وخت د قرائن صارفه عن الحقیقت سکوت په معنیٰ د اخفاء سره مجازاً راځي. **قال الامام ابو بکر الجصاص الرازی رحمه الله علیه انما سمیناه**

ساكتا مجازاً لان من لا يسمع يظنه ساكتاً. (احكام القرآن ج۳، ص۴۰) پس چه چیرته د مجازي معنی د اخیستلو هیڅ قرینه نه وي هلته له سکوت څخه د هغه حقیقي معنی یعنې یواځې مکمله خاموشي به مراد وي. د حقیقي معنی د مراد اخیستلو لپاره د کومې قرینې او دلیل حاجت نه وي. سره له دې د قرآن د قرائت په وخت د انصات (چُپوالي) حکم یواځې په حقیقي معنی کښې استعمالیږي. په دې باندې دا دلیل هم دی چه د نزول وحی په ابتداء کښې نبي کریمﷺ به پخپله هم له حضرت جبرائیل سره قرائت ویلو دصحیح البخاري په روایت کښې دي وكان مما يحرك شفتيه په دې باندې حکم کیږي (لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ الأية، وكان مما يحرك شفتيه) څخه ثابته شوه چه ده به سوکه ورسره ویل بیا په (لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ) قرآني نص کښې تصریح ده چه د ژبې د ښورولو هم اجازه نشته. دریم په مذکوره آیت کښې په تفسیر کښې له حضرت ابن عباس څخه داسې مروي دی فاستمع له وانصت. (صحيح البخارى ج۱، ص۳) له دې څخه څرګنده شوه چه د قرائت په وخت کښې د انصات معنی مکمله خاموشي ده تر دې پورې چه ژبه هم و نه ښوریږي.

حضرت مولانا انور شاه په فصل الخطاب ص۷۸ کښې د ابو هریره د حدیث په اړه فرمایي چه په دې کښې له سکوت څخه مطلق سکوت مراد نه دی بلکه له تکبیر تحریمه څخه سکوت مراد دی لکه څرنګه چه د حضرت زید بن ارقم په روایت (امرنا بالسكوت) په شرح کښې حافظ فرمایي چه په دې حدیث کښې سابق حکم یعنې په لمانځه کښې له کلام او سلام څخه سکوت مراد دی مطلقاً سکوت مراد نه دی چه ثناء، آمین، تسمیع، تحمید، تشهد او درود شریف هم مه وایئ. (فتح البارى ج۳، ص۶۰) همدارنګه مستدرک په حدیث (ويسكت بعد القراءة هنية يسأل الله من فضله) کښې له قرائت څخه سکوت او د مجمع الزوائد په روایت (من صام رمضان في انصات. الخ) کښې له دروا‌غو، غیبت او داسې نورو عبثیاتو څخه سکوت مراد دی. د آذان ځواب ورکول د سکوت منافي نه دی ځکه چه د آذان تر هرې کلمې وروسته وقفه ده په خلاف د لمانځه د سکتاتو چه د هغو په هیڅ یوه حدیث کښې ثبوت نشته. کما سیاتي.

مونږ له امام بیهقي او مبارکپوري څخه پوښتنه کوو چه د خطبې په حالت کښې تاسو د تسبیح او داسې نورو په پټه سره د ویلو اجازه ولې نه ورکوی او دلته د سکوت له حکم څخه د سراً ویلو مراد ولې نه اخلی؟ پخپله د قرآنکریم په الفاظو کښې مو دا رویه یا طریقه ولې غوره کړه؟ په ځانګړې توګه په داسې حال کښې چه تاسو د دې آیت شانِ نزول خطبه بولئ. آیا دا په ښکاره توګه ضد او عناد او صریحه بې انصافي نه ده چه له کوم آیت څخه د خطبې په حالت کښې د خبرو نه کول ثابتوئ او په همدې دول حالت کښې په لمانځه کښې د سراً قرائت حکم ورکوئ.

## د خطبې په حالت کښې د تحیة المسجد د لمانځه حکم

امام بخاري رحمه الله په جزء القرائت ص ۳۵ کښې، امام بیهقي رحمه الله په کتاب القرائت ص ۸٤ کښې او مبارکپوري د تحقیق الکلام په جلد ۲ کښې فرمایي چه د خطبې په حالت کښې د سکوت په حکم دومره ټینګار دی چه په دې وخت کښې د امر با لمعروف او نهی عن المنکر هم اجازه نشته **لقوله علیه السلام اذا قلت لصاحبك یوم الجمعة انصت فقد لغوت.** (بخاری ج۱، ص۱۲۸ / مسلم ج۱، ص۲۸۱) لیکن د دې تر څنګ د نبي کریم ﷺ ارشاد دی چه کله یو څوک په داسي وخت کښې جومات ته ورسیږي چه امام په خطبه کښې وي نو هغه دې په لنډه توګه دوه رکعته لمونځ وکړي. **اذا جاء احدکم یوم الجمعة والامام یخطب فلیرکع رکعتین ولیتجوز فیهما.** (بخاری ج۱، ص۱۲۱ / مسلم ج۱، ص۲۸۷) په دغو دوه رکعتونو کښې خو خامخا قرائت کیږي. لکه څرنګه چه دا حکم له انصات (خاموشي) سره ټکر نه دی همدارنګه د مقتدي قرائت هم د استماع او انصات د آیت منافي یا ټکر نه دی.

د دې ځواب دا دی چه د جمهور اهل اسلام په نزد د خطبې په حالت کښې لمونځ کول جائز نه دي ځکه چه د خطبې په وخت د انصات (چُپوالي) حکم عام دی. لکه څرنګه چه د خطبې په حالت کښې خبرې کول. ذکر، تسبیح او داسې نور په دې وجې چه د انصات خلاف دي ناجائز دي همدارنګه لمونځ کول هم د انصات منافي دي ځکه جائز نه دی. د خطبې په وخت د انصات د حکم د عام والي پرته په ځانګړې توګه له لمانځه څخه ممانعت هم له نبي کریم ﷺ څخه ثابت دی. چنانچه فرمایي **یصلی ما کتب له ثم ینصت اذا تکلم الامام.** (بخاری ج۱، ص۱۲۱ / مسلم ج۱، ص۲۸۳ / طیالسی ص۶۵) و عن **نبیشة....الهذلی رضی الله عنه مرفوعا فان لم یجد الامام خرج صلی ما بدا له وان وجد الامام قد خرج جلس فاستمع وانصت رواه احمد ورجاله رجال الصحیح خلا شیخ احمد وهو ثقة.** (مجمع الزوائد ج۲، ص۱۷۱)

په پورتني حدیث کښې د امام احمد رحمه الله د شیخ نوم علي بن اسحٰق دی. (فتح الملهم ج۲، ص۴۱۵) امام نسائي، امام ابن معین. حافظ ابن حبان. ابن سعد او محمد بن حمدویه رحمهم الله تعالی ټول د ده توثیق کوي (تهذیب التهذیب ج۷، ص۲۸۲) حافظ ابن حجر رحمه الله هم هغه لره ثقه ګڼلی دی. (تقریب ص۲۶۹) حافظ رحمه الله د فتح الباري په مقدمه کښې فرمایي چه زه په دې کتاب کښې یواځې صحیح او حسن روایتونه ذکر کومه **بشرط الصحة والحسن فیما اورده من ذٰلك.** (مقدمة الفتح ص۴) او نوموړی حدیث حافظ رحمه الله په فتح الباري ج۲، ص۲۹۷ کښې راوړی دی او د په سند باندې ئې هیڅ خبره نه ده کړې له دې ځخه ثابته شوه چه دا روایت صحیح او یا حسن دی.

په خیر الکلام ص۵۶۳ کښې د دې په سند باندې اعتراض شوی دی چه په دې کښې عطاء

خراساني دی چه د په باره کښې ئې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چه دی د ارسال، تدليس او د وهم د ډير والي ښکار وو او امام بخاري رحمه الله د هغه يو حديث هم نه دی را اخيستلی. (تقريب ص۱۷۹)
همدارنګه فرمايي چه دا د بخاري د شرط مطابق نه دی. (مقدمة فتح الباری ص۴۳۶)
د دې لپاره علامه هيثمي قول (رجاله رجال الصحيح) وهم دی.
په حقيقت کښې دا د علامه هيثمي رحمه الله وهم نه دی بلکه د حافظ ابن حجر رحمه الله وهم ځکه چه د صحيح البخاري په ج۲ ص۷۳۲ او ص۷۹۶ کښې له عطاء څخه روايت موجود دی او محدث ابو مسعود دمشقي او علامه قسطلاني او داسې نورو تصريح کړې ده چه دا عطاء خراساني دی بلکه پخپله حافظ ابن حجر رحمه الله د تحرير مطابق دا د نسائي، ابو داؤد، ترمذي او ابن ماجه څخه پرته د صحيح مسلم هم راوي دی. (تهذيب التهذيب ج۷، ص۲۱۲)
د دغو نصوصو پر بناء جمهور صحابه رضي الله عنهم، تابعين او د دين امامان رحمهم الله تعالی مسلک دا دی چه د خطبې په وخت د تحية المسجد ادا کول جائز نه دي. امام نووي رحمه الله فرمايي چه حضرت عمر، حضرت عثمان او حضرت علی رضي الله عنهم او امام ابو حنيفه، امام مالک، امام ليث بن سعد رحمهم الله تعالی او د جمهورو صحابه وو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله تعالی همدا مسلک دی. (نووی علی صحيح مسلم ج۱، ص۲۸۷) امام ترمذي رحمه الله فرمايي چه د فقهاوو او محدثينو همدغه مسلک وو. (ترمذی ج۱، ص۶۷) علامه عراقي رحمه الله فرمايي چه حضرت ابن عمر، حضرت ابن عباس، عروة بن زبير رضي الله عنهم او مجاهد، عطاء بن رباح، سعيد بن المسيب، محمد بن سيرين، امام زهري، قتاده، ابراهيم نخعي او قاضي شريح رحمهم الله تعالی د ټولو همدا مسلک وو. (فتح الملهم ج۲، ص۴۱۵) دويم فريق هم د دې په تسليمولو باندې مجبور دی چه د جمهورو په نزد د خطبې په حالت کښې تحية المسجد جائز نه دی. چنانچه د خير الکلام مؤلف په دې مسئله کښې د جمهورو د قول په ځواب کښې فرمايي چه جمهوريت د حديث په معامله کښې حجت نه دی. (خير الکلام ص۵۶۳)
جناب والا! لوستونکو ته دوکه ورکول غواړي چه د جمهورو مسلک د حديث خلاف دی يعني حديث يو اخې هغه دی چه کوم ته چه دی ښاغلی حديث ووائي او که نه نو صريح او صحيح احاديث په کوم باندې چه د جمهور اُمت عمل وي هغه هم حديث نه دی بلکه د حديث مخالفت دی.
که چيرته معاذ الله (پناه دې وي د خدای) جمهور صحابه، تابعين، محدثين، فقهاء او د دين امامان په حديث باندې نه دي پوه شوي يا په قصد سره ئې مخالفت کړی وي نو له قرآن، حديث او

تول اسلام څخه اعتماد پورته کيږي.

امر با لمعروف او نهی عن المنکر فرض دی چه کله د خطبې په حالت کښې دا هم منع وي نو د نوافلو به څنګه اجازه کيدلی شي؟ تعجبه ده چه غير مقلدين د جماعت تر ريدو وروسته د سهار د سنتو اجازه نه ورکوي په داسې حال کښې چه دا سنت تر ټول مؤکد او ډير ټينګار پرې شوی دی ليکن د خطبې په حالت کښې تحية المسجد بيا جائز بولي. بيا دا چه څوک له جماعت نه خارج وي د جماعت د ريدو په وخت کښې هغه د انصات حکم نشته او د خطبې په وخت کښې حاضرينو ته د انصات حکم شته. له دې سره سره د سهار سنت ممنوع ګڼل او د خطبې په وخت کښې د تحية المسجد جائز ګڼل دا څرنګه صحيح کيدلی شي؟

**د جواز د حديث ځواب:**

۱ـ امام نسائي رحمه الله په سنن کبری کښې د دې حديث ترجمة الباب **(باب الصلوة قبل الخطبة)** قائم کړی دی. **(زيلعی ج۲، ص۲۰۳)** له دې څخه ثابته شوه چه د امام نسائي رحمه الله په نزد د تحية المسجد د ادا کولو حکم د خطبې له شروع کولو څخه مخکښې دی او په حديث کښې يخطب په معنی د **(يريد الخطبة)** دی. **(يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ ـ الاٰية)** امام نووي رحمه الله د **(اذا امّن الامام فامّنوا)** په شرح کښې فرمايي: **قالوا معناه اذا اراد التأمين.(نووی علی مسلم ج۱، ص۱۷۴)**

د صحيح البخاري په دويم روايت کښې دی: **والامام يخطب او قد خرج (بخاری ج۱، ص۱۵۶) وقال الحافظ رحمه الله متفق عليه.(فتح الباری ج۲، ص۳۳۱)** له دې حديث څخه هم د امام نسائي رحمه الله د تحقيق تائيد کيږي. څکه چه په دې کښې راوي د تردّد په صورت کښې بيانوي چه نبي کريم ﷺ يخطب وفرمايل او که قد خرج ئې وفرمايل. سامع (اوريدونکي) ته په عمومي توګه په مترادفو الفاظو کښې تردد وي. له دې څخه ثابته شوه شه راوي يخطب په معنی د اَرَادَ اَنْ يَخْطُبَ را اخلي دا «او» د تنويع لپاره نه شوای ويلی څکه چه په دې صورت کښې يواځې يخطب ويل کافي وو. چه کله د خطبې په حالت کښې جواز ثابت شو نو تر خطبې مخکښې خو په طريقهٔ اولی سره پخپله ثابتيږي. لهذا تر يخطب وروسته او قد خرج عبث ګرځي. هو! که چيرته عبارت برعکس داسې وای **(والامام قد خرج او يخطب)** نو «او» په معنی د **((بل للترقی))** د را اخيستلو ګنجائش وو. همدارنګه که چيرته «او» د تنويع لپاوه وای نو. جمهورو صحابه وو او تابعينو رضي الله عنهم د خطبې او غير خطبې په حالت کښې فرق نه کاوه بلکه په دواړو صورتونو کښې به يو شان د تحية المسجد د جواز قائل وای

برسيره پر دې د حديث الفاظ **((وليتجوز فيهما))** کښې حکم دی چه تحية المسجد دې په لنډه

توګه ادا کړي. دا مستقل دليل دی چه دا حکم په هغه وخت کښې دی چه کله امام د خطبې لپاره تيار وي. که چيرته د خطبې په حالت کښې هم لمونځ جائز وای او دا حکم د انصات منافي نه وای نو د خطبې په حالت کښې په تحية المسجد کښې د اختصار حکم د څه لپاره؟ چه کله د انصات او تحية المسجد د دواړو په حکم باندې په يوه وخت عمل کيدلی شي نو تحية المسجد دې بايد په ښه اطمينان او آرام سره ادا شي د اختصار مقتضٰی څه شی دی؟

۲ - دا يوه جزئي واقعه ده ځينو راويانو دا عام ګڼي او د معنٰی د نقل لاندې ئې قاعده کليه جوړه کړه. کيسه دا ده چه سليک غطفاني ﷛ په سترې او خفه حالت کښې جومات داخل شو، نبي کريم ﷺ هغه ته حکم وکړ چه ودريږه او دوه رکعته لمونځ ادا کړه تر څو چه خلک د هغه د حالت په ليدو سره له هغه سره امداد ته متوجه شي. او ده خلکو ته په هغه باندې د صدقې د کولو ترغيب ورکړ. په سنن نسائي کښې دي چه: ((جاء رجل يوم الجمعة والنبی ﷺ يخطب بهيئة بذة فقال له رسول الله ﷺ اصليت قال لا قال صلّ رکعتين و حث الناس علی الصدقة)). (نسائی ج۱، ص۱۵۸) په مسند احمد ﷫ کښې دا الفاظ دي: ((ان هٰذا الرجل دخل المسجد فی هيئة بذة فامرته ان يصلی رکعتين و انا ارجو ان يفطن له رجل فيتصدق عليه)). (فتح الباری ج۲، ص۳۳۷) د دې روايت د سند په اړه حافظ ابن حجر ﷫ فرمايي: ((و اما قصة سليک ﷛ فقد ذکر الترمذی انها اصح شیء روی فی هٰذا الباب و اقوٰی)). (فتح الباری ج۲، ص۳۳۹) په ځينو روايتونو کښې دا الفاظ هم شته ((ارکع رکعتين ولا تعد لمثل هٰذا)). (دار قطنی ج۱، ص۱۶۹) له دې روايت څخه استدلال مقصود نه دی بلکه يوازې د تائيد له مخې وړاندې کړی شو. پخپل سليک ﷛ هم دا کار عامه او کليه قاعده و نه بلله. که چيرته هغه دا عامه ګڼلې وای نو په راتلونکي کښې به هغه د هغه په تعميل کښې غفلت نه کاوه حالانکه تر دريو جُمعو پورې پرله پسې همدا واقعه مخکښې راتلله چه هغه تحية المسجد له ځانه ادا نه کړ. ولاحمد وابن حبان انه کرر امره بالصلاة ثلاث مرات فی ثلاث جمع. (فتح الباری ج۲، ص۳۳۸)

په دې ځواب باندې حافظ ﷫ داسې رد کوي: والتعليل بکونه ﷺ قصد التصدق عليه لا يمنع القول بجواز التحية فان المانعين منها لا يجيزون التطوع لعلة التصدق قال ابن المنير فی الحاشية لو ساغ ذٰلک لساغ مثله فی التطوع عند طلوع الشمس وسائر الاوقات المکروهة. (فتح الباری ج۲، ص۳۳۸)

د ابن منير او حافظ رحمهما الله تعالی دا اعتراض به هلته صحيح وای شه د تحية المسجد مانعين تصدق لره د حکم علت او مدار ګڼلی، حالانکه تصدق علت نه دی بلکه د تخصيص حکمت دی. همدارنګه تخصيص هم د خطبې په حالت کښې په لمونځ کولو کښې نه ده بلکه تخصيص په

دې کار کښې دی چه د هغه لپاره په خطبه کښې تاخیر وشو؟ کما فی روایة اللیث عند مسلم رحمه الله و النبی ﷺ قاعد علی المنبر. (فتح الباری ج۲، ص۳۳۹) د دار قطني له روايت څخه هم د دې تائيد کيږي. و امسك عن الخطبة حتی فرغ من صلاته. (دار قطنی ج۱، ص۱۶۹) دا روايت د استدلال په توګه نه دی بلکه د تائيد لپاره وړاندې کړی شو. له معتمر مرسل څخه هم د دې تائيد کيږي.

د دار قطني په روايت کښې د (امسك عن الخطبة) معنی دا ده چه د خطبې له شروع کولو څخه منع شو. دا مطلب نه دی چه د خطبې په منځ کښې ودريد. د صحابي له شان څخه ډيره لرې خبره ده چه د خطبې تر شروع کيدو وروسته دې جومات ته راغلی وای او بيا پر له پسې تر دريو جُمعو پورې ئې همدغه حال وي. په تير شويو روايتونو کښې (قاعد علی المنبر) او (قد خرج) الفاظ صريح نصّ دي چه د تحية المسجد د ادا کولو حکم له شروع کيدو څخه مخکښې وو.

۹ - مبارکپوري په تحقيق الکلام ج۲، ص۵۱ کښې له مجمع البحار څخه د (قرأ رسول الله ﷺ فيما امر وسکت فيما امر) کښې قرأ په معنی د جهر او سکت په معنی د اسرّ نقل کوي او فرمايي چه په و (اذا قُرِئَ القُرْاٰن ـ الخ)) کښې هم جهري قرائت مراد دی ځکه چه په دې آيت کښې يواځې د جهري لمونځونو حکم دی.

د مبارکپوري دا استدلال ځکه صحيح نه دی چه د مجمع البحار قول صحيح نه دی. د حديث معنی دا هم کيدلی شي چه قرأ حال کونه اماما وسکت حال کونه مؤتما او قرأ بعد الفاتحة فی الاولیین و سکت بعدها فی الاخریین. چنانچه په صحيح البخاري ج۱، ص۱۰۷ کښې د دې تصريح شته چه په آخرنيو دوه رکعتونو کښې نبي کريم ﷺ به يواځې سورۀ فاتحه قرائت کاوه. همدارنګه د ده مقتدي والی هم ثابت دی چنانچه د باب البيت سره ده مبارک ﷺ تر دوه ورځو پورې لس لمونځونه د جبرئيل ﷺ په اقتداء کښې ادا کړي دي او له غزوۀ تبوک څخه د بيرته راتلو په وخت د حضرت عبد الرحمن بن عوف ﷺ پسې اقتداء وکړه. (مسلم ج۱، ص۱۳۳ / ابو داؤد ج۱، ص۲۰) په اهلِ قبا کښې د مصالحت له مخې په بيرته راتلو باندې ئې د مازديګر لمونځ د حضرت ابو بکر صديق ﷺ پسې اقتداء وکړه. خلکو د ابو بکر د متوجه کولو لپاره خپلې څپړې وټکولې. تر بنه څنډ وروسته دی خبر شو نو شا ته شو او نبي کريم ﷺ لمونځ ورکړ. (بخاری ج۲، ص۱۰۶۶)

او که چيرته خاص د مجمع البحار معنی را واخيستله شي نو د هغه به هم هغه ځواب وي کوم چه پورته په نمبر ۸ کښې تير شو يعني قرائت د جهر په معنی سره مجاز دی چه د کومې قرينې وجود ورته ضروري دی. د قرائت حقيقي معنی د ويلو دی که په پټه سره وي يا په جهر سره. د قرآن

په نصّ کښې هيڅ قرينه صارفه عن الحقيقة نشته. ځکه په دې کښې قرائت د خپلې حقيقي معنٰى مطابق سراً او جهراً دواړو ته شامل دى.

۱۰ - امام بخاري رحمه الله فرمايي چه په آيت کښې د استماع او انصات دواړو حکم دى. استماع لکه څرنګه چه يواځې په جهري لمونځونو کښې کيدلى شي د دې لپاره دا حکم سرّي لمونځونو ته شامل نه دى لهذا له دې څخه د قرائت خلف الامام د مانعينو على الاطلاق استدلال صحيح نه شو. (جزء القراءة ص۹) همدا مضمون امام بيهقي په کتاب القرائت ص۷۶ کښې او نواب صاحب دليل الطالب ص ۲۸۰ کښې او مبارکپوري صاحب په ابکار المنن ص۱۴۸ او تحقيق الکلام ج۲، ص۵۱ کښې نقل کړى دى.

د دې ځواب دا دى چه په آيت کښې دوه حکمونه دي، يو د استماع حکم او دويم د انصات حکم. په جهري قرائت کښې د استماع او انصات دواړو موقع دى او په سرّي قرائت کښې يواځې انصات کيدلى شي ځکه چه په جهري کښې د استماع مع الانصات حکم دى او په سرّي کښې يواځې د انصات حکم دى.

د انصات معنٰى مطلق سکوت او ترک کلام (خبرې د پريښودلو) دى. د دې لپاره استماع لازم نه دى. لقوله ﷺ فان رأى حيث لا يسمع فانصت ولم يلغ كان له كفل من الاجر رواه ابو داؤد. (جمع الفوائد ج۱، ص۲۵۷) وفى كنز العمال مما رواه عبد الرزاق عن زيد بن اسلم رضي الله عنه مرسلا وعن عثمان بن عفان رضي الله عنه موقوفاً اقيموا الصفوف وحاذوا بالمناكب وانصتوا فان اجر المنصت الذى لا يسمع كاجر المنصت الذى يسمع. (فتح الملهم ج۲، ص۲۰) وقال الحافظ رحمه الله فى الفتح وقد وقع التفريق بين الانصات والاستماع فى قوله تعالى فاستمعوا له وانصتوا ومعناهما مختلف فالانصات هو السكوت وهو يحصل ممن يستمع وممن لا يستمع كان يكون مفكراً فى امر اٰخر وكذلك الاستماع قد يكون مع السكوت وقد يكون مع النطق بكلام اٰخر لا يشتغل الناطق به عن فهم ما يقول الذى يستمع منه، وقال فى ابواب التفسير لا شك ان الاستماع اخص من الانصات لان الاستماع الاصغاء والانصات السكوت ولا يلزم من السكوت الاصغاء. (فتح الملهم ج۲، ص۲۰) وقال الامام النووى رحمه الله فالاستماع الاصغاء والانصات السكوت ولذا قال الله تعالى واذا قرئ القراٰن فاستمعوا له وأنصتوا. (نووى مع مسلم ج۱، ص۲۸۳) وقال البيهقى رحمه الله لا فرق بين السكوت والانصات عند العرب. (كتاب القراءة ص۸۳)

البته مجد الدين فيروز آبادي صاحبِ قاموس فرمايي: نصت ينصت وانصت وانتصت سكت والاسم النصتة بالضم وانصته وله سكت له واستمع لحديثه ص۱۵۶. او په تاج العروس کښې دي: وانصته و

انصت له اذاسکت له مثل نصحه و نصح له و انصته و انصت له مثل نصحته و نصحت له و الانصات هو السکوت و الاستماع للحدیث یقال انصته و انصت له. او په مختار الصحاح کښې دي: الانصات السکوت والاستماع انصته وانصت له.

له دغو عبارتونو څخه ځینو ته دا غلط فهمي ور لویدلې ده چه د استماع او انصات دواړو یوه معنیٰ ده لیکن دا صحیح نه ده ځکه چه په دې صورت کښې په قرآنکریم کښې بې له مقصده د یوه لفظ زیاتوالی لازم ګرځي. د لغت علماوو په پورتني عباراتو کښې د انصات معنیٰ سکوت مع الاستماع نه دی بیان کړی بلکه سکوت و الاستماع ئې ویلي دي. یعنې د دې دواړه معناوې راځي. بیا مخکښې له (انصت وانصت له) څخه وضاحت کوي چه دا د استماع په معنیٰ باندې هلته کیدلی شي چه مفعول یا صله ئې هم په معنیٰ د استماع تسلیم شي نو د دې مستقلې دوه معناوې دي یو سکوت او بل استماع. له دغو دواړو معناوو څخه د قرائنو په مطابق یو ئې متعین کیدلی شي. په قرآنکریم کښې تر دې مخکښې د (استمعوا) ذکر او د سرّي قرائت د استماع قابل نه کیدل په دې باندې قرائن دي چه دلته انصات په معنیٰ د استماع نه دی.

بلکه د مفعول او صله د ذکر باوجود د دې دوه مستقلې معناوې بیان شوي دي. یو (سکت له) او بل (استمع لحدیثه، سکت) او (سکت له) کښې فرق دا دی چه اولنی ئې د داعیهٔ تکلم څخه پرته سکوتِ مفرد دی. مثلا یو سړی یواځې ناست دی او د دې لپاره غلی ناست دی چه د هغه لپاره د تکلم (خبرې کولو) کومه داعیه نشته. او په دویم کښې د تکلم د داعیې باوجود د بل سړي د رعایت په خاطر ئې سکوت کړی دی. ګوا که دا سکوت مرکب دی. بیا د بل سړي د رعایت دوه صورتونه دي. یو دا چه د هغه د خبرو اوریدل مقصود وي او بل دا چه دی کومه خبره کول غواړي هغه خبره د هغه له خوا څخه کوم بل څوک کوي. مثلاً د حاکم په دربار کښې د عریضې د وړاندې کولو لپاره یو وفدورځي د هغو مشر عریضه وړاندې کوي او د وفد نور غړي اګر که د هغه خبرې هم نه اوري نو بیا هم د دې لپاره غلي وي چه د هغو رهبر یا قائد د هغوی له خوا څخه وکالتاً عریضه وړاندې کوي. ومن هذا القبیل قوله ﷺ اناخطیبهم اذا انصتوا الی یوم القیامة.

مبارکپوري صاحب په تحقیق الکلام ج۲، ص۴۹ کښې په ابن همام رحمه الله باندې اعتراض کړی دی چه د هغه استماع په جهري لمونځونو پورې او انصات په سرّي لمونځونو پورې متعلق ګڼل تفسیر با لرأی دی کوم چه حرام دی.

د مبارکپوري صاحب دا اعتراض محض یو تهمت دی ځکه چه د ابن همام رحمه الله تفسیر د صحیحو احادیثو، لغت او جمهورو مفسرینو په تحقیق باندې مبني دی.

امام ابن تيميه په سرّي لمونځونو کښې د قرائت خلف الامام د اثبات تقرير داسې بيانوي چه پرته له ذکر. قرائت، دعاء يواځې سکوت نه عبادت دی او نه مامور به بلکه د وسوسو سبب دی لهذا په ذکر کښې مشغوليدل له سکوت څخه افضل دی او د قرآن قرائت تر ټولو بهترين ذکر دی د دې لپاره په سرّي لمونځونو کښې په امام پسې قرائت مستحب دی. (فتاوىٰ ابن تيمية ج۲،ص۱۵۰)

تعجبه ده چه ابن تيميه (واذا قرء القرآن ـ الأية) شانِ نزول لمونځ ګڼي او په دې باندې اجماع را نقل کوي نو د قرآني نص په مقابله کښې دَ قياس جنګولو به څه جواز وي؟

برسيره پر دې د ماسپښين او مازديګر په لمونځونو کښې د صحيح حديث له مخې د ديرشو آيتونو تلاوت مسنون دی او ابن تيميه هم مقتدي ته تر سورهٔ فاتحه د زيات قرائت اجازه نه ورکوي. چه کَله دومره اوږد سکوت د وسوسو مورث نه دی نو يواځې د سورهٔ فاتحه د اوه آيتونو پورې لنډ سکوت لره د وساوسو سبب ګڼل به څنګه صحيح وي؟

۱۱ - امام بخاري رحمه الله په جزء القرائت ص۹ او ص۲۵ کښې، امام ترمذي رحمه الله په سنن ترمذې ج۱.ص۴۲ کښې او امام بيهقي په کتاب القرائت ص۱۷ او ص۲۹ کښې فرمايي چه مقتدي بايد د امام په سکتو کښې سورهٔ فاتحه ووائي. همدا خبره مبارکپوري صاحب په ابکار المنن ص۱۴۸ او تحقيق الکلام ج۲، ص۵۱ کښې ليکلې ده او د هغه نورو اتباعو هم ليکلې ده. د امام د سکتاتو د اثبات لپاره ئې لاندينې دلائل وړاندې کړي دي.

۱- حضرت ابو هريره رضي الله عنه له نبي کريم ﷺ څخه روايت کوي چه کوم سړی فرض لمونځ له امام سره وکړي نو هغه دې د امام په سکتاتو کښې سورهٔ فاتحه ولولي. (کتاب القراءة ص۵۲/ مستدرك ج۱،ص۲۳۸)

۲ - عمرو بن شعيب د خپل والد په واسطه له خپل نيکه څخه روايت کوي چه کله به نبي کريم ﷺ انصات وکړ نو په دې کښې به صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم قرائت کاوه. (کتاب القراءة ص۶۹،ص۸۶)

۳ - بسند عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده روايت دی چه: چا چه د امام په سکتاتو کښې سورهٔ فاتحه قرائت نه کړي نو د هغه لمونځ به کامل نه وي. (کتاب القراءة ص۵۳)

۴ - حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمايي چه مقتدي دې د امام د سکتې په حالت کښې قرائت وکړي ځکه چه چا قرائت و نه کړ نو د هغه په لمانځه کښې به خلل واقع کيږي. (کنز العمال ج۴،ص۹۶)

۵ - حضرت سعيد بن جبير رحمه الله د سلفو تعامل نقل کوي چه امام به ضرور سکتې کولې تر څو چه مقتدي سورهٔ فاتحه قرائت کړي (جزء القراءة ص۵۷)

۶ - د سعید بن جبیر رحمه الله مذکور قول. (کتاب القراءة ص۶۹،ص۸۷)

۷ - له حضرت ابو هریره رضي الله عنه یا حضرت ابو سلمه رحمه الله څخه روایت دی چه د امام لپاره دوه سکتې وي هغه د فاتحې د قرائت لپاره غنیمت وګڼی. (جزء القراءة ص۵۸/ کتاب القراءة ص۶۰)

۸ - دهشام بن عروه پلار هغه ته وویل چه کله امام سکته وکړي نو په دې وخت کښې قرائت وکړه او د امام د قرائت په وخت کښې غلی شه ځکه چه لمونځ که فرض وي او که نفل پرته د الحمد لله له ویلو نه ادا کیږي. (جزء القراءة ص۸۵/ کتاب القراءة ص۸۷)

۹ - له حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت ذی چه د امام په سکته کښې پرته د فاتحې له قرائت څخه لمونځ نه مکمل کیږي. (کتاب القراءة ص۶۶)

**د مذکوره دلائلو په ترتیب سره ځوابونه ملاحظه کړئ:**

۱- د ابو هریره رضي الله عنه حدیث: د دې په سند کښې محمد بن عبد الله بن عبید ابن عمیر ضعیف دی. امام بخاري رحمه الله په ضعفاء ص۲۸ کښې، امام مسلم رحمه الله په صحیح مسلم ج۱، ص۲۰ کښې له امام یحیی القطان څخه، امام نسائي رحمه الله په ضعفاء صغیر ص۲۵ کښې، امام ترمذي رحمه الله په جامع الترمذي ج۲، ص۱ کښې، امام دار قطني رحمه الله په دار قطني ج۱، ص۱۲۱ کښې او پخپله امام بیهقي رحمه الله په کتاب القرائت ص۵۴ کښې د هغه تضعیف کړی دی. امام یحیی بن معین رحمه الله هم هغه لره ضعیف ګڼلی دی. (میزان الاعتدال ج۳،ص۷۷/لسان المیزان ج۵،ص۲۱۶)

برسیره پر دې په دې حدیث کښې د فرض لمانځه تخصیص دی حالانکه د اهلِ حدیثو په نزد په نفل لمونځونو کښې هم د فاتحې قرائت ضروري دی.

۲- د عمرو بن شعیب حدیث، په محدثینو کښې د عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده د سند تضعیف او د هغه ناقابل قبول کیدل مشهور او معروف دی. عمرو بن شعیب اګر که پخپله ثقه دی لیکن چه کله هغه (عن ابیه عن جده) روایت کوي نو بیا په اتفاق سره د قبول وړ نه دی. ځکه چه هغه ته له خپل پلار څخه سماع حاصل نه دی بلکه هغه ئې له کتاب څخه نقل کوي. په دې سند باندې کلام او تضعیف ئې په لاندیني کتابونو کښې دي. سنن ترمذی ج۱، ص۳۳، ج۱، ص۸۲ / طبقات المدلسین لابن حجر ص۱۱/میزان الاعتدال ج۲،ص۲۸۹/تهذیب التهذیب ج۸،ص۵۳و ص۵۴/مستدرك حاكم ج۱،ص۱۹۷/شرح معانی الآثار ج۱،ص۳۵/محلی ابن حزم ج۱،ص۲۳۲/اسعاف المبطاء برجال الموطاء ص۲۳.

په تحفة الاحوذي ج۱، ص۲۶۷ کښې لیکلي دي چه امام احمد او علي بن المدیني رحمهما الله تعالی د عمرو بن شعیب روایت د اعتبار وړ ګڼي حالانکه امام علي بن المدیني تصریح کوي چه

کله عمرو بن شعیب (عن ابیه عن جده) روایت کوي نو هغه ضعیف دی. (تهذیب التهذیب ج۸ ص۵۳)
او امام احمد رحمه الله فرمایي: له اشیاء مناکیر و انما یکتب حدیثه یعتبر به فاما ان یکون حجة فلا
همدارنګه فرمایي: وربما وجس في القلب منه شيء. (تهذیب التهذیب ج۸ ص۴۹)

له نوموړي تفصیل څخه ثابته شوه چه دعلامه ذهبي د عمرو بن شعیب روایت ته حسن ویل له بلې طریقې څخه دی. له دې څخه (عن ابیه عن جده) سند مراد نه دی. لکه څرنګه چه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایي: ومن ضعفه مطلقا فمحمول عن روایته عن ابیه عن جده. (تهذیب التهذیب ج۸ ص۵۱)

۳- د عمرو بن شعیب په دویم روایت کښې له نوموړي ضعف پرته محمد بن عبد الله بن عبید بن عمیر هم واقع دی د چا چه تضعیف د ابي هریره رضي الله عنه د حدیث لاندې تیر شو.

مذکوره پورتني حدیثونو نه علاوه ئې چه کوم روایتونه وړاندې کړي دي هغه ټول د صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم او تابعینو رحمهم الله باندې موقوف دي حالانکه د اهل حدیثو په نزد د صحابه وو موقوف هم حجت نه دی د تابعینو موقوفات په کوم شمار کښې؟ علاوه له دې نه د مذکوره احادیثو غوندې له دغو آثارو څخه یو اثر ئې هم صحیح نه دی. د هغو تنقیح (چاڼ) ملاحظه کړی.

۴ - د ابن عمر رضي الله عنهما اثر: په حقیقت کښې دا اثر له عبد الله بن عمرو بن العاص څخه دی. په رواتو کښې چا په غلطۍ سره ابن عمر کړی دی. (کتاب القراءة ص۳۵) د دې په سند کښې مثنی بن صباح ضعیف دی. امام بخاري، امام نسائي، امام احمد، امام ترمذي، دار قطني، امام یحي القطان، ابن المهدي، حافظ ابن حجر، ابن معین، ابن عدي، ابن سعد، علي بن الجنید، حافظ ابن حبان، ساجي، ابو احمد الحاکم، سحنون او امام عقیلي رحمهم الله تعالی هغه لره ضعیف ګڼلی دی. (ضعفاء صغیر للبخاری ص۳۰/ ضعفاء صغیر للنسائی ص۵۳/ میزان الاعتدال ج۳، ص۷/ تهذیب التهذیب ج۱۰، ص۳۶/ تقریب ص۳۳۶)

برسیره پر دې دا اثر مجمل دی ځکه چه په دې کښې د سورهٔ فاتحه صراحت نشته.

۵ - د سعید بن جبیر اثر: د دې په سند کښې دوه راویان ضعیف دي. یو عبد الله بن رجاء مکي امام احمد، ازدي او ساجي رحمهم الله تعالی د هغه تضعیف کړی دی. (میزان الاعتدال ج۲، ص۲۷/ تهذیب التهذیب ج۵، ص۲۱۱) دویم عبد الله بن بن عثمان بن خیثم امام نسائي، امام ابن معین، امام ابو حاتم، حافظ ابن حبان، امام ابن المدیني، امام دار قطني رحمهم الله تعالی هغه لره ضعیف ګڼي (میزان الاعتدال ج۲، ص۵۶/ تهذیب التهذیب ج۵، ص۳۱۵/ نصب الرایه ج۱، ص۳۵۳)

۶ - د سعید بن جبیر دویم اثر: د دې په سند کښې هم عبد الله بن عثمان بن خیثم دی د چا چه

تضعیف پورته د حدیثو له څو امامانو څخه نقل شوی دی.

۷- د ابي هریره ﷺ اثر: په دې کښې خو لومړی دا خبره ده چه دا د له حضرت ابو هریرة ﷺ څخه مروي دی او که له ابو سلمه تابعي رحمه الله څخه. رواتو په دې کښې تردّد دی. برسیره پر دې د دې په سند کښې موسیٰ بن مسعود ضعیف دی. امام احمد، امام ترمذي، امام ابن خزیمه، بزار، ابو حاتم، عمرو بن علي الفلاس، ابو احمد الحاکم، امام حاکم، ابن قانع، ساجي او امام دار قطني رحمهم الله تعالی هغه ته ضعیف ویلی دی. (میزان الاعتدال ج۳،ص۲۸۱/تهذیب التهذیب ج۱۰،ص۳۷۱)

۸ - د هشام بن عروه اثر: د دې په سند کښې هم موسیٰ بن مسعود واقع دی چه د هغه تضعیف تقریباً د حدیثو له یو درځن امامانو څخه پورته نقل شو.

برسیره پر دې په دې روایت کښې د (فصاعداً) زیاتوالی هم دی چه په هغه باندې د غیر مقلدینو هم عمل نشته.

۹ - د ابي هریرة ﷺ اثر: د دې په سند کښې اسحاق بن عبدا الله بن ابي فروه ضعیف دی. امام مالک، امام شافعي، امام نسائي، ابو حاتم، ابن حبان، ابو زرعه، ابن عمار، علي بن المدیني، دار قطني، برقاني، ابن خزیمه، خلیلي، بزار، ابن جارود، عقیلي، دولابي، ابو العرب، ساجي او ان شاهین رحمهم الله تعالی د هغه تضعیف کړی دی. (تهذیب التهذیب ج۱،ص۲۴۱)

له مذکوره بحث څخه څرګنده شوه چه د مقتدیانو د سورۀ فاتحه د ویلو لپاره د امام د سکتاتو هیڅ ثبوت نشته. البته په دوه ځایونو باندې سکتې ثابتې دي. یوه سکته تر تکبیر تحریمې وروسته او دویمه سکته تر سورۀ فاتحه وروسته. په اولنۍ سکته کښې خو ښکاره ده چه د سورۀ فاتحه د ویلو موقع نشته او تر سورۀ فاتحه وروسته سکته یواځې مقدره ده چه امام خپله ساه درست کړي. د حدیثو امامان د دې تصریح کوي حتی یتراد الیه نفسه. (نسائی ج۱،ص۱۰۳/ابو داؤد ج۱، ص۱۱۳/ترمذی ج۱،ص۳۴/دارمی ص۱۳۶) پخپله مبارکپوري فرمايي: بل السکتة الثانية كانت لان يتراد اليه نفسه كما صرح به قتادة. (تحفة الاحوذی ج۱،ص۲۰۹) له دغو تصریحاتو څخه ثابته شوه چه له دې سکتې څخه مقتدیانو ته د فاتحې د قرائت موقع ورکول مقصود نه دی او نه په دومره لنډې سکتې کښې ئې ګنجائش شته. تعجبه ده چه هوا پرستي له سکتې څخه سکتات څرنګه جوړ کړل؟ ځان ته بیا هم اهل حدیث وائي. حافظ ابن قیم رحمه الله فرمايي چه له کوم صحیح حدیث څخه دا نه ده ثابته چه نبي کریم ﷺ دې د مقتدیانو د سورۀ فاتحه د قرائت لپاره سکته کړې وي. (غیث الغمام ص۱۸۰) د دې لپاره جمهور اهل اسلام د داسې سکتې یا سکتاتو قائل نه دي تر دې پورې چه پخپله غیر مقلدینو کښې د انصاف خاوندان دا ردوي.

شیخ الاسلام ابن تیمیه فرمائي: **ولم نعلم نزاعا بين العلماء انه لا يجب على الامام ان يسكت ليقرأ المأموم بالفاتحة ولا غيرها (الى قوله) ولا يستحب للامام السكوت ليقرأ المأموم عند جماهير العلماء وهذا مذهب مالك وابي حنيفة واحمد بن حنبل وغيرهم رحمهم الله تعالى. (فتاوٰی ابن تيمية ج۲، ص۱۴۶/ تنوع العبادات ص۸۵)** محمد بن اسمٰعیل بن الصلاح امیر یماني فرمائي: **ثم اختلف القائلون بوجوب القراءة فقيل في محل سكتات الامام وقيل في سكوته بعد تمام القراءة ولا دليل لهذين القولين في الحديث. (سبل السلام شرح بلوغ المرام ج۱، ص۱۰۶)**

د مذکور شیخ محمد بن اسمٰعیل په اړه نواب صدیق حسن خان صاحب فرمائي: **امام صنعاء و علامۂ یمن و شاعر مجید و مجتهد مفید و محدث کامل و عارف واصل است، عامل بود بکتاب و سنت بحسب اجتهاد نفس خود تقید بتقلید احدی از اهل علم نداشت. (تقصار جیود الاحرار من تذکار جنود الابرار ص۸۰)**

درایةً هم د مقتدیانو لپاه د امام سکته کول د شرعي د اصولو خلاف دی بلکه د شریعت له قانون سره مقابله ده. شریعت مقتدیانو ته د امام د اتباع حکم ورکړی دی او د حدیثو د متابعت داعیانو امام ته د مقتدیانو د اتباع حکم ورکوي چه د هغو لپاره دې خاموشي غوره کړي. د نبي کریم ﷺ وینا خو دا ده چه کله امام قرائت کوي نو تاسو غلي و اوسی. لیکن پخپل گومان سره د اهل حدیثو دا فیصله ده چه د مقتدیانو د قرائت لپاره دې امام باید غلی شي. امام ابو بکر الجصاص رحمة الله عليه فرمایي: **وقوله ﷺ وانما جعل الامام ليؤتم به فاذا قرأ فانصتوا اخبار منه من ان من الائتمام بالامام الانصات لقراءته وهذا يدل على انه غير جائز ن ينصت الامام لقراءة المأموم لانه لو كان مأموراً بلا لانصات له لكان مأموراً بالائتمام به فيصير الامام مأموما والماموم اماما في حالة واحدة وهذا فاسد. (احكام القرآن ج۳، ص۵۱)**

۱۲- د خیر الکلام مصنف فرمائي چه د سورۂ اعراف په آیت کښي له انصات څخه په کُلي توگه خاموشي مراد نه ده ځکه چه له نورو آیتونو څخه ثابتیږي چُه د قرآن د قرائت په وخت څو جائز کلمات ویل د اعراف د آیت منافي نه دی. آیتونه دا دي: **(اِنَّ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهٖٓ اِذَا يُتْلٰى عَلَيْهِمْ يَخِرُّوْنَ لِلْاَذْقَانِ سُجَّدًا وَّيَقُوْلُوْنَ سُبْحٰنَ رَبِّنَآ اِنْ كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا لَمَفْعُوْلًا)**. (بنی اسرائیل) **(وَاِذَا سَمِعُوْا مَآ اُنْزِلَ اِلَى الرَّسُوْلِ تَرٰٓى اَعْيُنَهُمْ تَفِيْضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا عَرَفُوْا مِنَ الْحَقِّ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اٰمَنَّا فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ وَمَا لَنَا لَا نُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَمَا جَآءَنَا مِنَ الْحَقِّ وَنَطْمَعُ اَنْ يُّدْخِلَنَا رَبُّنَا مَعَ الْقَوْمِ الصّٰلِحِيْنَ)**. (مائده). **(اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ مِنْ**

قَبْلِهٖ هُمْ بِهٖ يُؤْمِنُوْنَ وَاِذَا يُتْلٰى عَلَيْهِمْ قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِهٖٓ اِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّنَآ اِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلِهٖ مُسْلِمِيْنَ). (قصص) له دغو آيتونو څخه څرګنده شوه چه ځينې جائزې کلمې ويل د قرآن د استماع او انصات سره ټکر نه دی. (خير الكلام ص٣٦٦)

مونږ پورته ثابته کړه چه د اعراف د آيت شانِ نزول په اجماع سره قرائت خلف الامام دی. په پورتني آيتونو کښې چه کوم کلمات راغلي دي هغه نه په حالت د لمانځه کښې دي او نه په حکم دې قرائت د قرآن دي. همدارنګه آيا پوره سورۀ فاتحه صرف څو کلمات دي؟ د درايت له مخې هم په پورتني آيتونو کښې د مذکوره کلماتو او د سورۀ فاتحه په قرائت کښې فرق شته چه د فاتحې په قرائت کښې د قرآن منازعه ده او داسې کلمات ويل چه په هغو کښې په قرآنکريم باندې د ايمان او انقياد اظهار وي منازعه نه دی بلکه د قرآن متابعت دی. مثلا په شاهي دربار کښې د عريضې د وړاندې کولو په وخت کښې چه ټول حاضرين عريضه ووائي نو د ادب خلاف دی او که چيرته يو سړی عريضه وړاندې کوي او نور ئې په تائيد کښې څه کلمات ووائي نو دا عين ادب دی.

تر دې ځايه پورې د دغو بيکارو تاويلاتو ځوابونه وو کوم چه په (وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا) قرآني نص کښې کيږي. مخکښې د مخالف لوري د ځينو الزاماتو حال واورئ. د الزاماتو د فهرست تر ذکر کولو مخکښې مونږ غواړو چه دوباره دا حقيقت په ذهن کښې در کښينوو چه د اعراف آيت په اجماع سره په لمانځه کښې له قرائت خلف الامام څخه د ممانعت په باره کښې نازل شوی دی چه مفصل بيان ئې په دې آيت باندې د بحث په ابتداء کښې تير شو. لهذا له لمانځه څخه د باندې قرائت او په لمانځه کښې د غير مقتدي قرائت او په لمانځه کښې له قرائت پرته د نورو ذکرونو لکه ثناء او داسې نورو ته دا آيت شامل نه دی. د دې حقيقت په نظر کښې ساتلو سره د مخالف لوري له خوا څخه وارد شوي الزامات پخپله له حقيقت څخه لرې او باطليږي. اوس د دغو الزاماتو فهرست ملاحظه کړئ.

۱ - امام بخاري رحمه الله په جزء القرائت ص۳۵ کښې او مبارکپوري په تحقيق الكلام ج۲. ص۴۴ کښې فرمائي چه کله يو څوک په داسې وخت کښې اقتداء کول وغواړي چه امام په قرائت باندې شروع کړې وي نو تکبير تحريمه به خامخا وائي او دا آيت د استماع او انصات منافي دی لهذا په مذکوره آيت باندې د فاتحه خلف الامام د مانعينو هم عمل نشته.

د دې الزام باطل والی ښکاره دی چه تکبير تحريمه نه قرآن دی او نه د لمانځه په منځ کښې دی. څکه چه د احنافو په نزد تکبير تحريمه شرط دی او شرط له مشروط څخه د باندې او مخکښې وي.

۲ - امام بخاري رحمه الله په جزء القرائت ص۷ او ص۱۰ کښې. امام بيهقي رحمه الله په کتاب القرائت ص۱۵۷ کښې او مبارکپوري په تحقيق الكلام ج۲. ص۴۶ کښې فرمائي چه د قرائت خلف الامام

مانعين هم په اقتداء کښې د ثناء او داسې نورو د ويلو قائل دي ځکه د دې آيت په استماع او انصاب باندې عمل کوونکي پاتې نه شول.

د احنافو په نزد مدرک د دې لپاره ثناء ويلی شي چه تر اوسه خو لا امام قرائت شروع کړی نه دی او مسبوق ته د امام د جهري قرائت په وخت کښې د ثناء ويل جائز نه دي. په منيه کښې دي چه: **و روی عن الفقيه ابی جعفر الهندوانی انه قال اذا ادرك الامام فی الفاتحة يثنی بالاتفاق.** دا قول د تمريض په صيغې سره د منقول والي له وجې ضعيف دی چنانچه علامه حلبي رحمه الله د مذکور عبارت لاندې فرمائي: **وان ادركه فی السورة يثنی عند ابی يوسف لا عند محمد ذكره فی الذخيرة وهو بعيد اذ لا فصل فی قوله تعالى وإذا قرئ القرآن فاستمعوا له الأية بين الفاتحة وغيرها بل الاصح هو القول الاول انه لا يأتی به مطلقا لاطلاق النص. (كبيری ص۲۹۵)** البته له سرّي قرائت سره د ثناء د ويلو اجازه شته. د دې خواب هغه دی چه منصوص ممانعت يواځې د قرآن له قرائت څخه دی. لقوله ﷺ **فلا تقرءوا بشیء من القرآن** قاضي شوکاني فرمائي: **وظاهر التقييد بقوله من القرآن يدل على انه لا بأس بالاستفتاح حال قراءة الامام بما ليس بقرآن والتعوذ والدعاء. (نيل الاوطار ج۲، ص۲۴۳)** او نواب صديق حسن خان صاحب فرمائي **واين روايات (فلا تقرءوا بشیء من القرآن وغيرها) ونحو آن دلالت دارند بر آنکه منهی عنه نزد قرائت امام همان قرآن کريم است فقط واما قراءة توجه واستعاذه ونحو آن پس لا بأس به است ونهی متناول آن نيست ونه بوجهی از وجوه بر آن دلالت دارد. (دليل الطالب ص۲۹۳)** مولانا عبد الصمد صاحب هم په اعلام الاعلام ص۱۹۲ کښې همداسې ليکي. له روايتونو برسيره درايةً هم دا خبره معقوله ده چه د امام د قرائت په وخت کښې د مقتدي لپاره يواځې قرائت منع دی، ثناء او داسې نور منع نه دي. ځکه چه په سورهٔ فاتحه کښې امام د ټولو مقتديانو له خوا څخه عريضه وړاندې کوي لهذا د مقتديانو له امام سره يو ځای ويل د ادب خلاف دی. په خلاف د ثناء او داسې نور چه هغه دربار ته د داخليدو په وخت کښې د ابتدائي سلام او آدابو حيثيت لري او په دغو امورو کښې وکالت او نمائندگي نه وي بلکه د هغو ادا کول په ټولو حاضرينو باندې لازم وي.

۳ - امام بخاري رحمه الله په جزء القرائت ص۷ کښې، امام بيهقي رحمه الله په کتاب القرائت ص۱۵۷ کښې او مبارکپوري په تحقيق الکلام ج۲، ص۴۲ کښې فرمائي چه د قرائت خلف الامام مانعينو په نزد د امام قرائت د مقتدي لپاره کافي دی ليکن په ثناء او داسې نورو کښې امام کفايت نه شي کولی. له دې څخه ثابته شوه چه د هغو په نزد له فرض څخه د غيرِ فرض اهميت زيات دی.

د دې خواب پورته تير شو چه د حديث له روايت برسيره د درايت مقتضٰی هم همدغه دی چه

وکالت او نمائندګي پواځې د عريضې په وړاندې کولو کښې وي. د آدابو په پر ځای کولو کښې نه دی.

له دغو اکابرو څخه هیله ده چه آیا ستاسو په نزد د سورهٔ فاتحې څخه پرته د ټول قرآن اهمیت له ثناء او داسې نورو څخه کم دی چه له سورهٔ فاتحه څخه له زیات قرائت څخه ممانعت کوی او د ثناء او داسې نورو حکم ورکوئ.

د قرآن، حدیث او عقل سلیم دې فیصلې لره ستاسو له خپلې کورنۍ څخه قاضي شوکاني، نواب صاحب او مولانا عبد الصمد هم په تسلیمولو مجبوره دي.

٤ - امام بخاري رحمه الله په جزء القرائت ص۷ کښې فرمائي چه کله د سهار جماعت ولاړ وي نو د احنافو په نزد له هغه سره نژدې د سنتونو ادا کول جائز دی. دا آیت د استماع او انصات سره ټکر دی.

دا الزام ځکه صحیح نه دی چه دا سړی تر اوسه د امام په اقتداء کښې نه دی داخل شوی.

٥ - مبارکپوري په تحقیق الکلام ج۲. ص۳ کښې د کفایه ج۱. ص۶۸ او شرح وقایه ج۱. ص۱۷۵ کښې فرمائي چه د احنافو په نزد چه کله خطیب ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا﴾ ووائي نو اوریدونکو ته په پټه درود شریف ویل جائز دي حالانکه آیت اعراف خطبې ته هم شامل دی.

دا الزام هم غلط دی ځکه چه دا تحقیق په تفصیل سره تیر شو چه د اعراف آیت په اجماع سره د قرائت خلف الامام په اړه نازل شوی دی. د آیت د نزول په وخت د خطبې وجود هم نه وو د خطبې په حالت کښې د سکوت حکم په حدیثو باندې مبني دی. البته چونکه خطبه هم د دوه رکعته لمانځه قائم مقام دی د دې لپاره ځینو حضراتو دا هم د اعراف د آیت د الفاظو په عموم کښې داخل کړی دی.

برسیره پر دې په حنفي مذهب کښې د محقق او مفتی به قول په مطابق د خطبې په حالت کښې د اوریدونکو لپاره د درود شریف سوکه ویل هم جائز نه دي قال في الخانية ومشائخنا قالوا انه لا يصلى على النبي ﷺ بل يستمع وينصت لان الاستماع فرض والصلوة على النبي ﷺ يمكن بعد هذه الحالة. (خانيه ج۱. ص۸۰) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تحت (قوله يصلى على النبي ﷺ عند سماع اسمه في نفسه) وعن ابي يوسف رحمه الله قلبا ائتمار الامر في الانصات والصلوة عليه صلى الله عليه وسلم كما في الكرماني قهستاني قبيل باب الامامة واقتصر في الجوهرة على الاخير حيث قال ولم ينطق به لانها تدرك في غير هذا الحال والسماع يفوت. (ردالمحتار ج۱. ص۷۶۸)

## خاتمة الكلام (د خبرو لنډيز)

د قرائت خلف الامام په مسئلې باندې له څه ليکلو څخه مخکښې بنده په دې باندې غور وکړ چه که چيرته په دې مسئلې باندې د کوم بل عالم داسې رساله په لاس راشي چه له جامعيت سره سره لنډه هم وي نو د دې په ځای چه زه د کومې نوې رسالې په ليکلو محنت وکړم سائلينو ته له هغې رسالې څخه د استفاده کولو مشوره ورکړم. ليکن په همدې صفت سره کومه رساله په دې وخت کښې زما په نظر را نه غله. د مولانا محمد سرفراز خان صفدر صاحب کتاب احسن الکلام په دې موضوع باندې د تحقيق او جامعيت له لحاظه ډير د لوړې مرتبې دی ليکن ډير اوږد دی څکه ما خپل درسِ صحيح البخاري مخې ته په کيښودلو سره په هغې باندې د نور تحقيق کار شروع کړ په اضافاتو کښې مې له احسن الکلام طبع دويم څخه هم مدد واخيست. په هغه کښې چه د کومو حوالو ورکړ شوي دي د هغو خوا ته له مراجعت څخه ثابته شوه چه د حواله جاتو په ليکنه کښې ډيرې غلطيانې دي. چه چيرته پرته له سترګې څخه په غلطی باندې پوه شوی يم د هغو اصلاح مې کړې دی او که نه نو همداسې را نقل کړي دي. لهذا د علم خاوندان چه چيرته په حواله کښې د جلد يا صفحې غلطي پيدا کړي نو هغه دې په احسن الکلام کښې د کتابت په غلطی باندې محمول کړي. په مصنف باندې دا اعتماد دی چه هغه د کوم مضمون نسبت چه د کوم کتاب خوا ته ورکړی وي هغه به صحيح وي.

د قرآني نصوصو بحث تکميل ته نژدې وو چه ناڅاپه د حضرت مولانا ظفر احمد صاحب قدس سرّه رساله فاتحة الکلام مې تر نظر تير شو کوم چه په ظاهره زما د مقصد مطابق دی. له دې وجې زه خپله رساله په همدې ځای پای ته رسوم او د بحث لاندې مسئلې په اړه د احاديثو بحث. د احنافو دلائل او د مخالف لوري د دلائلو ځوابونو تفصيل په فاتحة الکلام تحويلوم او دُعا کوم چه الله تعالی دې مسلمه اُمت په فروعي مسائلو کښې د لويدو او په مجتهد فيه امورو کښې د دماغو، قلم، صلاحيتونو او طاقتونو د مصرفولو او پخپل منځ کښې د لاس او ګريوان کيدو په ځای د اسلام د دښمنانو د تخريبونو او الحاد او اباحيت له فتنو څخه د اسلام د دين د حفاظت لپاره د متحدو مساعيو (کوششونو) توفيق ورکړي او د (اَشِدَّآءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ) مصداق جوړ شي آمين. فقط و الله المُستعان.

رشيد احمد

۱۲ رمضان المبارك ۱۳۹۸هجری يوم الجمعة

# فاتحة الكلام

## فی القراءة

# خلف الامام

## بجواب

# تكميل البُرهان

## فی قراءة

# اُمّ القران

**تالیف : حضرت مولانا ظفر احمد صاحب عثمانرحمه الله تعالی**

بسم الله الرحمن الرحيم

## مقتدي او د سورهٔ فاتحه قرائت

### د حنفي مذهب موقف د کتاب او سنتو په رڼا کښې

**تمهید**

له حمد او صلوة نه وروسته ما ته زما یوه ملګري د ډاک په ذریعې سره یوه رساله په نامه د تکمیل البرهان في قراءة ام القرآن را ولیږله چه له کتنې څخه ئې څرګنده شوه چه د رسالې مصنف په امام پسې د سورهٔ فاتحه لوستل لازم فرض ګڼلی دی. او له خپله ځانه ئې دا اجماعي مسئله فرض کړې ده. لکه څرنګه چه له دې څخه د حنفي مذهب سپکوالی مترشح کیږي. د دې لپاره مناسبه څرګنده شوه چه په دې مسئله کښې حنفي دلائل بیان کړی شي تر څو چه دُنیا ته څرګنده شي چه امام ابو حنیفه رحمه الله په یوې مسئلې کښې پرته له دلیل څخه کومه خبره نه کوي بلکه د کتاب او سنتو له دلیل څخه ئې کوي. د حنفیه وو د دلائلو تر بیانولو وروسته د هغو الزاماتو ځوابونه هم انشاء الله ورکول کیږي کوم چه په دې رسالې کښې په حنفیه وو باندې لګول شوي دي. والله المستعان وعلیه التکلان حسبنا الله ونعم الوکیل.

١ - وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ○

او چه کله قرآنکریم لوستل کیږي نو هغه (په ښه توګه) واورئ او چُپ (خاموش) و اوسيږی ښائي چه په تاسو رحم وشي.

ابو داؤد صاحب په سنن کښې له امام احمد بن حنبل څخه روایت کړی دی چه د ټولو خلکو په دې باندې اجماع ده چه دا آیت د لمانځه په باره کښې استعمال شوی دی. امام احم فرمائي چه ټول خلک په دې باندې دي چه دا آيت د لمانځه په باره کښې دی. سعید بن المسیب، حسن بصري، ابراهیم نخعي، محمد بن کعب او زهري ټول همدا خبره کوي چه دا آيت د لمانځه په باره کښې نازل شوی دی. زید بن اسلم او ابو العالیه هم همدغه وائي چه خلکو د امام پسې قرائت کاوه نو دا آیت کریمه نازل شو. (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا) بیا په دې باندې اجماع ده چه په مقتدي باندې په امام پسې قرائت لازم نه دی. امام احمد فرمائي چه مونږ په اهل اسلام کښې له چا څخه دا نه دي اوریدلي چه کله امام په زوره قرائت وائي نو په هغه پسې د لمونځ کوونکو لمونځ پرته له قرائت څخه نه صحیح کیږي. چنانچه رسول الله ﷺ او د ده صحابه او تابعین او په اهل حجاز کښې امام مالک، اهل عراق کښې سفیان ثوري، په اهل شام کښې اوزاعي، اهل مصر کښې لیث بن سعد له دوی څخه یوه ئې هم دا نه دي ویلي چه کله امام قرائت وائي او مقتدي قرائت و نه وائي نو د هغه لمونځ باطل دی. (المغني د ابن قدامه ج١، ص٦٠٢ مطالعه کړی)

له دې څخه په ښکاره توګه معلومه شوه چه له کومو احادیثو څخه چه د مقتدي په ذمه په امام پسې قرائت لره فرض ګڼل شوی دی هغه د امام احمد په نزد صحیح نه دي او چه کوم صحیح دي هغه د منفرد او امام په حق کښې دي، د مقتدي په باره کښې نه دي لکه څرنګه چه په راتلونکي کښې څرګندیږي.

مفسر ابن جریر طبري له مسیب ابن رافع څخه روایت کوي چه عبد الله بن مسعود وفرمایل چه مونږ به په لمانځه کښې په یوه بل باندې سلام کاوه یعني سلام علی فلان، سلام علی فلان بیا د قرآنکریم دا آیت نازل شو (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا) چه کله قرآن ویل کیږي نو غوږ ورته و نیسی او چُپ شی

٢-٣ ابن جریر له ابو عیاض څخه روایت کوي چه ابو هریره ﷺ وفرمایل چه خلکو به لمانځه کښې خبرې کولې نو چه کله دا آیت نازل شو (و اذا قرء القرآن) او دویم آیت (قوموا لله قانتین) نو د چپ اوسیدلو حکم وشو. د دواړو روایتونو راویان ثقه دي.

له یسیر بن جابر څخه روایت دی چه ابن مسعود ﷺ لمونځ وکړ او ځینې خلک ئې له امام سره په قرائت ویلو ولید نو له لمانځه څخه په فارغیدو سره ئې وفرمایل چه آیا د تاسو لپاره د دې وخت

نه دی راغلی چه پوه شی. د دې وخت نه دی راغلی چه خبر شئ چه کله قرآن لوستل کیږي نو غوږ د نیسی او غلي یا چُپ شئ. لکه څرنګه چه الله تعالی حکم کړی دی. ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ امام طبري صاحب هم همدغه روایت کړی دی او د دې ټول راویان ثقه دي او سند ئې صحیح دی.

۴ - امام بیهقي له مجاهد څخه روایت کوي چه رسول الله ﷺ په لمانځه کښې قرائت کاوه نو د یوه انصاري ځوان قرائت ئې واوریده نو دا آیت نازل شو ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ بیهقي د دې په سند باندې هیڅ جرح نه ده کړې یواځې ئې دومره وویل چه دا مُرسل دی او دا مُرسل زموږ په نزد حجت دی او چه کله ئې تائید په نورو مراسیلو او داسې نورو څخه وشي نو بیا د ټولو په نزد حجت دی.

مفسر طبري صاحب د دې موافق له زهري څخه روایت کوي چه کله رسول الله ﷺ به څه وویل نو یو انصاري ځوان به هم ورسره یو ځای وو ایه په دې باندې دا آیت نازل شو. ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾.

۵ - حافظ ابن مردوه پخپل تفسیر کښې له معاویة بن قره څخه روایت کوي چه ما له ځینو صحابه وو څخه پوښتنه وکړه، عبد الرحمٰن مسرومي (راوي) وائي چه زما ګومان دا دی چه هغه عبد الله بن مغفل دی. هغه ته ما وویل چه آیا په هر سړي باندې کوم چه قرآن اوري د هغه اوریدل او خاموش اوسیدل واجب دي. و ئې فرمایل چه دا آیت ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾. د قرائت خلف الامام په باره کښې نازل شوی دی چه کله امام قرائت وائي نو وا ئې وری او غلي و اوسی.

د دې ټول راویان ثقه دي یواځې ابو المقدم ضعیف دی لیکن دا حدیث وکیع او رید بن الحباب، نضر بن شمیل او یزید بن هارون غوندې د حدیثو امامان روایت کوي (نو هغه داسې ضعیف نه دی چه رد کړی شي خصوصاً په داسې حال کښې چه د هغه په تائید کښې ډیر آثار موجود دي) امام بیهقي له ابو العالیه څخه مرسلاً روایت کوي چه رسول الله ﷺ به چه کله په لمانځه کښې قرائت کاوه نو صحابهٔ کرامو به هم قرائت کاوه نو آیت نازل شو ﴿فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ (د نبي کریم ﷺ قرائت واورئ او خاموش و اوسی) بیا خلک خاموش اوسیدل او نبي کریم ﷺ به قرائت کاوه [1]. (جزء القرائت ص ۷۴) بیهقي د دې په راویانو کومه جرح نه ده کړې یواځې دومره چه دا منقطع (یعنې مرسل) دی او مرسل زموږ لپاره حجت دی.

---

[1] - د دغو ټولو آثارو او احادیثو کوم چه په دې مضمون کښې مذکور دي د سندونو مفصل تحقیق ئې په اعلاء السنن کښې راغلي دي څوک ئې چه شوق لري هلته دې مطالعه کړي. ۱۲ منه

۲ - امام بیهقي په جزء القرائت کښې له عبد الله ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت کوي مؤمن د قرآنکریم خوا ته د غوږ نیولو څخه په وسعت کښې دی (که ئې واوري یا ئې وا نه وري) لیکن په فرض لمانځه کښې او د جُمعې. کوچني اختر او لوی اختر په ورځ یعنې (په دغو لمونځونو کښې) چه کله قرآن لوستل کیږي نو قرآنکریم واورئ او خاموش پاتې شئ ص۷۳

**فائده**: د ابن عباس مذهب خو دا معلومیږي چه د لمانځه نه بغیر د قرائت اوریدل واجب نه دي په دې کښې د فقهاوو اختلاف دی د حنفیه وو یو قول هم د دې موافق دی. دویم قول دا دی چه د لمانځه نه د باندې هم د قرآن د قرائت لپاره چُپ اوسیدل او اوریدل واجب دي. په دې کښې احتیاط دی ځکه چه د قرآن د آیت شانِ نزول اګر که قرائت خلف الامام دی لیکن الفاظ ئې مطلق دي.

۷ - محمد بن کعب قرضي (د تفسیر او حدیثو امام) څخه روایت دی چه صحابهٔ کرامو به له رسول اللهﷺ سره یو ځای قرائت کاوه تر دې پورې چه د سورهٔ اعراف آیت نازل شو (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا). (جزء القراءة ص۳۰)

بیهقي د دې په سند کښې هیڅ علت نه دی بیان کړی بلکه سکوت ئې کړی دی.

**فائده**: مفسر ابن جریر طبري پخپل تفسیر کښې د دې آیت په اړه د ګنو آثارو په بیانولو سره فرمایلي دي چه په ټولو قولونو کښې صحت او صواب ته زیات نژدې د هغو خلکو قول دی کوم چه وائي چه مقتدیانو ته په لمانځه کښې د قرآنکریم د اوریدلو حکم ورکړ شوی دی. چه کله امام قرائت کوي او خلک په هغه پسې اقتداء کوي او د خطبې د اوریدلو امر شوی دی. مونږ دا قول ډیر صحیح ځکه بللی دی چه له صحیح حدیث څخه د رسول اللهﷺ دا ارشاد ثابت دی چه ده وفرمایل (اذا قرأ الامام فانصتوا). چه کله امام قرائت کوي نو خاموش و اوسئ او د ټولو (علماوو) په دې باندې اتفاق دی چه کوم سړی د جُمعې خطبه له امام څخه واوري په هغه باندې اوریدل او خاموش اوسیدل واجب دي. له اجماع څخه پرته له رسول اللهﷺ څخه په احادیثو کښې هم په تواتر سره د دې امر راغلی دی او له دغو دواړو حالتونو څخه پرته په بل یو حالت کښې د قرآنکریم اوریدل او د قرائت لپاره د چُپ اوسیدل واجب نه دي. اګر که په یوه صورت کښې اختلاف شته چه کله مقتدي په امام پسې وي (ځیني علماء په هغه باندې خاموش اوسیدل نه واجبوي بلکه د سورهٔ فاتحه قرائت ورته واجب بولي) لیکن له رسول اللهﷺ څخه په صحیح حدیث کښې ثابت دی چه ده وفرمایل چه کله امام قرائت کوي نو چُپ و اوسئ. پس په امام پسې د هغه د قرائت لپاره خاموش اوسیدل په هغو خلکو باندې واجب دی چه څوک ئې مقتدیان وي او قرائت ئې اوري. د ظاهر له وجې د قرآنکریم له عموم او د رسول اللهﷺ له مذکوره حدیث ج۹. ص۲۹.

له دې تقریر څخه دا خبره څرګنده شوه چه امام ابن جریر طبري چا ته چه شافعي المذهب ویل

کیږي په جهري لمانځه کښې د مقتدي په ذمې باندې د قرآن اوریدل او چُپ اوسیدل واجب بولي او په پټ لمانځه کښې د مقتدي قرائت جائز بولي او زیات اختلاف په جهري لمانځه کښې دی. په پټ لمانځه کښې زیات اختلاف نشته. لکه څرنګه چه په راتلونکي کښې به څرګنده شي. اګر که د حنفیه وو په نزد د دې هم دلائل موجود دي چه په پټ لمانځه کښې هم مقتدي باید په امام پسې قرائت و نه کړي ځکه چه په قرآنکریم کښې دوه حکمونه دي یو **(استمعوا)** (د امام قرائت واورئ) دا د جهري لمانځه سره خاص دی. دویم حکم **(انصتوا)** (د امام د قرائت په وخت کښې خاموش و اوسئ) دا جهري او سرّي لمونځونو دواړو ته شامل دی. پس که چیرته مقتدي په سرّي لمانځه کښې د استماع په حکم باندې عمل نه شي کولی نو د انصات په حکم باندې خو عمل کولی شي دا به د څه لپاره پریږدي. له دې برسیره احادیث او آثار هم په راتلونکي کښې بیانیږي چه له هغو څخه د مقتدي په ذمې باندې په امام پسې مطلقاً د چُپ اوسیدلو وجوب ثابت دی که جهري لمونځ وي او که سرّي لمونځ.

دلته په دې خبرې باندې هم ځان باید پوه کړئ چه کومو صحابه وو یا تابعینو د **(وَإِذَا قُرِءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا)**. په شان نزول کښې د جُمعې د خطبې ذکر کړی دی د هغو مطلب دا دی چه وروسته د جُمعې خطبه هم د دې آیت لاندې داخل کړی شوی دی ځکه چه د ټولو مفسرینو. قراوو او محدثینو په دې خبرې باندې اتفاق دی چه سورهٔ اعراف مکي دی. بیضاوي یواځې اته آیتونه ترې مستثنی کړي دي کوم چه له **(اِذْنَتَقْنَا الْجَبَلَ)** څخه شروع کیږي چه **(وَإِذَا قُرِءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ)**. پکښې داخل نه دی. دا په اتفاق سره مکي دی او په مکې کښې د جُمعې لمونځ قائم نه وو او نه هلته د جُمعې خطبه ویله شوې وه نو دا په شانِ نزول کښې څرنګه بیانیدلی شي. پس صحیح دا ده چه دا آیت د قرائت خلف الامام په باره کښې نازل شوی دی او د خطبې حکم هم د لمانځه غوندې دی تر دې وروسته د امام بیهقي دا وینا صحیح نه ده چه په دې آیت کښې مقتدیانو ته په امام پسې د دنیوي خبرې کولو یا په جهر سره له قرائت کولو څخه منع راغلې ده. په پټه سره د سورهٔ فاتحه له لوستلو څخه منع نه ده راغلې. ځکه چه ښکاره ده چه د آیت الفاظ سورهٔ فاتحه او داسې نورو ټولو ته شامل دي. په آیت کښې د انصات حکم دی چه معنی ئې ده بالکل چُپ او غلی اوسیدل کوم چه له فاتحه څخه هم د چُپ اوسیدلو مقتضي دی. بیا مونږ پوښتنه کوو چه آیا امام بیهقي د خطبې په حالت کښې په پټه سره د الله تعالی ذکر. تسبیح او داسې نورو د ویلو اجازه ورکوي؟ که چیرته ئې نه ورکوي نو هلته له دې آیت څخه په مطلقه توګه د چُپ اوسیدلو په واجب والي باندې به استدلال څرنګه صحیح وي؟ که چیرته اجازه ورکړي نو د هغه د مذهب به هم خلاف واقع شي او د اجماع به هم خلاف وي. د جُمعې په خطبه کښې د هیچا په نزد هم د خطبې اوریدونکو

ته د الله تعالی ذکر او تسبیحات ویل جائز نه دي نه په پټه سره او نه په زوره. پس د حیرانتیا خبره دا ده چه په خطبه کښې خو په مطلقه توګه له ذکر او تلاوت او داسې نورو څخه په پټه سره هم او په جهر سره هم منع کړی شي او په لمانځه کښې دې په پټه سره قرائت ته جائز وویل شي. حالانکه په دې باندې اجماع ده چه د اعراف د آیت ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾. نزول د قرائت خلف الامام په باره کښې شوی دی. که چیرته دا وویل شي چه د خطبې لپاره په احادیثو کښې د انصات تاکید دی نو مونږ وایو چه د لمانځه په دننه کښې مقتدي ته د انصات تاکید په قرآنکریم کښې هم شته او په حدیثو کښې هم لکه څرنګه چه په راتلونکي کښې څرګنده شي.

۸ - له ابو موسیٰ اشعري ﷺ څخه روایت دی چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه: **اذا قرأ (ای الامام) فانصتوا** چه کله امام قرائت کوي نو چُپ و اوسئ. دې لره امام مسلم روایت کړی دی او حافظ ابن حجر وفرمایل چه حدیث صحیح دی. امام احمد هم دې ته صحیح ویلي دي لکه څرنګه چه حافظ ابن عبد البر په تمهید کښې بیان کړی دی. او د امام ابو جعفر طبري قول مخکښې تیر شو. **وقد صح الخبر عن رسول الله ﷺ من قوله اذا قرأ الامام فانصتوا** چه له رسول الله ﷺ څخه په صحیح حدیث کښې ثابته شوه چه ده وفرمایل چه کله امام قرائت کوي نو خاموش یا چُپ و اوسئ. دا حدیث امام احمد بن حنبل هم پخپل مسند کښې د امام مسلم په سند سره له ابو موسیٰ اشعري څخه روایت کړی دی چه رسول الله ﷺ مونږ ته تعلیم راکړ چه کله تاسو لمانځه ته ودرېږئ نو یو سړی دې امام جوړ شي او چه کله امام قرائت کوي نو تاسو به خاموش اوسئ. د ابو عوانه په صحیح کښې دې حدیث لره له عبد الله بن رشید څخه ابو عبیده (مجاعة بن زبیر عتکي) څخه له قتاده څخه له یونس ابن جبیر څخه له حطان بن عبد الله رقاشي څخه ابو موسیٰ اشعري څخه روایت کوي چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه کله امام قرائت کوي نو خاموش و اوسئ. او چه کله ﴿غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ﴾ ووائي نو آمین ووایئ. په دې کښې ابو عبیده د سلیمان تیمي متابعت کړی دی. هغه هم له قتاده څخه د سلیمان تیمي غوندې **(اذا قرأ الامام فانصتوا)** روایت کوي او ابو عبیده ثقه دی. په انساب سمعاني کښې عبد الله ابن رشید او ابو عبیده دواړو ته مستقیم الحدیث ویل شوي دي. دار قطني هم پخپل سنن کښې دا حدیث روایت کړی دی. د هغه په سند کښې عمر بن عامر او سعید بن ابي عروبه له قتاده څخه د سلیمان تیمي غوندې **(اذا قرأ الامام فانصتوا)** روایت کړی دی. عمر بن عامر د امام مسلم له راویانو څخه دی. همدارنګه د هغه شاګرد سالم بن نوح هم د مسلم په رجالو کښې دی. امام مسلم او ابن خزیمه او ابن حبان پخپل صحیح کښې له ده څخه روایت کوي. پس د ځینو محدثینو دا وینا چه د قتاده له شاګردانو څخه یواځې سلیمان تیمي په دې حدیث کښې چه د **(اذا**

**قرأالامام فانصتوا)** زیاتوالی کړی دی، غلط دی. د قتاده دریو شاګردانو کوم چه ثقه دي د سلیمان تیمي موافقت کړی دی. بیا له امام مسلم څخه د هغه شاګر پوښتنه وکړه چه په دې حدیث کښې **(اذا قرأفانصتوا)** صحیح دی؟ امام مسلم ځواب ورکړ **(تریداحفظ من سلیمان)**. آیا تاسو له سلیمان څخه پورته د حدیثو حافظ غواړی؟ یعنې هغه کامل الحفظ، تام الحفظ، تام الضبط دی د هغه تفرد مضر نه دی (اګر که هغه منفرد هم وي په داسې حال کښې چه هغه په دې زیاتوالې کښې منفرد نه دی د دې متابعت او موافقت کوونکي نور ثقات حفاظ هم شته)

۹- له حضرت ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: امام د دې لپاره جوړ شوی دی چه د هغه اقتداء وشي. هو! چه کله هغه الله اکبر وائي نو تاسو هم الله اکبر وایئ او چه کله هغه قرائت کوي نو تاسو چُپ و اوسئ او چه کله سمع الله لمن حمده ووائي نو تاسو ربّنا لک الحمد ووایئ. دې لره نسائي روایت کړی دی او امام مسلم پخپل صحیح کښې دې ته صحیح ویلي دي. او امام احمد بن حنبل او ابن حزم هم دې ته صحیح ویلي دي. (جوهر نقي)

**فائده**: پس د امام ابو داؤد دا وینا چه "په دې حدیث کښې د **(اذاقرأفانصتوا)** زیاتوالی محفوظ ه دی، زمونږ په نزد ابو خالد وهم کړی دی" صحیح نه د ځکه چه ابو خالد احمر د مسلم او بخاري له رجالو څخه دی دواړو له دې څخه احتجاج کوي (دلیل وړاندې کوي) بیا د ابو خالد احمر متابعت هم موجود دی. محمدبن سعد انصاري هم له ابن عجلان څخه دا حدیث د ابو خالد احمر غوندې له **(اذاقرأفانصتوا)** سره روایت کړی دی. په سنن نسائي کښې دا متابعت موجود دی او امام نسائي د محمد بن سعد توثیق کړی دی. امام ابن جریر طبري هم دې ته صحیح ویلي دي. پس انصاف دا دی چه په دې حدیث کښې پرته له هغو خلکو څخه کوم چه د قرائت خلف الامام قائل دي هیڅا جرح نه ده کړې او د اصول حدیث په لحاظ سره د هغوی جرح صحیح نه ده ځکه چه لومړی خو په اصولي توګه د ثقه زیاتوالی مقبول دی دویم دا چه کوم راوي ته چه په زیاتوالي کښې منفرد ویل کیږي د هغه متابعت نورو ثقاتو هم کړی دی. اوس باید پوه شئ چه له حدیث څخه معلومه شوه چه امام د دې لپاره جوړیږي چه د هغه اتباع وشي او د قرآن د لوستونکي اتباع دا ده چه په خاموشي سره هغه واورول شي. همدا د سورهٔ اعراف د آیت **(وَإِذَا قُرِءَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا)**. مدلول دی. همدا د دویم آیت [1] **(وَاِذْصَرَفْنَا اِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ يَسْتَمِعُوْنَ الْقُرْاٰنَ فَلَمَّا حَضَرُوْهُ قَالُوْا اَنْصِتُوْا)** (سورة الجن) همدا د

---

[1] - (ترجمه) او چه کله مونږ ستا خوا ته د پیریانو یوه ډله متوجه کړله چه قرآن واوریځ چه کله هغوی د قرآن د اوریدو لپاره حاضر شول نو پخپل منځ کښې ئې سره وویل چه غلي او چُپ و اوسئ.

دريم آيت [۱] (لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَقُرْاٰنَهٗ فَاِذَا قَرَاْنٰهُ فَاتَّبِعْ قُرْاٰنَهٗ). (قال ابن عباس فى تفسيره فاستمع له وانصت كما فى البخارى) مدلول دى. همدغه مفهوم د ابو موسیٰ اشعري او ابو هريرة رضى الله عنهما په حديثونو کښې څرګند کړى شوى دى چه کله امام قرائت کوي نو خاموش و اوسئ او کوم احاديث چه د قرآنکريم له نص سره موافق نه وي په هغو کښې تاويل لازم دى که چيرته ئې سند صحيح وي او که نه وي نو رديږي به که چيرته ئې سند ضعيف وي

لکه څرنګه چه له حضرت عبادة بن الصامت ﷺ د حديث چه څومره برخه صحيح ده يعنې (لا صلوة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب) (د هغه سړي لمونځ نه کيږي چه سورهٔ فاتحه و نه لولي) په دې کښې د امام يا مقتدي هيڅ ذکر نشته او دې لره سفيان بن عينيه او زهري د حديثو راوي او امام احمد بن حنبل رحمهم الله نورو په امام او منفرد باندې محمول کړى دى ځکه چه امام مالک صاحب په موطاء کښې او ترمذي په جامع ترمذي کښې له حضرت جابر بن عبد الله صحابي ﷺ څخه موقوفاً او امام طحاوي مرفوعاً روايت کړى دى. (من صلى ركعة لم يقرأ فيها بام القرآن فلم يصل الا وراء الامام) "چا چه کوم لمونځ پرته د سورهٔ فاتحه څخه ادا کړ هغه لمونځ و نه کړ ليکن که چيرته په امام پسې وي نو لمونځ ئې کيږي" د لومړي روايت سند صحيح او د دويم روايت سند حسن دى امام احمد ن حنبل فرمائي چه وګورئ جابر بن عبد الله صحابي ﷺ د رسول الله ﷺ ارشاد چه (لا صلوة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب) "چا چه په لمانځه کښې سورهٔ فاتحه و نه لوست د هغه لمونځ نه کيږي" دا مطلب بيان کړى دى چه دا حکم د هغه چا لپاره دى چه يواځې لمونځ کوي (ترمذي) دا حکم مقتدي ته نه دى او د عباده د حديث له کومې برخې څخه چه په امام پسې د قرائت ويل ثابت کړي دي د هغه په صحت باندې محدثين خبره کوي لکه څرنګه چه په راتلونکي کښې به څرګنده شي نو هغه به رديږي ځکه چه هغه د قرآن د نص او د حديثو خلاف دى يا په هغه کښې به تاويل کيږي.

۱۰ - له حضرت عمران بن حصين ﷺ څخه روايت دى چه رسول الله ﷺ د ماسپښين لمونځ ادا کړ نو يوه سړي په ده پسې د (سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلٰى) سورت ويل شروع کړ چه کله له لمانځه څخه فارغ شو نو وئې فرمايل په تاسو کښې چه چا قرائت وکړ ما دا ګومان کاوه چه يو څوک له ما سره په

---

۱ (د وحى د نزول په وخت کښې، خپلې ژبې ته حرکت مه ورکوه د دې لپاره چه ژر ئې ياد کړې. زمونږ په ذمې باندې دى (ستا په زړه کښې) مضبوطول او د دې ويل نو چه کله مونږ (د جبرائيل عليه السلام) په ژبې سره قرآن ووايو نو د ده د قرائت اتباع وکړئ عبد الله ابن عباس د اتباع په تفسير کښې فرمايلي دي چه وا نې ورئ او غلي او چپ و اوسئ (بخاري) له دې څخه معلومه شوه چه د قرآن د لوستونکي اتباع همدغه ده چه هغه ته غوږ ونيسئ او چپ و اوسئ

قرائت کښې منازعت (جګړه) کوي. دا روایت امام مسلم صاحب کړی دی.

**فائده** له دې څخه څرګنده شوه چه رسول اللهﷺ ته تر دې وخته پورې دا معلومه وه چه صحابهٔ کرامؓ په ده مبارک پسې قرائت نه کاوه. ځکه چه په سورهٔ اعراف کښې له قرائت خلف الامام څخه منع راغلې وه چه کله یوه چا قرائت وکړ نو ده مبارک پوښتنه وکړه چه دا قرائت کوونکی څوک وو؟ که چیرته قرائت خلف الامام جائز وای نو د دې پوښتنې به څه وجه نه وه. پاتې شوه دا خبره چه دې سړي (سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى) لوستلی وو او سورهٔ فاتحهٔ ئې نه وو لوستلی د دې لپاره تنبیه یا خبرداري ورته وشوه. نو ځواب دا دی چه له دې څخه څرګنده شوه چه صحابه وو په امام پسې د سورهٔ فاتحه لوستل واجب نه ګاڼه او که نه نو دا صحابي به د سورهٔ فاتحه په ځای بل سورت ولې وایه؟ د هغو په نزد سورهٔ فاتحه او غیر سورهٔ فاتحه ټول برابر وو. که چیرته د فاتحې لوستل په مقتدي باندې واجب وای نو ده به یواځې په دومره خبرې باندې کفایت نه کاوه چه ما دا ګومان کاوه چه یو څوک له ما سره په قرائت کښې منازعت کوي بلکه صاف پاک به ئې ویلي وو چه (سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى) مه وایئ بلکه سورهٔ فاتحه باید ووایئ. او امام بیهقي د حضرت عمران له کوم روایت څخه چه په امام پسې د سورهٔ فاتحه وجوب ثابت کړی دی هغه موقوف دی او په سند کښې ئې زیاد بن ابي زید جصاص دی کوم چه اکثرو محدثینو ضعیف او متروک ګڼلی دی د ده له روایت څخه حجت وړاندې کول له انصاف څخه لرې ده.

۱۱- له عبد الله بن مسعودؓ څخه روایت دی چه خلکو به په رسول اللهﷺ پسې قرائت کاوه نو ده وفرمایل: تاسو په ما باندې قرآنکریم مخلوط (ګډوډ) کړ (یعني زما په قرائت کښې مو خلط ملط پیدا کړ) د دې سند د بزار په نزد غوره دی او پ مسند احمد کښې د دې راویان صحیح راویان دي.

**فائده** په دې کښې هم د مقتدیانو په قرائت باندې د رسول اللهﷺ انکار کول صریح دی او د امام بیهقي دا تاویل چه "خلکو به په زور سره قرائت کاوه ځکه چه د امام په قرائت کښې په همدې حالت کښې خلط پیدا کیږي" صحیح نه دی ځکه چه لومړی خو د صحابه ووؓ په نبي کریمﷺ پسې په زوره قرائت کول ډیره لرې خبره ده. دویم دا چه دا هم د منلو وړ نه ده چه په سوکه یا پټ قرائت سره امام ته خلجان (تردّد او شک) نه لویږي. یقیناً د زړونو خاوندانو ته په پټ قرائت سره هم خلجان لویږي. بیا د (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا). او د (اذا قرأ الامام فانصتوا) څخه د مقتدي په ذمې باندې د سکوت واجب والی څرګند دی چه هغه ته نه په زوره د قرائت کولو اجازه شته او نه په پټه. ځکه چه له دې آیت او د انصات للخطبه له احادیثو څخه ټولو فقهاوو د خطبې په منځ کښې مقتدیان له هر ډول قرائت او ذکر څخه په مطلقه توګه منع کړي دي چه نه په پټه قرائت وکړی او نه

په زوره. بیا د دې هیڅ وجه نشته چه په خطبه کښې مطلقاً سکوت ته واجب وويل شي او په لمانځه کښې له په زوره قرائت کولو څخه منع وشي او د پټ قرائت اجازه ورکړی شي حالانکه په اتفاق سره دا آیت د قرائت خلف الامام په باره کښې نازل شوی دی لکه څرنګه چه مخکښې تیر شول

۱۲- حسن بن صالح ابو الزبير ه حضرت جابر بن عبد الله (صحابي) څخه روایت کوي چه رسول الله ﷺ وفرمایل: **(کل من کان له امام فقراءته له قراءة)** (د چا چه یو څوک امام وي نو د هغه قرائت د هغه لپاره هم قرائت دی) دا روایت امام ابو بکر بن ابي شيبه (په مصنف کښې) روایت کړی دی او د دې سند صحیح دی. دې حدیث لره امام ابو حنیفه رحمه الله هم له ابو الحسن موسیٰ بن ابي عائشه څخه له عبد الله بن شداد بن الهاد څخه له حضرت جابر څخه روایت کړی دی چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه کوم سړی په امام پسې لمونځ وکړي نو د هغه قرائت د هغه لپاره هم قرائت دی. دې لره امام محمد په موطا کښې روایت کړی دی. علامه عیني فرمایي چه سند ئې صحیح دی او امام ابن الهمام او محمد بن منیع ویلي دي چه دا سند د شیخینو پ شرط باندې صحیح دی او په کتاب الآ ثار کښې امام محمد صاحب دې لره مفصل روایت کړی دی چه رسول الله ﷺ لمونځ کاوه نو په ده پسې یوه سړي قرائت وکړ د هغه په څنګ کښې لمونځ کوونکي و ټومبه. د لمانځه نه وروسته ئې له هغه څخه پوښتنه وکړه چه تا په لمانځه کښې ولې و ټومبلم؟ و ئې ویل رسول الله ﷺ ستاسو په مخکښې وو نو ما دا مکروه وګڼله چه تاسو په نبي کریم ﷺ پسې قرائت وکړی. رسول الله ﷺ دا خبره واوریدله نو وئې فرمایل **(من کان له امام فان قراءته له قراءة)** (د چا چه یو څوک امام وي نو قرائت ئې یقیناً د هغه لپاره قرائت دی). او د دې سند صحیح دی. دا حدیث حافظ احمد ابن منیع هم پخپل مسند کښې له امام سفیان ثوري او شریک (عبد الله بن نخعي) څخه له موسیٰ بن ابي عائشه څخه عبد الله بن شداد څخه له حضرت جابر څخه روایت کړی دی چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه د چا لپاره امام وي نو د امام قرائت د هغه لپاره هم قرائت دی. او د بزار غوندې عبد بن حمید هم پخپل مسند کښې دا حدیث د حسن بن صالح په واسطه سره له ابو الزبیر څخه له حضرت جابر څخه مرفوعاً روایت کړی دی. (فتح القدیر) او حافظ ابن حجر فرمایلي دي چه له حضرت جابر څخه دا حدیث مشهور دی. (التلخیص الحبیر ص۸۷) پس د دار قطني دا وینا چه "دې حدیث لره نورو ثقاتو مرسلاً روایت کړی دی. یواځې (امام) ابو حنیفه او حسن بن عماره موصولاً روایت کړی دی او مرسل پخپل صواب دی" غلطه ده. ځکه چه مونږ ثابته کړه چه دا حدیث امام سفیان ثوري او شریک بن عبد الله نخعي هم د امام ابو حنیفه غوندې موصولاً روایت کړی دی. امام سفیان ثوري په اتفاق سره ثقه او حجت دی او شریک بن عبد الله د مسلم له رجالو څخه دی او حسن بن عماره له محمد بن اسحٰق څخه په هیڅ توګه کم نه دی. پس د دریو راویانو تر متابعت وروسته دا ویل چه دا

روایت موصولاً صحیح نه دی د اصولو خلاف دی. بیا امام ابو حنیفه چه یواځې هم کوم حدیث لره مرفوعاً روایت کړي نو حجت دی. ځکه چه هغه د اُمت په علماوو کښې چه کومه درجه لري له هیچا څخه پټه نه ده. پاتې شوه د ځینو اهل حدیثو دا وینا چه له دې حدیث څخه دومره څرګنده شوه چه مقتدي ته د امام قرائت کافي دی دا خو معلومه نه شوه چه مقتدي ته قرائت کول منع دي نو ځواب ئې دا دی چه له دې څخه خو دا څرګنده شوه چه په مقتدي باندې په امام پسې قرائت کول واجب نه دي او همدا زمونږ مقصود دی. د ممانعت لپاره د سورهٔ اعراف آیت او د **(اذا قرأ الامام فانصتوا)** صحیح حدیث پورته تیر شو چه په هغو کښې مقتدي ته په امام پسې د چُپ دریدلو حکم دی.

او علامه ابن الهمام فرمائي چه کله له دې حدیث څخه د مقتدي لپاره د امام د قرائت له وجې څخه یو قرائت شرعاً ثابت شو که چیرته هغه پخپله قرائت کوي نو د هغه په یوه لمانځه کښې دوه قرائتونه شول او دا روا نه دی.

۱۳ - له حضرت ابو الدرداء رضی الله عنه څخه روایت دی چه یوه سړي له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چه یا رسول الله! آیا په هر لمانځه کښې قرائت شته؟ و ئې فرمایل هو. نو له ډلې څخه یوه بل سړي وویل دا وجبه شوه؟ رسول الله ﷺ وفرمایل نه. زما په نزد چه کله امام قرائت کوي نو هغه (د ټولو لپاره) کافي دی. دې لره طبراني روایت کړی او سند ئې حسن دی. (مجمع الزوائد) مطلب دا چه په هر سړي باندې قرائت واجب نه دی بلکه د چا چه یو څوک امام نه وي په هغه باندې واجب دی ځکه چه د امام قرائت د مقتدي لپاره کافي کیږي. دې حدیث لره نسائي هم له صحیح سند سره په سنن مجتبیٰ کښې روایت کړی دی او و ئې ویل چه له رسول الله ﷺ څخه مرفوعاً صحیح نه دی بلکه دا د ابو الدرداء قول دی (یعني حدیث موقوف دی، مرفوع نه دی) دار قطني وویل چه دې حدیث لره زید بن حباب او ابو صالح کاتب اللیث مرفوعاً روایت کړی دی او دا خطا دی. صواب دا دی چه د ابو الدرداء قول دی. زه وایم چه له زید بن الحباب څخه امام مسلم رحمه الله پخپل صحیح کښې روایت کړی دی او احمد بن حنبل او ابن المدیني. عجلي او داسې نورو ثقه ورته ویلي دي او له ابو صالح کاتب اللیث څخه امام بخاري صاحب پخپل صحیح کښې تعلیقاً روایت کړی دی. ابو حاتم ده ته ثقه مأمون او ابن القطان ورته صدوق حسن الحدیث ویلي دي. (ډیر رښتیا دی د ده حدیث حسن دی) نو کوم حدیث لره چه داسې راوي مرفوع وګرځوي د محققینو په نزد هغه ته مرفوع ویل کیږي. بیا زمونږ په نزد موقوف حدیث هم حجت دی. کم تر کمه له دې څخه د هغو صحابه کرامو رضی الله عنهم تعداد خو زیات شو کوم چه د قرائت خلف الامام قائل نه دي.

۱۴- له عطاء بن یسار څخه روایت دی چه هغه له زید بن ثابت رضی الله عنه څخه له امام سره د قرائت په باره کښې پوښتنه وکړه نو و ئې فرمایل چه له امام سره په هیڅ یوه حالت کښې قرائت نشته دې حدیث لره امام مسلم پخپل صحیح کښې د سجدهٔ تلاوت په باب کښې روایت کړی دی او طحاوي

ئې هم له صحیح سند سره د همدغو الفاظو سره روایت کړی دی چه په امام پسې په لمانځه کښې قرائت مه کوئ.

**فائده** : د حضرت زید بن ثابت صحابي ﷺ فتوی په څرګنده توګه د امام ابو حنیفه مؤید دی چه په هیڅ یوه لمانځه کښې په امام پسې باید قرائت و نه شي کوم چه سورهٔ فاتحه او داسې نورو ټولو ته عام دی.

۱۵ - امام مالک صاحب په موطا کښې له وهب بن کیسان څخه روایت کوي چه هغه له حضرت جابر بن عبد الله صحابي څخه اوریدلي دي چه هغه به فرمایل چه کوم سړی یو رکعت پرته له سورهٔ فاتحه څخه ادا کړي هغه لمونځ ادا نه کړ لیکن په امام پسې (پرته د سورهٔ فاتحه د لوستلو لمونځ کیږي) د دې سند صحیح دی. ترمذي هم دې حدیث لره روایت کړی دی او و ئې فرمایل چه دا حدیث حسن دی. او طحاوي مرفوعاً له رسول الله ﷺ څخه همدغه حدیث په همدغو الفاظو سره روایت کړی دی او سند ئې حسن دی. له دې څخه دا هم څرګنده شوه چه په امام پسې د مقتدي په ذمې باندې د سورهٔ فاتحه لوستل واجب نه دي او په دې کښې د بیهقي دا تاویل نه شي چلیدلی چه له قرائت څخه مراد جهر دی ځکه چه په دې صورت کښې به مطلب دا وي چه کوم سړی کوم رکعت ادا کړي او په هغه کښې سورهٔ فاتحه په جهر سره و نه لولي هغه لمونځ و نه کړ لیکن په امام پسې دې په زوره نه لولي. نو دا لازمیږي چه په یواځې لمونځ کوونکي باندې د سورهٔ فاتحه په زوره لوستل واجب دي حالانکه د دې هیڅوک هم قائل نه دی. حافظ ابن عبد البر په کتاب التمهید کښې فرمایلي دي **ثبت عن علی و سعد و زید بن ثابت انهٗ لا قراءة مع الامام لا فیما اسرّ ولا فیما جهر. (الجوهر النقی ص۱۵۶، و ج۱، ص۱۵۷)**

حضرت علي او سعد (بن ابي وقاص) او زید بن ثابت څخه ثابته شوه چه (د هغو په نزد) له امام سره قرائت نشته نه په سرّي (پټ) لمانځه کښې او نه په جهري لمانځه کښې.

۱۶ - امام مالک له نافع څخه له عبد الله بن عمر رضی الله عنهما څخه روایت کوي چه له هغو څخه چه کله پوښتنه وشوه چه آیا په امام پسې قرائت باید وشي نو و به ئې ویل چه کله یو څوک په امام پسې لمونځ کوي نو د امام قرائت د هغه لپاره کافي دی او چه کله یواځې لمونځ کوي نو قرائت دې باید وکړي. نافع وائي چه عبد الله بن عمر په امام پسې قرائت نه کاوه (موطا) او د دې سند اصح الاسانید دی. (یعني ډیر صحیح دی)

۱۷- له ابو وائل څخه روایت دی چه یو سړی د عبد الله بن مسعود خوا ته حاضر شو او و ئې ویل، آیا زه په امام پسې قرائت وکړم؟ و ئې فرمایل د قرآن لپاره خاموش پاتې شه ځکه چه په لمانځه کښې (بل) شغل دی (یعني دقرآن په اوامرو، نواهیو، وعد او وعید باندې غور کول) او تا

ته (د قرائت په باره کښې) امام کافي دی. دې روايت لره طبراني په کبير او اوسط کښې روايت کړی دی. او د دې راويان ثقه دي او طحاوي ئې هم په صحيح سند سره روايت کړی دی او بيهقي په جزء القرائت کښې له علقمه څخه روايت کړی دی چه عبد الله بن مسعود و فرمايل: په امام پسې قرائت مه کوئ ځکه چه د هغه قرائت ستاسو لپاره هم قرائت دی او امام محمد په کتاب الاثار کښې له ابراهيم نخعي څخه روايت کوي چه علقمه په امام پسې په هيڅ يوه لمانځه کښې نه په سرّي او نه په جهري کښې نه سورهٔ فاتحه قرائت کاوه او نه بل کوم سورت او نه د عبد الله بن مسعود نورو ملګرو. د عبد الله بن مسعود دا مذهب مشهور دی چه هغه په امام پسې قرائت نه کاوه او له دې څخه منع هم کوله. همدغه مذهب د هغه د اصحابو علقمه. اسود او داسې نورو دی. په همدې باندې د ابراهيم نخعي عمل وو. (د روايتونو د حوالې لپاره اعلاء السنن ملاحظه کړی)

۱۸ - عبيد الله بن مقسم وائي چه ما له عبد الله بن عمر او زيد بن ثابت او جابر بن عبد الله ﷺ څخه (په امام پسې د قرائت په باره کښې) پوښتنه وکړه. ټولو وفرمايل چه په امام پسې په هيڅ يوه لمانځه کښې قرات نه کيږي. دې روايت لره امام طحاوي په صحيح سند سره روايت کړی دی.

۱۹ - ابو جمره وائي چه ما له ابن عباس رضی الله عنهما څخه پوښتنه وکړه چه کله امام زما مخې ته (قرائت کوي) نو آيا زه به هم قرائت وايم؟ و ئې فرمايل چه نه! دې لره هم امام طحاوي په حسن سند سره روايت کړی دی.

۲۰ - علقمه له ابن مسعود څخه روايت کړی دی: هغه فرمائي چه کاش د هغه سړي خوله له خاورو ډکه شوې وای څوک چه په امام پسې قرائت کوي. دې لره هم امام طحاوي پ صحيح سند سره روايت کړی دی.

۲۱ - عون (ابن عبد الله) له ابن عباس رضی الله عنهما څخه هغه له رسول اللهﷺ څخه روايت کوي. ده وفرمايل تاسو ته د امام قرائت کافي دی که هغه اخفاء وکړي او که جهر وکړي. دې لره دار قطني روايت کړی دی او وئې ويل (د دې په سند کښې) عاصم قوي نه دی. زه وايم دې روايت لره عليّ بن المديني شيخ البخاري غوندې د حديثو امامان روايت کوي او معن بن عيسیٰ ورته ثقه ويلي دي او د ده ئې ډير تعريف کړی دی او د داسې راوي روايت مرفوع ګرځول د حديثو د اصولو موافق مقبول دی.

۲۲ - امام شعبي مرسلاً روايت کوي چه رسول اللهﷺ وفرمايل په امام پسې قرائت نشته. دې لره دار قطني روايت کړی دی بيا له شعبي څخه له حارث څخه له حضرت علي څخه (موصولاً) روايت کړی دی چه يوه سړي رسول اللهﷺ ته عرض وکړ چه زه په امام پسې قرائت ووايم او که چُپ پاتې شم؟ نبي کريمﷺ وفرمايل: بلکه خاموش پاتې شه. ځکه چه امام تاسو ته کافي کيږي. بيا موصول ته ئې د ضعيف په ويلو سره وويل چه مرسل کوم چه له دې څخه مخکښې ذکر شوی دی

زيات صحيح دی. زه وايم چه مرسل د حنفيه وو په نزد حجت دی خصوصاً د شعبي مرسل چه هغه خو د محدثينو په نزد هم صحيح دی او چه کله د مرسل تائيد په موصول سره وشي نو بيا په اتفاق سره حجت دی اگر که موصول ضعيف هم وي لکه څرنگه چه د اعلاء السنن په مقدمه کښې په حواله د شرح النخبه، تدريب الراوي او داسې نورو بيان شوی دی.

۲۳ - عبد الرزاق پخپل مصنف کښې له موسیٰ بن عقبه (امام المغازي) څخه مرسلاً روايت کړی دی چه رسول الله ﷺ او ابو بکر صديق، حضرت عمر او حضرت عثمان رضی الله عنه په امام پسې له قرائت کولو څخه خلک منع کول. (عمدة القاري) علامه عيني فرمائي چه دا مرسل صحيح دی.

۲۴ - عبد الله بن وهب له يحيیٰ بن عبد الله سالم عمري او يزيد بن عياض څخه مرسلاً روايت کړی دی چه رسول الله ﷺ وفرمايل چه د چا لپاره کوم امام وي او اقتداء پسې وکړي نو له امام سره دې قرائت نه کوي ځکه چه د امام قرائت د هغه لپاره هم قرائت دی. دې لره امام بيهقي په جزء القرائت کښې روايت کړی دی او فرمايلي ئې دي چه په يحيیٰ بن عبد الله کښې نظر شته او يزيد بن عياض باندې ټولو محدثينو جرح کړې ده. زه وايم چه د حديث مدار په يزيد بن عياض باندې نه دی له ده سره يحيیٰ بن عبد الله هم دی او هغه د صحيح مسلم له رجالو څخه دی. نسائي او دار قطني ده لره ثقه بللی دی. پس د يحيیٰ مرسل صحيح دی. د يزيد بن عياض په مجروح کيدو سره هغه ته هيڅ ضرر نه رسيږي او مرسل زمونږ په نزد حجت دی.

۲۵ - امام مالک له ابن شهاب (زهري) څخه ابن اکيمه ليثي څخه له حضرت ابو هريره څخه روايت کړی دی چه رسول الله ﷺ له لمانځه څخه په فارغيدو باندې په کوم لمانځه کښې چه هغه په جهر سره قرائت کړی وو و ئې فرمايل چه په تاسو کښې کوم يوه په دې وخت کښې له ماسره قرائت کړی دی؟ يوه سړي ووېل چه هو! يا رسول الله ﷺ ما قرائت کړی دی. رسول الله ﷺ وفرمايل چه ما هم ويل چه دا څوک دی چه له ما څخه قرائت وړي (يعنې په قرائت کښې له ما سره منازعت کوي) چه کله خلکو دا خبره واوريدله نو په همدې لمانځه کښې له قرائت کولو څخه منع شول په کوم لمانځه کښې چه نبي کريم ﷺ په جهر سره قرائت کاوه. دا روايت امام مالک په موطا کښې، امام شافعي په مسند کښې او ائمهٔ اربعه وو په سنن کښې روايت کړی دی او امام ترمذي دې ته حسن ويلي دي او ابن حبان ورته صحيح ويلي دي. امام مالک دې روايت لره په موصول سند روايت کول د صحت لپاره کافي دی. په دې باندې ځينو محدثينو دا جرح کول چه (فانتهى الناس عن القراءة فيما جهر فيه ـ الخ) "خلک په جهري لمانځه کښې له قرائت کولو څخه منع شول الخ د زهري قول دی. د صحابي قول نه دی" د منلو وړ نه دی ځکه چه په سنن ابي داؤد کښې دې حديث لره معمر له زهري څخه روايت کړی دی او صاف ئې ويلي دي چه (قال ابو هريرة فانتهى الناس عن القراءة ـ الخ) ابو

هريره وفرمايل چه ټول خلک په نبي کريمﷺ پسې له قرائت کولو څخه منع شول الخ. او معمر ثقه او متقن دی. له ده څخه روايت کوونکی احمد بن السرح هم د ثقاتو له اثبات څخه دی. پس د اصول حديث په موافق معمر ته ترجيح ورکول کيږي. بيا که چيرته د زهري قول و منل شي نو هغه د سير او مغازي امام او د رسالت د زماني د خبرونو ښه پيژندونکی دی. په دې باب کښې د هغه قول حجت دی. له دې څخه په قطعي توګه څرګنده شوه چه له دې واقعې څخه وروسته ټولو صحابهٔ کرامو په نبي کريمﷺ پسې په جهري لمانځه کښې قرائت کول پريښودل.

**فائده**: له دې حديث څخه لاندېني امور مستفاد شول:

۱ - کوم خلک چه په امام پسې قرائت کاوه د رسول اللهﷺ په امر سره ئې نه کاوه او نه ده ته د دې علم وو او که نه نو نبي کريمﷺ ته د دې پوښتنې ضرورت نه وو چه آيا کوم يوه په دې وخت کښې په ما پسې قرائت کړی دی.

۲ - ټولو صحابهٔ کرامو په امام پسې د نبي کريمﷺ په زمانه کښې قرائت نه کاوه ځکه چه د نبي کريمﷺ په پوښتنې سره يواځې يوه سړي ځواب ورکړ چه ما قرائت کړی دی.

۳ - نبي کريمﷺ د دې سړي په قرائت باندې انکار وکړ چه له وجې ئې خلک په جهري لمونځونو کښې له قرائت کولو څخه منع شول.

۴ - په سرّي لمونځونو کښې له دې وروسته هم ځينو خلک قرائت کاوه چه بيا وروسته نبي کريمﷺ له دې څخه هم خلک منع کړل لکه څرنګه چه د عبد الله بن شداد په روايت کښې تير شول چه يوه سړي د مازديګر په لمانځه کښې په رسول اللهﷺ پسې قرائت وکړ. يوه صحابي هغه لره په اشارې سره منع کړ. تر لمانځه وروسته رسول اللهﷺ وفرمايل چه د چا لپاره امام وي د هغه لپاره د امام قرائت کافي دی.

۲۶ - انس بن سيرين وائي چه ما له عبد الله بن عمر رضی الله عنهما څخه دا پوښتنه وکړه چه زه په امام پسې قرائت وکړم؟ و ئې فرمايل ته خو د لويې ګيډې خاوند معلوميږې (يعنې بيوقوف يا ناپوه) تا ته د امام قرائت کافي دی. دې لره عبد الرزاق په مصنف کښې روايت کړی دی. زه وايم چه د دې سند صحيح دی چه راوي ئې د صحيحينو راوي دی.

۲۷ - له زيد بن اسلم څخه روايت دی چه عبد الله بن عمر رضی الله عنهما په امام پسې به خلک له قرائت کولو څخه منع کاوه. دې روايت لره هم عبد الرزاق روايت کړی دی. (جوهر نقي) زه وايم د دې سند هم صحيح دی.

۲۸ - موسیٰ بن سعد بن زيد بن ثات له خپل نيکه (زيد بن ثابت صحابي) څخه روايت کوي چه هغه وفرمايل: کوم سړی چه په امام پسې قرائت وکړي د هغه لمونځ صحيح نه دی. دې لره امام محمد په موطا کښې روايت کړی دی او سند ئې په صحيح نسخه کښې همدارنګه دی امام بيهقي

په همدې ډول له امام بخاري څخه روايت نقل کړی دی او راويان ئې ټول ثقه دي او موسیٰ بن سعد له خپل نيکه زيد بن ثابت څخه روايت کولو لره ابن حبان او امام بخاري ذکر کړی دی. (تهذيب)

**فائده** : له دغو ټولو آثارو څخه ثابته شوه چه د اجله صحابه وو په دې باب کښې هم هغه قول دی کوم چه د امام ابو حنيفه دی. غرض دا چه د امام ابو حنيفه مذهب په دې مسئله کښې چه مقتدي دې بايد په امام پسې قرائت و نه کړي له قرآن څخه هم ثابت دی او د رسول الله ﷺ له احاديثو څخه هم او د صحابهٔ کرامو ﷺ له اقوالو او عمل څخه هم. نو دا څومره لوی ظلم دی چه ځينې خلک اوس هم په دې مسئله کښې په حنفيانو پسې خبرې کوي. اوس مونږ دا هم بيانوو چه په تابعينو کښې هم ډير حضرات په دې مسئله کښې د امام ابو حنيفه سره موافق دي.

۲۹ - فضل (ابن دکين) زير (ابن معاويه) څخه هغه له وليد بن قيس څخه روايت کوي چه هغه وويل چه ما له سويد بن غفله څخه (کوم چه يو لوی تابعي دی او ځينو خلکو ورته صحابي ويلي دي) پوښتنه وکړه چه زه په ماسپښين او مازديگر کښې په امام پسې قرائت وکړم؟ و ئې فرمايل: نه ! دې روايت لره ابو بکر بن ابي شيبه په مصنف کښې روايت کړی دی او سند ئې با لکل صحيح دی

۳۰ - هشيم ابو بشر (جعفر ب اياس) څخه هغه له سعيد بن جبري څخه روايت کوي چه له هغه څخه د قرائت خلف الامام په باره کښې پوښتنه وشوه نو و ئې فرمايل چه په امام پسې قرائت نشته. دې روايت لره هم ابن ابي شيبه په مصنف کښې روايت کړی دی او راويان ئې ټول ثقه دي او د صحيحينو د راويانو له جملې څخه دي او سعيد بن جبير جليل تابعي دی.

۳۱ - محمد بن سيرين څخه (کوم چه جليل تابعي دی) روايت دی چه هغه وفرمايل چه زه په امام پسې قرائت لره سنت نه گڼم. دې لره هم ابن ابي شيبه په مصنف کښې روايت کړی دی او سند ئې صحيح دی.

۳۲ - له ابراهيم نخعي اسود (لوی تابعي) څخه روايت کوي چه هغه وفرمايل چه کوم سړی په امام پسې قرائت کوي زه غواړم چه خوله ئې له خاورو ډله کړم. دې روايت لره عبد الرزاق په مصنف کښې روايت کړی دی او سند ئې صحيح دی چه راوي ئې د صحيحينو راوي دی.

۳۳ - اعمش له ابراهيم نخعي څخه روايت کوي چه خلکو چه کوم لومړنی بدعت ايجاد کړ هغه په امام پسې قرائت کول دي. دې روايت لره هم عبد الرزاق په مصنف کښې روايت کړی دی او سند ئې د صحيحينو په شرط باندې صحيح دی. (جوهر نقي)

۳۴ - منصور له ابراهيم نخعي څخه روايت کوي چه کوم سړی په امام پسې تر ټولو مخکښې قرائت کړی ذی هغه (په دين کښې) متهم وو. دې لره امام محمد په موطا کښې روايت کړی دی او سند ئې صحيح دی.

**فائده** : ابراهيم نخعي د کوفه له فقهاوو څخه دی په ظاهره ئې مطلب دا معلوميږي چه په کوفه

کښې تر ټولو مخکښې چه په امام پسې ئې قرائت شروع کړی وو هغه متهم (تهمتي) وو. ممکنه ده چه د خارجي یا قدري ډلې کوم غړی وو. تر دې مخکښې د کوفې د خلکو عمل د عبد الله بن مسعود د عمل موافق وو چه هغه په امام پسې قرائت نه کاوه. د ابراهیم نخعي دا مطلب نه دی چه په مکه او حجاز کښې هم په امام پسې قرائت کوونکی مبتدع یا متهم وو.

۳۵ - امام ابو حنیفه له حماد څخه هغه له ابراهیم نخعي څخه روایت کړی دی چه علقمه بن قیس په امام پسې په هیڅ یوه لمانځه کښې قرائت نه دی کړی نه په جهري کښې او نه په سرّي کښې، نه ئې سورهٔ فاتحه وایه او نه ئې کوم بل سورت. دې روایت لره امام محمد په کتاب الاثار کښې روایت کړی دی او سند ئې صحیح دی. په جامع مسانید الامام کښې هم په همدې سند سره ذکر شوی دی. او (ولا اصحاب عبد الله) پکښې زیاتی ویل شوی دی. یعنې د عبد الله بن مسعود او ټولو اصحابو هم په امام پسې قرائت نه کاوه. دې روایت لره ئې د حافظ ابن خسرو او آثار محمد خوا ته منسوب کړی دی.

**فائده**: دا حضرات له لویانو تابعینو څخه دی د کومو په امامت باندې چه د اُمت د علماوو اتفاق دی. له دغو آثارو څخه څرګنده شوه چه دې حضراتو په امام پسې قرائت نه کاوه بلکه له دې څخه ئې منع فرمایله او ځینو خو دې ته بدعت او خلاف سنت پورې ویلې دي. آیا اوس هم د چا خوله داسې ده چه په دې مسئله کښې په امام ابو حنیفه پسې خبرې وکړي. چه کله له قرآنکریم څخه، صحیح حدیثونو څخه، د صحابه وو او تابعینو له اقوالو څخه د هغه د قول پوره تائید او تقویت کیږي. او له کومو احادیثو څخه چه شافعي او ظاهري حضراتو استدلال کړی دی د هغو ټولو ځوابونه په اعلاء السنن کښې مفصل ورکړ شوي دي او ویل شوي دي چه په کومو حدیثونو کښې چه یواځې د سورهٔ فاتحه د ویلو تاکید دی هغه په امام او منفرد باندې محمول دی. په مقتدي باندې محمول نه دی. لکه څرنګه چه پخپله د حدیث راوي امام احمد او سفیان بن عینیه هم په همدې باندې حدیث محمول کړی دی. او د امام او منفر په حق کښې د سورهٔ فاتحه لوستل زمونږ په نزد هم واجب دی. او په کومو احادیثو کښې چه په امام پسې د قرائت ذکر دی هغه مرفوعا صحیح نه دي بلکه ضعیف دي. البته له ځینو صحابه وو څخه په امام پسې قرائت کول ثابت دي لیکن د دې په خلاف له لویانو صحابه وو او لویانو تابعینو څخه د دې ممانعت او نفی هم ثابته ده لکه څرنګه چه مونږ په تفصیل سره بیان کړی دی. پس د صحابه وو د اختلاف په صورت کښې د هغو صحابه وو قول به مقدم او راجح وي چه د قرآن له دې (وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا) سره او (اذا قرأ الامام فانصتوا) حدیث سره موافق وي. او د کومو صحابه وو قول چه له قرآني نص او صحیح حدیث په خلاف وي په هغه کښې به تاویل کیږي چه هغو په جهري لمونځونو کښې د امام

په سکتاتو کښې قرائت کاوه او د امام په سکتاتو کښې مقتدي ته د سورۀ فاتحه قرائت کول زمونږ په نزد هم جائز دی ګوا که واجب نه دی. ځکه چه پخپله د امام په ذمه باندې سکتات واجب نه دي او ګوا که زمونږ په نزد په سرّي لمونځونو کښې قرائت نه کول بهتر دي ليکن که ئې چيرته څوک وکړي نو جائز دی او څه پروا نه لري. له کومو صحابه وو څخه چه په امام پسې قرائت ثابت دی هغو په سرّي لمونځونو کښې قرائت کاوه، په جهري لمونځونو کښې په امام پسې قرائت کول د امام شافعي مذهب هم نه دی. هغه يواځې د دې قائل دی چه مقتدي ته د امام په سکتاتو کښې د سورۀ فاتحه لوستل ضروري دي. د هغو په نزد امام بايد له سورۀ فاتحه وروسته دومره اوږده سکته وکړي چه مقتدي سورۀ فاتحه پکښې ووائي. زمونږ په نزد ضروري نه دی ځکه چه د امام په ذمه په هيڅ يوه دليل سره د د دې سکتې واجب والی ثابت نه دی ليکن که چيرته امام اوږده سکته وکړي نو مقتدي ته د سورۀ فاتحه لوستل جائز دي. **والله تعالیٰ اعلم.**

## ۳۲ - اجماعي دليل

امام طحاوي او موفق بن قدامه حنبلي د کتاب او سنت د دلائلو، د صحابه وو او تابعينو د اقوالو او آثارو په بيانولو سره له اجماع څخه هم د دې ثبوت ورکړی دی چه په امام پسې په مقتدي باندې د سورۀ فاتحه قرائت واجب نه دی ځکه چه په دې باندې د ټولو اتفاق دی او هيڅ اختلاف پکښې نه دی کړی چه کوم سړی د رکوع په حالت کښې امام پيدا کړي، تکبير تحريمه ووائي او په رکوع کښې له امام سره شريک شي نو هغه رکعت ده پيدا کړی دی په داسې حال کښې چه هغه قرائت نه دی کړی. موفق بن قدامه فرمائي: **(ولانها لا تجب على المسبوق فلم تجب على غيره كالسورة - الخ)** (او اجماعي دليل دا دی چه) په مسبوق مقتدي باندې د فاتحه قرائت واجب نه دی (هغه د رکوع په پيدا کولو سره رکعت پيدا کوي) نو له ده نه پرته بل په هيڅ يوه مقتدي باندې هم دا قرائت نه واجبيږي لکه څرنګه چه د سورته لوستل واجب نه دی (په داسې حال کښې چه د حديثو په دلائل سره د سورت د ضم کولو وجوب هم ثابت دی) که چيرته د مقتدي په ذمه باندې قرائت واجب وای نو د نورو ارکانو غوندې به له مسبوق څخه هم قرائت ساقط نه وای (ج ۱، ص ۲۰۹) حافظ ابن عبد البر په شرح الاستذکار کښې فرمائي چه د ټولو فقهاوو قول دی چه کوم سړی امام په رکوع کښې پيدا کړي، تکبير تحريمه ووائي په رکوع کښې شامل شي او لاسونه په زنګنونو کښېږدي له دې څخه مخکښې چه امام سر پرته کړي نو هغه دا رکعت پيدا کړ. دا د امام مالک، امام شافعي، امام ابو حنيفه، د دوی د اصحابو، د سفيان ثوري، اوزاعي، ابو ثور، حمد او اسحاق مذهب دی. همدا له حضرت علي څخه، عبد الله بن مسعود څخه، زيد بن ثابت او عبد الله بن عمر رضي الله عنهم څخه منقول دی. مونږ په کتاب التمهيد کښې له سند سره د دوی د ټولو اقوال بيان کړی دی. لنډه دا چه په دې

باندې د ټولو فقهاوو اتفاق دی. حافظ ابن عبد البر، امام نووي او حافظ ابن حجر او داسې نورو په دې باندې اجماع را نقل کړې ده. ابن الامير يماني هم په سبل السلام کښې د عامه فقهاوو قول ته ترجيح ورکړې دی. ليکن ظاهريه وو يواځې د دې لپاره چه په دې صورت کښې په مقتدي باندې د سورهٔ فاتحه د ويلو وجوب نه پاتې کيږي، د اجماع په خلاف ئې دا دعوه وکړه چه د رکوع په پيدا کولو سره مسبوق رکعت نه شي پيدا کولی ځکه چه هغه سورهٔ فاتحه نه دی لوستلی.

## د ابي هريرةﷺ د مسبوق په اړه د حديث ضعيفوالی

او د ابو هريرةﷺ په يوه قول پورې ئې اسره و نيوله کوم چه امام بخاري په جزء القرائت کښې ذکر کړی دی چه که چيرته يو څوک امام په رکوع کښې پيدا کړي نو دا رکعت نه شمارل کيږي. حالانکه په موطا د امام مالک کښې له حضرت ابو هريرهﷺ څخه د دې په خلاف روايت موجود دی کوم چه د جمهور اُمت موافق دی. حافظ ابن عبد البر په شرح د موطا کښې وائي چه له انصاروف فقهاوو څخه د هيڅ يوه هم دا قول نه دی. او د دې په سند کښې نظر شته. امام نووي فرمائي چه دا قول د اجماع خلاف دی او د ابو هريرةﷺ حديث صحيح نه دی. د هرې زمانې فقهاوو په اتفاق سره دا رد کړی دی نو دې ته اعتبار نه ورکول کيږي. او د دې په خلاف ابو داؤد له ابو هريرهﷺ څخه روايت کړی دی چه رسول اللهﷺ وفرمايل: چه کله تاسو لمانځه ته راځئ او مونږ په سجده کښې وو نو سجده وکړئ او دا مه شمارئ او چا چه رکوع پيدا کړ هغه د لمانځه (رکعت) پيدا کړ. ابو داؤد په دې باندې سکوت کړی دی او منذري او حاکم دې ته صحيح الاسناد ويلي دي. ذهبي هم په تلخيص مستدرک کښې د حاکم تائيد کړی دی.

ابن خزيمه پخپل صحيح کښې دا حديث په دې الفاظو سره مرفوعاً روايت کړی دی چه **(من ادرك ركعة من الصلوٰة فقد ادركها قبل ان يقيم الامام صلبه)** "چا چه په لمانځه کښې رکوع پيدا کړ له دې څخه مخکښې چه امام خپله ملا سيخه کړي هغه رکعت پيدا کړ". ابن خزيمه دا حديث حجت ګڼلی دی. (التلخيص الحبير) او ابن حبان هم پخپل صحيح کښې دې حديث ته صحيح ويلي دي (المرقات) پس دا څنګه کيدلی شي چه ابو هريرهﷺ د خپل روايت شوي مرفوع حديث په خلاف کوم قول بيان کړي. پس د هغه هغه قول صحيح دی کوم چه په موطا د امام مالک کښې د مرفوع حديث موافق دی. که چيرته د مقتدي په ذمه په امام پسې قرائت واجب وای نو د رکوع په پيدا کولو سره به هغه رکعت نه شوای پيدا کولی ځکه چه پخپله هغه قرائت نه دی کړی. پس ثابته شوه چه د امام قرائت د مقتدي لپاره کافي ګرځي د دې لپاره هغه د رکوع په پيدا کولو سره رکعت پيدا کوي.

## د اهل حديثو د دلائلو ځوابونه

**لومړی دليل:**

اوس زه د تکميل البرهان د مؤلف د دلائلو حقيقت څرګندول غواړم. تر ټولو مخکښې هغه هم هغه د عبادة بن الصامت حديث بيان کړی دی چه: **(لا صلوة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب). (بخاری و مسلم)** (د هغه سړي لمونځ نه کيږي چه سورۀ فاتحه و نه لولي)

مونږ وويل چه دا حديث امام احمد او سفيان بن عيينه او زهري غوندې د حديثو د راويانو امامان د امام او منفرد په حق کښې ګڼلی دی. مقتدي ئې په دې حکم کښې شامل نه کړ ځکه چه له حضرت جابر بن عبد الله صحابي رضي الله عنه څخه مرفوعاً او موقوفاً ثابت دي: **من صلى ركعة لم يقرأ فيها بأم القرآن فلم يصل الا وراء الامام. (موطا مالك، طحاوی، ترمذی)** (چا چه کوم رکعت ادا کړ او سورۀ فاتحه ئې پکښې و نه لوست هغه لمونځ و نه کړ ليکن که چيرته په امام پسې وي (نو لمونځ ئې کيږي))

امام ترمذي وائي چه امام احمد بن حنبل وفرمايل چه د رسول الله ﷺ د دې ارشاد چه **(لا صلوة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب)** مطلب دا دی چه کله يو څوک يواځې لمونځ کوي نو د سورۀ فاتحه د لوستلو پرته ئې لمونځ نه کيږي. وګوری جابر بن عبد الله صحابي د دې حديث همدغه مطلب بيانوي. دويم چه کله له صحيح حديث څخه ثابته شوه چه **(من كان له امام فقراءته له قراءة)**. کوم سړی چه په امام پسې لمونځ کوي د امام قرائت د هغه لپاره هم قرائت دی. ... اوس دا وينا صحيح نه ده مقتدي سورۀ فاتحه نه دی لوستلی. چه کله امام لوستلی وي نو مقتدي هم حکماً لوستلی دی. اګرکه ئې په ژبې سره نه وي لوستلی ځکه چه مقتدي د صحيح حديث له مخې د امام د قرائت په وخت کښې د چُپ پاتې کيدلو حکم دی **(اذا قرأ الامام فانصتوا)**. همدغه حکم په قرآنکريم کښې دی. **(وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا)**.

**دويم دليل:** **(لا تفعلوا الا بأم القرآن فانه لا صلوة لمن لم يقرأ بها). (ترمذی، ابوداؤد، نسائی)** دا څرګنده نه ده چه د تکميل البرهان مؤلف دا حديث ولې پوره نه دی ليکلی. پوره حديث دا دی چه محمود بن الربيع وائي چه ما اوريدلي دي چه عبادة بن الصامت رضي الله عنه په امام پسې قرائت کاوه نو ما وويل چه ما ته په امام پسې قرائت کوونکی ليدلی ئې. دا نه ده راته معلومه چه تاسو قصداً داسې کړی دی او که سهو درنه شوې ده. و ئې فرمايل چه ما سهو نه ده کړې بلکه په قصد سره مې قرائت کړی دی. رسول الله ﷺ ټولو ته يو لمونځ ورکړ چه په هغه کښې جهر کيده نو د ده په قرائت کښې تشويش پيدا شو. تر لمانځه وروسته ئې وفرمايل چه تاسو له ما سره قرائت کوئ؟ خلکو وويل چه هو! و ئې

فرمايل: **(لا تفعلوا الا بأم القرأن فانه لا صلوٰة لمن لم يقرأ بها)**. داسې مه کوئ ليکن ام القرآن (لوستلی شئ) څوک چه دا و نه وائي د هغه لمونځ نه کيږي. دا حديث که چيرته صحيح و منل شي نو له دې څخه څرګنديږي چه صحابه وو له رسول الله ﷺ څخه پرته له پوښتنې قرائت کاوه. چه کله هغه مبارک ﷺ پوښتنه وکړه چه تاسو له ما سره قرائت کوئ. که چيرته نبي کريم ﷺ په امام پسې د قرائت کولو ورکړی وای نو د دې سوال ضرورت نه پاتې کيده. له دې وروسته چه کله څرګنده شوه چه هغوی په امام پسې قرائت کوي نو و ئې فرمايل داسې مه کوئ ليکن سورۀ فاتحه (لوستلی شئ) له دې څخه وجوب نه شي ثابتيدلی يواځې د اباحت (رواوالي) مفهوم ترې راووځي ځکه چه د فقهې په اصولو کښې ثابته شوې ده چه **(ان الاستثناء بعد الحظر اباحة و اطلاق)**. تر نهی وروسته چه کومه استثناء ثابتيږي هغه د اباحت لپاره وي نه د وجوب لپاره. او دا زمونږ لپاره مضر نه دی ځکه چه د امام د سکتاتو په وخت کښې په جهري لمانځه کښې مونږ د مقتدي قرائت ته جائز وايو او خصم (مقابل لوري) ته مضر دی ځکه چه هغوی د اباحت قائل نه بلکه د وجوب مدعيان دي او زمونږ د تاويل تائيد د طبراني له روايت څخه کيږي کوم چه په مجمع الزوائد کښې له حضرت عبادة بن الصامت رضي الله عنه څخه مروي دی. **(ان رسول الله ﷺ قال من قرأ خلف الامام فليقرأ بفاتحة الكتاب)**. او د دې راويانو ته ثقه ويل شوي دي. ج۱، ص۱۸۲. چه کوم سړی په امام پسې قرائت کول وغواړي هغه دې سورۀ فاتحه ولولي. او په مجمع الزوائد کښې د امام احمد په حواله سره له يوه صحابي څخه دا روايت هم شته چه: **(قال رسول الله ﷺ لعلكم تقرءون والامام يقرأ قالها ثلثا قالوا انا لنفعل ذٰلك قال فلا تفعلوا الا ان يقرأ احد كم بفاتحة الكتاب فی نفسه)**. (رواه احمد و رجاله رجال الصحيح ج۲،ص۱۸۲) رسول الله ﷺ صحابه وو ته وويل چه ښائي تاسو په امام پسې قرائت کوئ. درې ځله ئې دا پوښتنه وکړه. صحابه وو وويل چه بيشکه مونږ داسې کوو. و ئې فرمايل دا سې مه کوئ ليکن دا چه سورۀ فاتحه په زړه کښې ووايئ. دې لره امام احمد روايت کړی دی او راويان ئې صحيح راويان دي. له دې څخه څرګنده شوه چه د سورۀ فاتحه هم په ژبې سره د لوستلو اجازه نشته يواځې په زړه کښې د لوستلو اجازه شته او له دې څخه هيڅوک هم منع نه کوي. او دا دعوه غلطه ده چه د زړه قرائت ته قرائت نه ويل کيږي ځکه چه عرفاً دې ته هم قرائت ويل کيږي. چنانچه که چيرته يو څوک قسم وخوري چه زه د زيد خط نه وايم او بيا د هغه خط ويني او په مضمون ئې پوه شي ليکن په ژبې سره ئې و نه لولي حانث کيږي او د قسم کفاره به ورکوي. البته چه چيرته شريعت قرائت فرض کړی دی هلته پرته د ژبې په ويلو سره فرض نه ادا کيږي او د عباده له حديث څخه د مقتدي په ذمه د سورۀ فاتحه د قرائت وجوب نه ثابتيږي يواځې اباحت يعني روا والی ثابتيږي او هغه په

زړه کښې له لوستلو څخه هم ادا کیږي. بله دا چه د دې پورې حدیث له سیاق څخه هم څرګندیږي چه محمود بن ربیع له حضرت عباده نه پرته هیڅ یو صحابي په امام پسې قرائت کوونکی نه وو لیدلی، یواځې ئې حضرت عبادة لیدلی وو. نو دا شبه ور ولویده چه ته قصداً داسې کوې او که سهواً او محمود بن ربیع کوچنی صحابی دی او د لویانو صحابهٔ کرامو لیدونکی دی د ده په قرائت خلف الامام باندې انکار او تعجب کول پخپله د دې خبرې دلیل دی چه په امام پسې د فاتحه قرائت لازم نه دی او د حضرت عباده له حدیث څخه هم هغه د سورهٔ فاتحه لوستل واجب و نه ګاڼه او که نه نو خپل تیر شوي لمونځونه ئې به ئې را ګرځولي وای لیکن هغه نه لمونځونه را وګرځول او نه حضرت عباده د را ګرځولو امر وکړ. پس دا حدیث مقتدي ته په امام پسې د قرائت اجازه ورکوي او وجوب نه بیانوي. او مونږ هم د امام په سکتاتو کښې مقتدي ته د سورهٔ فاتحه د ویلو قائل یو او د امام د سکتاتو شرط مونږ له ځانه نه لګوو بلکه په ځینو احادیثو کښې دا قید په صراحت سره موجود دی هغه کوم چه زمونږ په نزد د سند په لحاظ سره صحیح نه دي. لیکن امام بیهقي په جز القرائت کښې د حجت په توګه بیان کړی دی چه عبد الله بن عمرو بن العاص څخه روایت دی چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه کله تاسو له امام سره وئ نو د هغه له (قرائت) څخه مخکښې یا چه کله هغه سکته وکړي ام القرآن تلاوت کړئ. بیهقي فرمایلي دي چه دا مرفوعاً صحیح نه دی موقوفاً صحیح دی. یعنې دا د رسول الله ﷺ ارشاد نه دی بلکه د عبد الله بن عمرو صحابي قول دی. له دې څخه څرګنده شوه چه کومو صحابه وو په امام پسې قرائت کاوه هغو به له امام سره یو ځای قرائت نه کاوه بلکه د هغه له قرائت څخه مخکښې یا د سکتې په حالت کښې قرائت کاوه. بیا دا ټوله وینا په دې صورت کښې دی چه د عباده په حدیث کښې د **(الا بام القرآن فانه لا صلوة لمن لم يقرأ بها)** زیاتوالی صحیح و منل شي لیکن محدثین په دې کښې کلام لري. لکه څرنګه چه موفق[1] بن قدامه په کتاب المغني کښې فرمائي: **(فاما حديث عبادة الصحيح فهو محمول على غير المأموم وقد روى ايضاً موقوفاً عن جابر و حديث عبادة الأخر فلم يروه غير ابن اسحٰق كذٰلك قاله الامام احمد وقد رواه ابو داؤد عن مكحول عن نافع بن محمود بن ربيع الانصاري وهو ادنى حالاً من ابن اسحٰق فانه غير معروف بين اهل الحديث)**، (ج۱،ص۶۰۶) یعنې د حضرت عباده چه کوم حدیث صحیح دی هغه خو له مقتدي څخه پرته په نورو باندې محمول دی. لکه څرنګه چه حضرت جابر همداسې ویلي دي او ابو داؤد دا حدیث له مکحول څخه له نافع بن محمود څخه روایت کړی دی او هغه له اسحٰق څخه هم ادنی دی ځکه چه هغه د

---

۱ - دی په حنابله وو کښې ډیر لوی امام، محدث او فقیه دی. د ده کتاب "المغني" د اسلام په کتابونو کښې بې مثاله منل شوی دی.

محدثينو په نزد معروف (مشهور) نه دی (بلکه مجهول دی)

## له علامه ابن تيميه څخه د حنفيه وو تائيد

شيخ الاسلام حافظ ابن تيميه په رساله دې تنوع العبادات کښې فرمايلي دي چه په لمانځه کښې (د سکتې په اړه) د خلکو درې قولونه دي. يو دا چه په لمانځه کښې هيڅ سکته نشته لکه څرنګه چه د امام مالک مذهب دی. د هغه په نزد ثناء او تعوذ نشته او د امام په قرائت کښې هم سکته نشته. دويم قول دا دی چه په لمانځه کښې يوه سکته د ثناء او تعوذ لپاره دی لکه څرنګه چه د امام ابو حنيفه مذهب دی ځکه چه دا حديث (کوم چه شيخينو له حضرت ابو هريره څخه روايت کړی دی چه يا رسول الله ﷺ تاسو چه کومه سکته د تکبير او قرائت تر منځه کوئ په دې کښې تاسو څه وايئ؟) په دې سکته باندې دلالت کوي. دريم قول دا دی چه په لمانځه کښې دوه سکتې دي لکه څرنګه چه د سنن په روايتونو کښې دي. ليکن دا سکته له قرائت څخه تر فارغيدو وروسته (له رکوع څخه مخکښې) دی او همدا صحيح دی. په يوه روايت کښې دا هم شته چه دی به له قرائت څخه تر فارغيدو وروسته سکته کوله. امام شافعي او امام احمد په اصحابو کښې د ځينو خلکو قول (د دې روايت په بناء باندې) دا دی چه په لمانځه کښې درې سکتې مستحبې دي. او دويمه سکته له قرائت څخه تر فارغيدو د راحت لپاره او د قرائت او رکوع تر منځ د جلا والي لپاره ده. او تر سورۀ فاتحه وروسته سکته امام احمد، امام مالک او امام ابو حنيفه مستحبه نه ګني او جمهور علماء ئې هم مستحبه نه بولي چه امام په دې مقصد سره (اوږده) سکته وکړي چه مقتدي سورۀ فاتحه ولولي ځکه چه که امام په جهر سره قرائت کوي په دې وخت کښې د مقتدي په ذمې باندې د جمهورو په نزد قرائت واجب يا مستحب نه دی بلکه قرائت د مقتدي لپاره منع دی. او که چيرته له امام سره په دې حالت کښې مقتدي قرائت وکړي نو لمونځ ئې فاسديږي او که نه؟ د امام احمد په مذهب په دې اړوند دوه قولونه دي او عام سلف صالحين کوم چه په امام پسې قرائت نه مکروه وائي دا کراهت په دې صورت کښې دی چه کله امام په جهر سره قرائت کوي او اکثره امامان تر سورۀ فاتحه وروسته اوږد سکوت نه کوي او په جهري لمانځه کښې په امام پسې قرائت کوونکي خلک کم وو. له دې څخه خو په کتاب الله (قرآن) کښې هم منع راغلې ده او په حديث کښې هم او جمهور سلف او خلف هم په همدې باندې دي چه په امام پسې په جهري لمانځه کښې قرائت مکروه دی. ځينې علماء دې خوا ته تللي دې چه کله امام په جهر سره قرائت کوي نو مقتدې دې سورۀ فاتحه لولي، که چيرته ئې و نه لولي نو د لمانځه په باطلوالي کښې ئې اختلاف دی. غرض دا چه نزاع له دواړوا خواوو څخه دی ليکن کوم خلک چه له امام سره مقتدي له قرائت کولو څخه منع کوي له هغو سره جمهور سلف او خلف هم دي او کتاب الله او سنّتِ صحيحه هم دي او کوم خلک

چه په دې حالت کښې په مقتدي باندې قرائت واجب بولي د هغو حديث ته ائمه وو ضعيف ويلي دي. ابو داؤد دا روايت کړی دی او بو موسیٰ اشعري په حديث کښې د رسول الله ﷺ دا فرمان **(اذا قرأفانصتوا)** چه کله امام قرائت کوي تاسو چُپ پاتې شئ. امام احمد بن حنبل او اسحٰق (بن راهويه) او مسلم بن الحجاج او داسې نورو په نزد صحيح دی دغو ټولو دې لره صحيح ګڼلی دی. په خلاف د دې حديث چه (له کوم حديث څخه چه په مقتدي باندې له امام سره قرائت واجب ګڼل کيږي) ځکه چه هغه په صحيح کښې نه د شامل شوی او له ډيرو وجوهاتو څخه د هغه ضعيف والی ثابت دی او په حقيقت کښې هغه د عباده بن الصامت قول دی. (د رسول الله ﷺ ارشاد نه دی) ص۸۶/۸۵

## د عباده د حديث په سند کښې اضطراب دی

د علامه ابن تيميه درجه په علم، اسناد او حديثو کښې چه څومره لوړ دی ظاهريّه انکار ترې نه شي کولی. آيا د تکميل البرهان مؤلف[1] د علامه کتابونه هم نه دي کتلي چه د عباده حديث ته په روايت د محمد بن اسحٰق صحيح ووائي حالانکه د دې په سند کښې دومره اضطراب دی چه که چيرته له حنفيانو څخه کوم عالم هم داسې مضطرب حديث پخپل حجت کښې وړاندې کولی نو ظاهريّه وو به آسمان ته سرونه جګ کړي وو چه حنفيه د اسنادو او علل له علم څخه خبر نه دي. د دې لپاره داسې حديثونه د حجت په توګه راوړي. په جوهر نقي کښې دي چه حافظ عبد الحق (اشبيلي) پخپل کتاب الاحکام کښې فرمايلي دي دې حديث لره اوزاعي له مکحول څخه له عبد الله بن عمرو څخه روايت کړی دی او د حافظ ابن عبد البر په کتاب التمهيد کښې دي چه د دې حديث په سند کښې د محمد بن اسحاق مخالفت شوی دی. دې لره اوزاعي له مکحول څخه له رجاء بن حيوه څخه عبد الله بن عمرو څخه روايت کړی دی. بيا ئې حديث بيان کړ. (او د امام اوزاعي درجه له محمد بن اسحاق څخه ډيره لوړه ده هغه په حديث او فقه کښې د شام د خلکو امام دی) او دارقطني پخپل سنن کښې دا حديث له مکحول څخه له عبادة بن الصامت څخه مرسلاً روايت کړی

---

[1] د تکميل مؤلف په دې ځای کښې په حضرت مولانا احمد علي محدث سهارنپوري رحمه الله باندې اعتراض کړی دی چه "هغوی په الدليل القوي کښې ليکلي دي چه د عبادة بن الصامت په روايت کښې د نسائي او ابو داؤد په سند سره نافع بن محمود واقع دی او ده ته په تقريب کښې مستور الحال ويل شوي دي الخ حالانکه د امام ابو حنيفه په نزد د مستور الحال روايت مقبول دی" د دې ځواب دا دی چه د مستور روايت په هغه وخت کښې مقبول دی چه د معروفو ثقاتو په خلاف نه وي او دلته چه نافع څومره زياتی کړی دی هغه د ثقاتو په خلاف دی. بله دا چه د دې په سند کښې اضطراب دی او مضطرب حديث په اتفاق سره ضعيف دی. ظ

دی (یعنې سند ئې منقطع دی، د مکحول او حضرت عباده تر منځ حذف واسطه دی) په جزء القرائت د بیهقي ص۴۴ کښې هم همدا ډول دی. بیا امام بیهقي دویم ځل دا له مکحول څخه له نافع بن محمود څخه له عباده څخه روایت کړی دی. په ابو داؤد کښې هم همدارنګه (د نافع بن محمود په واسطه سره) دې لره روایت کړی دی. (او نافع بن محمود مجهول دی) او په یوې طریقې کښې کوم چه حاکم په مستدرک کښې یاده کړې ده دې حدیث لره مکحول له محمود څخه له ابو نعیم څخه له حضرت عباده څخه روایت کړی دی او دا ابو نعیم معلوم نه دی چه څوک دی؟ حاکم وویل چه هغه وهب بن کیسان دی او ابن صاعد ویلي دي چه هغه د (دمشق د جامع جومات) مؤذن دی. دار قطني پخپل سنن کښې همداسې ویلي دي او حافظ په اصابه کښې دا حدیث په بلې طریقې سره را نقل کړی دی. چه مکحول له نافع څخه له محمود بن الربیع څخه له عباده بن الصامت څخه روایت کړی دی. د کوم حدیث په سند کښې چه اختلافات وي د هغه په اضطراب کښې به څوک خبره کولی شي. لنډه دا چه د حضرت عباده صحیح حدیث هغه دی کوم چه صاحب تکمیل تر ټولو مخکښې بیان کړی دی په هغه کښې د مقتدي او امام هیڅ یادونه نشته او په کوم حدیث کښې چه دا مضمون دی چه مقتدي دې په امام پسې له سورهٔ فاتحه څخه پرته نور قرائت نه کوي صحیح نه دی. دې لره له محمد بن اسحاق نه پرته هیچا نه دی روایت کړی او د ابن اسحاق په باره کښې علامه ذهبي په میزان کښې فرمایلي دي: **(ما انفرد به ففیه نکارة فان فی حفظه شیئًا)** ج۳،ص۲۴. کوم حدیث چه دی ئې یواځې روایت کړي په هغه کښې نکارت دی. (یعنې ضعیف دی) ځکه چه د هغه په حفظ کښې څه کسر (کمی) شته او حافظ ابن حجر د درایه په کتاب الحج کښې فرمایلي دي **(وابن اسحٰق لا یحتج بما انفرد به من الاحکام فضلا عما اذا خالفه من هو اثبت منه۔ اھ)**. ابن اسحاق چه د احکامو په حدیث کښې کوم حدیث یواځې بیان کړي هغه حجت نه دی پاتې شوه دا چه له خپل ځان څخه د مضبوط او کلک راوي مخالفت وکړي. (نو په دې صورت کښې خو هیڅکله حجت نه دی) او ښکاره ده چه د دې حدیث صحیح برخه هغه ده کوم چه بخاري او مسلم روایت کړې ده. محمد بن اسحاق چه کوم زیاتوالی په دې کښې کړی دی هغه د ثقاتو د روایت په خلاف دی. صحیح دا ده چه هغه د عبادة بن الصامت قول دی، د رسول الله ﷺ ارشاد نه دی لکه څرنګه چه علامه ابن تیمیه د دې خبرې تصریح کړې ده. بیا امام بیهقي په جزء القرائت کښې او امام طحاوي په معانی الآثار کښې دا حدیث له یوسف بن عدي څخه له عبید الله بن عمرو (رقي) څخه له ایوب څخه له ابو قلابه څخه له حضرت انس څخه په دې الفاظو روایت کړی دی.

**قال رسول الله ﷺ ثم اقبل بوجهه فقال اتقرءون والامام یقرأ فسکتوا فسألهم ثلثا فقالوا انا لنفعل قال فلا تفعلوا.** رسول الله ﷺ لمونځ وکړ بیا زمونږ کوا ته متوجه شو او پوښتنه ئې وکړه چه آیا

تاسود امام له قرائت سره قرائت کوئ؟ ټول غلي شول. ده مبارک ﷺ درې ځله دا پوښتنه وکړه. صحابه وویل چه بیشکه مونږ همداسې کوو. و ئې فرمایل: داسې مه کوئ. په دې کښې دا نشته چه لیکن سورۀ فاتحه لولئ. په دې باندې د بیهقي دا وینا چه یوسف بن عدي وهم کړی دی چه د «د سورۀ فاتحه» استثناء ئې پریښی دی، د قبول وړ نه ده ځکه چه یوسف بن عدي د امام بخاري استاذ او له صحیحو راویانو څخه دی. هیڅا هم دې ته وهم نه دي ویلي هغه له محمد بن اسحاق څخه زیات د حفظ او اتقان (د یادونې او ساتنې) خاوند دی. د علامه ذهبي قول پورته تیر شو چه محمد بن اسحاق په حافظه کښې کمی دی. پس د محمد بن اسحاق کوا ته د وهم نسبت کول زیات مناسب دي نه د یوسف بن عدي خوا ته. د فن امام یحیٰی بن معین فرمایلي دي چه (د عباده په حدیث) کښې استثنائیه جمله (الا بامّ القرآن) سند داسې (د اعتبار وړ) نه دی. (الدلیل القوي) او دې ته امام احمد او پوره یوې ډلې ضعیف ویلي دي. (زیلعي)

## د عباده رضی الله عنه په حدیث کښې د ((فصاعداً)) زیاتوالی په اهل حدیث باندې حجت دی

ډیره عجیبه خبره ده چه د ظاهر خلک د عباده په حدیث کښې (الا بامّ القرآن) په زیاتوالي باندې دومره زور لګوي په داسې حال کښې چه له محمد بن اسحاق نه بغیر د دې هیڅ یو راوي نشته. او په دې حدیث کښې د فصاعداً زیاتوالی نه مني. حالانکه امام مسلم پخپل صحیح کښې دا روایت کړی او صحیح ئې بللی دی. او ابو داؤد هم دا په صحیح سن سره روایت کړی دی. د حدیث پوره الفاظ دا دي:

**عن عبادة بن الصامت ان رسول الله ﷺ قال لا صلوٰة لمن لم یقرأ بأم القرآن فصاعداً.**

عبادة بن الصامت وائي چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه کوم سړی سورۀ فاتحه او څه زیاتی و نه وائي د هغه لمونځ نه کیږي. اوس که چیرته د مقتدي په ذمې باندې د سورۀ فاتحه ویلو ته واجب وویل شي نو تر دې څه زیاتوالي ته هم واجب ویل لازمیږي ځکه چه په حدیث کښې د څه زیاتوالي د ویلو هم حکم موجود دی حالانکه د دې هیڅوک هم قائل نه دی. په دې باندې د ځینو محدثینو دا خبره چه د (فصاعداً) لفظ لره معمر یواځې زیات کړی دی، صحیح نه ده ځکه چه د ابو داؤد په سند کښې عیینه هم د معمر موافقت کړی دی. هغه هم له زهري څخه د معمر غوندې روایت کوي او د (فصاعداً) لفظ زیاتوي. بیا صالح بن کیسان، امام اوزاعي، عبد الرحمٰن بن اسحاق او داسې نورو غوندې ثقاتو هم له زهري څخه همدا ډول روایت کړی دی لکه څرنګه چه معمر بیان کړی دی او د ابو سعید خدري حدیث هم د دې تائید کوي چه الفاظ ئې په لاندې ډول دي:

امرنا رسول الله ﷺ ان نقرأ بفاتحة الكتاب وما تيسر واسناده صحيح عند ابي داؤد. رسول الله ﷺ مونږ ته د سورة فاتحه د ويلو او (له هغه سره) چه کوم ځای آسانه دی د قرائت کولو حکم راکړی دی. دې لره ابو داؤد په صحيح سند سره روايت کړی دی او ترمذي او ابن ماجه دا حديث په دې ډول روايت کړی دی: (لا صلوٰة لمن لم يقرأ بالحمد وسورة). د هغه سړي لمونځ نه کيږي چه الحمد او سورت و نه وائي. د دې سند حسن دی. پس دا دعوه د منلو وړ نه ده چه معمر په يواځې صورت کښې زياتوالی کړی دی. بيا د معمر درجه په حفظ او اتقان کښې له محمد بن اسحاق څخه ډير لوړ دی. دا خبره له انصاف څخه ډير لرې ده چه د ابن اسحٰق زياتوالی دې قبول شي او د معمر زياتوالی دې رد کړی شي. نو اوس بايد اهلِ ظاه د دې قائل شي چه له امام سره د مقتدي په ذمې باندې سورة فاتحه يا يو سورت يا دوه درې آيتونو ويل هم واجب دي حالانکه دوی د دې قائل نه دي. پس زمونږ مدعا ثابته شوه چه د حضرت عباده حديث د مقتدي په باره کښې نه دی بلکه د امام او منفرد په حق کښی دی چه په دوی باندې سورة فاتحه او يو سورت يا دوه درې آيتونو لوستل واجب دي. د مقتدي په ذمې باندې له امام سره قرائت واجب نه دی. او که چيرته له کوم لفظ څخه د وجوب شبهه پيدا هم وای نو د عبادة په حديث کښې د ابو داؤد په دې لفظ سره هره شبهه لرې شوه چه: (ان كنتم لابد فاعلين فلا تفعلوا الا بام القرآن). (فيض ج۲، ص۲۶۳)

رسول الله ﷺ وفرمايل چه که تاسو خامخا په امام پسې قرائت کول غواړئ نو پرته له سورة فاتحه بل څه مه وايئ. له دې څخه هر سړی پخپله فيصله کولی شي چه دا عنوان د وجوب دی او که يواځې د روا والي. بيا جواز لره هم د امام له سکتې سره مقيد کول ضروري دي ځکه چه په جهري لمانځه کښې له امام سره يو ځای قرائت کول به د قرآن د نصّ او د انصات د حديث خلاف وي.

**دريم دليل** : عن ابي هريرة عن النبي صلى الله عليه وسلم قال من صلى صلوٰة لم يقرأ فيها بام القرآن فهي خداج ثلاثا غير تمام فقيل لابي هريرة انا نكون وراء الامام فقال اقرأ بها في نفسك. (مسلم شريف)

يعني رسول الله ﷺ وفرمايل: چه څوک داسې لمونځ وکړي چه په هغه کښې سورة فاتحه و نه لولي هغه لمونځ ناقص دی. (درې ځله ئې وفرمايل) پوره نه دی. د ابو هريره شاگرد ووېل: مونږ (کله کله) په امام پسې ولاړ يو نو ابو هريره ﷺ ځواب ورکړ چه (په داسې حالت کښې) سورة فاتحه په زړه کښې وايئ. له دې وروسته مؤلف د خداج او تمام د الفاظو په معنی کښې بحث کړی دی ليکن هر د پوهې خاوند سړی په دې پوهيدلی شي چه د حديث څومره برخه چه مرفوع ده په هغې کښې د مقتدي هيڅ ذکر نشته. او د حضرت ابو هريره ﷺ د شاگرد پوښتنه هم دا وائي چه د مقتدي په ذمه د قرائت واجب والی د هغه په نزد هم له حديث څخه څرگنده نه شوه او نه قرائت خلف الامام د هغه

په نزد معروف وو د دې لپاره د دې پوښتنې ضرورت پیدا شو. بیا د حضرت ابو هریره ﷺ ځواب لره مؤلف په دې باندې محمول کړی دی چه په امام پسې دې په پټه سره سورهٔ فاتحه ولوستل شي لیکن (اقرأبهافی نفسك) په دې مفهوم کښې صراحت نشته. زمونږ په نزد مطلب دا دی چه په زړه زړه کښې دې وائي. او مونږ ویلي دي چه د زړه قرائت ته عرفاً هم قرائت وئیل کیږي. په دې حدیث سره د سورهٔ فاتحه د رکنیت ثابتول او د مقتدي په ذمې باندې په امام پسې دې لره واجب بلل زور او زیاتی دی.

## د شاه ولی الله د قول ځواب

د غنیه او داسې نورو د عبارتونو وړاندې کول او د شاه ولی الله [1] په قول سره استدلال کول له

---

۱ - د حجة الله البالغه مطالعه کوونکی په دې باندې ښه پوهیږي چه شاه صاحب فرض او واجب دواړو ته رکن وائي ملاحظه کړئ ج۱، ص۹۵. چه په دې کښې ئې ضم سورت ته هم رکن ویلي دي حالانکه ضم سورت د هیچا په نزد هم فرض نه دی، یواځې د حنفیه وو په نزد واجب دی. شاه صاحب په حجة الله البالغه ج۲، ص۷ کښې فرمائي: **وان کان مأموما وجب علیه الانصات والاستماع فان جهر الامام لم یقرأ الا عند اسکاته وان خافت فله الخیرة فان قرأ فلیقرأ الفاتحة قراءة لا یشوش علی الامام وهذا اولی الاقوال عندی وبه یجمع بین الباب والسر فیه ما نص علیه من ان القراءة مع الامام تشوش علیه وتفوت التدبر وتخالف تعظیم القرآن ولم یعزم علیهم ان یقرءوا سرًّا لان العامة متی ارادوا ان یصححوا الحروف باجمعهم کانت لهم لجة مشوشة آه.**

ترجمه: که چیرته لمونځ کوونکی مقتدي وي نو په هغه باندې خاموشه اوسیدل او د قرائت اوریدل واجب دي. که چیرته امام «قرائت» په جهر «سره» کوي نو مقتدي به قرائت نه کوي لیکن د سکته په وخت. او که چیرته امام سري قرائت کوي نو مقتدي اختیار لري که چیرته وغواړي چه قرائت وکړي نو سورهٔ فاتحه دې داسې ووائي چه امام ته پرې تشویش ور و نه لویږي. زما په نزد په ټولو قولونو کښې دا بهتر قول دی چه په جهري لمانځه کښې مقتدي د امام په سکته کښې قرائت وکړي او په سرّي کښې دې داسې قرائت وکړي چه امام له تشویشه پکښې ساتلی وي. همدارنګه د دې باب ټول ټول حدیثونه سره یو ځای کیدلی شي او په دې کښې راز دا دی کوم چه تصریح ئې په حدیثو کښې هم شوی دی چه له امام سره قرائت کول امام په تشویش کښې اچوي او په دې سره په قرآنکریم کښې غور او فکر له منځه ځي. او دا صورت د قرآنکریم د تعظیم هم خلاف دی او په سرّي لمانځه کښې هم په مقتدیانو باندې قرائت نه دی لازم شوی ځکه چه عوام چه کله ټول په یو ځای په صحیح توګه حروف ادا کوي نو له دې څخه هم یو ډول تشویشناک شور او زوږ پیدا کیږي. آه

دا دی د شاه ولی الله صاحب مسلک د قرائت خلف الامام په باره کښې که چیرته د ده قول حجت دی نو صاحب تکمیل نور مخکښې د څه ویلو حق نه لري ۱۲ ظ

ظاهريه وو سره خوند نه کوي. که چیرته د دغو حضراتو قول حجت دی نو د نورو علماوو قول دې هم باید حجت و ګڼل شي کوم چه فرمائي چه له دې څخه یواځې دا څرګندیږي چه پرته له سورهٔ فاتحه څخه لمونځ ناقص وي، د فاتحه په رکنیت باندې هیڅ دلالت نه کوي. پرته له فاتحه څخه لمانځه ته باطل ویل د حدیث خلاف دي. له دې څخه یواځې د سورهٔ فاتحه وجوب ثابتیږي او حنفیه د فاتحه قرائت په امام او منفرد باندې واجب بولي او د مقتدي لپاره د امام قرائت کافي بولي. هغه د امام د قرائت په ذریعې سره حکماً پخپله قاري دی لکه څرنګه چه په تفصیل سره تیر شول. د مسلم او ابو داؤد په حدیث کښې په صراحت سره مقتدي ته د چُپ والي حکم دی. **(اذا قرأ فانصتوا)** همدا په قرآن کښې حکم دی. **(وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا)**. پس د ابو هریره د خواب دا مطلب نه دی چه له امام سره قرائت وکړئ بلکه مطلب دا دی چه په زړه زړه کښې د هغه په سکتاتو کښې ئې لولئ او یو ځای ئې مه ورسره وایئ. او د **(فی نفسك)** معنیٰ د یواځې هم راځي لکه څرنګه په صحیح حدیث قدسي[1] کښې راغلي دي. **(فان ذکرنی فی نفسه ذکرته فی نفسی وان ذکرنی فی ملأ ذکرته فی ملأ خیر منه)**. چه څوک ما تنها یادوي زه ئې تنها یادوم او چه څوک ما په ډله کښې یادوي زه هغه لره د هغه تر جماعت (ډلې) څخه په بهتر جماعت کښې یادوم. په دې حدیث کښې د **(فی نفسه)** معنیٰ تنهائي ده لکه څرنګه چه د جماعت له مقابلې څخه څرګنده ده. پس د ابو هریره د خواب هم دا مطلب کیدلی شي چه په امام[2] پسې تاسو یواځې یا تنها سورهٔ فاتحه ولولئ له امام سره ئې یو

---

۱ - همدارنګه د الله تعالی د دې قول چه **(وَقُل لَّهُمْ فِي أَنفُسِهِمْ قَوْلًا بَلِيغًا)** کښې د **(فِي أَنفُسِهِمْ)** تفسیر په **(وحداناً)** سره هم شوی دی ۱۲ رشید احمد

۲ - ترټولو زیات ښکاره مطلب دا دی چه دیواځې لمونځ کولو په حالت کښې ولولئ، چه کله له قرائت څخه منع وشوه نو د زړه د ماتیدلو ګومان وو د دې ګومان د لرې کولو په غرض سره ئې وفرمایل چه دا هیله مو د انفراد (یواځې لمونځ کولو) په حالت کښې پوره کړئ. د دې مثال دا دی چه امام ته په لمانځه کښې د تخفیف (سپک لمونځ کولو) حکم وشو له دې څخه د دې زړه ماتیدنې احتمال وو چه ښائي چا ته د اوږده لمانځه هیله وي د هغه د لرې کولو لپاره ئې وفرمایل چه په انفرادي حالت کښې مو چه څومره زړه غواړي همدومره اوږد لمونځ ادا کړئ. همدارنګه چه کله په قرآنکریم کښې ئې **(وإذا قرئ القرآن فاستمعوا له وأنصتوا)**. وفرمایل نو ممکنه وه چه له تلاوت څخه د ممانعت له وجې زړونه مات شي د دې لپاره داسې تسلي ورکړل شوه چه **(وَاذْكُر رَّبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ وَلَا تَكُن مِّنَ الْغَافِلِينَ)** یعنې په وختونو کښې کوم کمی نشته هر وخت ئې لوستلی شئ یواځې د اقتداء په حالت کښې د امام د رعایت له وجې

خای مه لولئ او دا هیڅوک نه منع کوي او د دې تاویل تائید له دې روایت څخه کیږي کوم چه امام بیهقي په جزء القرائت ص۵۴ کښې او حاکم په مستدرک ج۲، ص۲۳۸ کښې پخپله له حضرت ابو هریره څخه په دې الفاظو روایت کړی دی: **(من صلی صلة مکتوبة مع الامام فلیقرأ بفاتحة الکتاب فی سکتاته ـ آه)**. او چه کله یو څوک له امام سره لمونځ کوي هغه دې د امام په سکتاتو کښې سورهٔ فاتحه ولولي.

بیهقي دا منلي ده چه مرفوعاً دا حدیث صحیح نه دی موقوفاً صحیح دی. یعنې د رسول الله ﷺ ارشاد نه دی بلکه د حضرت ابو هریره قول دی چه له دې څخه دا خبره څرګنده شوه چه حضرت ابو هریره له امام سره د مقتدي قرائت جائز نه ګاڼه او په سکتاتو کښې ئې جائز ګڼلو. همدا زمونږ قول دی.

## په مولانا احمد علي صاحب محدث سهارنپوري باندې اعتراض او د هغه ځواب

د تکمیل البرهان مؤلف د ابو هریره د حدیث په بحث کښې بې له وجې د عباده د حدیث په اړه یو بحث څیړلی دی چه مولانا احمد علي صاحب حنفي (محدث) سهارنپوري د عباده د حدیث په سند کښې د نافع بن محمود له وجې خبره کړې ده چه هغه مستور الحال دی. حالانکه د مستور روایت د امام ابو حنیفه په نزد مقبول دی. بیا د عباده روایت لره امام ابو داؤد په څلورر طریقو سره راوړی دی. له دغو څلورو څخه یواځې په یوه سند کښې نافع بن محمود دی. بیا نافع بن محمود ته امام ذهبي په کاشف کښې ثقه ویلی دی او دار قطني د دې سند لره حسن او راویانو ته ئې ثقه ویلي دي. (چه له دې څخه د نافع ثقه والی هم لازم شو) او ابن حبان هم ده لره په ثقاتو کښې یاد کړی دی.

د دې اوږدې خبرې ځواب دا دی چه مولانا احمد علي صاحب هغه څه ویلي دي کوم چه موفق ابن قدامه حنبلي په کتاب المغني کښې فرمایلي دي چه د عباده په حدیث کښې دا زیاتوالی چه "لیکن په امام پسې سورهٔ فاتحه لولئ" یواځې ابن اسحاق روایت کړی دی او ابو داؤد له نافع بن محمود څخه هم روایت کړی دی او هغه له ابن اسحاق څخه هم ادنی دی ځکه چه د اخل حدیثو په نزد غیر معروف دی. لکه څرنګه چه مونږ په تفصیل سره بیان کړ. بیا امام احمد او یحیی بن معین

---

تلاوت مه کوئ. دلته هم د **(فی نفسك)** تفسیر له حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهما څخه **(وحدك)** منقول دی. او دا تفسیر د سرّاً ذکر له تفسیر څخه ښه بهتر دی چه **(دون الجهر من القول)** سرّاً ته هم شامل دی ۱۲ رشید احمد.

هم دي زياتوالي ته ضعيف ويلي دي او ابن حبان اگر كه نافع لره د ثقاتو په كتاب كښې داخل كړی دی ليكن حديث ته ئې معلل ويلي دي او له دې يوه حديث نه بغير ئې بل كوم روايت نشته. د دغو حضراتو په مخكښې د دار قطني د توثيق او تحسين چه كومه درجه ده اهلِ علم پخپله پرې پوهيدلی شي. علامه ابن تيميه هم دې ته د ضعيف په ويلو سره فيصله كړې ده چه دا د حضرت عباده قول دی. د رسول الله ﷺ وينا نه ده. بيا مونږ مخكښې وويل چه د دې حديث ټولو طريقو ته په كتو سره په ښكاره توگه څرگنديږي چه د دې په سند كښې ډير اضطراب دی او مضطرب حديث د هغه د اضطراب تر لرې كولو پرته د هيچا په نزد حجت نه شي جوړيدلی او د اضطراب د علت د لرې كولو هغه صورت دی كوم چه امام بخاري او مسلم غوره كړی دی چه د دې حديث هغه برخه ئې په صحيح كښې داخله كړې كومه برخه ئې چه ثقاتو روايت كړې ده چه په هغې كښې د امام او مقتدي هيڅ يادونه نشته او د كومې برخې راويان ئې چه د محمد بن اسحاق او نافع بن محمود غوندې خلك دي هغه ئې په صحيح كښې شامله نه كړه. او د حديثو په اصولو كښې دا فيصله شوې ده چه كله د مضطرب له څو طريقو څخه يوه طريقه رواج و مومي هم هغه به مقبوله وي نورې طريقې به ئې مردودې وي. پس مولانا احمد علي صاحب حنفي محدث سهارنپوري كومه مغالطه نه ده وركړې پخپله د تكميل البرهان مصنف جاهلانو ته دوكه او فريب وركوي.

**څلورم دليل**:

د تكميل د مؤلف څلورم دليل هغه دی كوم چه مونږ د مجمع الزوائد په حوالې سره پورته بيان كړ چه له يوه صحابي څخه مروي دی چه رسول الله ﷺ صحابهٔ كرامو ؓ ته وفرمايل: ښائي چه تاسو په امام پسې قرائت كوئ! درې ځله ئې دا پوښتنه وكړه صحابه وو وويل بې له شكه مونږ همداسې كوو. و ئې فرمايل داسې مه كوئ ليكن دا چه سورهٔ فاتحه پخپل زړه كښې ولولئ الخ.

جاهلانو ته د دوكې د وركولو لپاره د تكميل مؤلف دې حديث لره پخپلو دليلونو كښې شامل كړی دی په داسې حال كښې چه دا د حنفيه وو دليل دی ځكه چه د نبي كريم ﷺ له صحابهٔ كرامو څخه پوښتنه كول چه آيا تاسو په امام پسې قرائت كوئ؟ پخپله دا وائي چه له امام سره د مقتدي قرائت په نبي كريم ﷺ باندې ښه نه لگيده او د صحابه وو د اقتداء په حالت كښې قرائت كول د نبي كريم ﷺ په اجازې سره نه وو. چه كله هم د پوښتنې نوبت راغی په دې باندې ځينو اهل حديثو دا وينا چه "سوال د سورهٔ فاتحه د قرائت په اړه نه وو بلكه له سورهٔ فاتحه څخه د زيات قرائت په اړه وو" غلطه ده ځكه چه د دار قطني الفاظ دي چه: (**هل منكم من احد يقرأ شيئًا من القرآن و حسنه**)(**فيض الباري ج۲،ص۲۷۳**) آيا په تاسو كښې چا د قرآنكريم څه حصه تلاوت كړې ده؟ دار قطني د دې سند ته حسن ويلي دي. او د دې لفظ د فاتحه او غير فاتحه په حق كښې عام والی ظاهر دی. تر

دې وروسته د نبي كريمﷺ دا ارشاد چه **(الا ان يقرأ احدكم بفاتحة الكتاب في نفسه)** هم زمونږ دليل دی ځكه چه په دې كښې **(في نفسه)** قيد موجود دی چه سورهٔ فاتحه په زړه كښې لولئ يا د دې معنی د منفرد دی يعنې له امام سره ئې مه وايئ. له هغه[1] ځخه ئې مخكښې يا د هغه په سكته كښې ئې ولولئ. او مونږ له حديث قدسي څخه د **(في نفسه)** معنی د منفرد كيدو بيان كړی دی. د تكميل د مؤلف دا عوی چه د **(في نفسه)** معنی د سوكه يا په پټه د ويلو ده، د قبول وړ نه ده. د مالكيه له علماوو څخه ځينو لويو لويو علماوو د ابو هريره د حديث **(اقرأ بها في نفسك)** په تفسير كښې همدا خبره كړې ده چه سورهٔ فاتحه په زړه كښې وايئ. **(شرح مسلم للنووی وفتح الملهم)** بيا مونږ دا وويل چه تر نهی وروسته استثناء د وجوب لپاره نه وي يواځې د اباحت لپاره وي نو له دې حديث څخه د مقتدي لپاره د فاتحه د قرائت يواځې جواز يا اباحت ثابتيږي نه وجوب او دا د تكميل د مؤلف لپاره مضر يا تاواني ده ځكه چه هغه د فرضيت او ركنيت مدعي دی او له دې حديث څخه د مقتدي په حق كښې ركنيت خو پريږده وجوب هم نه ثابتيږي.

**پنځم دليل :**

د حضرت انس حديث كوم چه مضمون ئې له هغه څخه په مخكښيني حديث كښې د يوه مجهول صحابي د حديث مضمون دی، په دې كښې هم د **(في نفسه)** لفظ دی او د نبي كريمﷺ درې ځله پوښتنه كولو هم. آيا تاسو په لمانځه كښې له امام سره يو ځای قرائت كوئ؟

مونږ ويلي دي چه دا حديث په اصل كښې د حنفيه وو دليل دی چه اهل ظاهر ئې د مغالطې وركولو په توګه خپل دليل جوړول غواړي. بيا ان حبان په كتاب الضعفاء كښې د ابن سالم په واسطه سره له حضرت انس څخه روايت كړی دی. **قال رسول اللهﷺ من كان له امام فقراءة الامام له قراءة** "رسول اللهﷺ وفرمايل چه د چا لپاره كوم امام وي (او دی ئې مقتدي وي) نو د امام قرائت د هغه لپاره هم قرائت دی" ابن حبان په ابن سالم كښې كلام يا خبره كړې ده ليكن په تقريب كښې ئې ثقه ورته ويلي دي او په تهذيب التهذيب كښې دي چه **قال ابو حاتم لا بأس به (ج۹،ص۱۶۷)** ابو حاتم وويل په دې كښې هيڅ خبره نشته. او دا لفظ د توثيق لپاره استعماليږي. كه چيرته نافع بن محمود ته د ذهبي په قول سره ثقه ويل كيدلی شي نو ابن سالم ته د ابو حاتم په قول سره په طريقهٔ اولی سره ثقه ويل كيږي. پس د دواړو حديثونو په يو ځای كولو سره زمونږ د قول تائيد كيږي چه له دې

---

[1] - په تيرې حاشيې كښې بيان شول چه د دې ښكاره معنی دا ده چه د انفرادي لمانځه په حالت كښې ئې ولولئ.۱۲ رشيد احمد.

حدیث څخه د مقتدي لپاره يواځې د قرائت جواز ثابتيږي نه وجوب. او جواز هم په دې ډول چه په زړه کښې به ئې وائي يا تر امام مخکښې او يا دې د امام په سکته کښې، له امام سره دې يو ځای نه وائي.

**شپږم دليل:**

شپږم حدیث د تکميل مؤلف د عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده په سند سره بيان کړی دی چه رسول الله ﷺ وفرمايل تاسو په ما پسې قرائت کوئ؟ صحابه وو ووېل چه هو مونږ ئې زر زر وايو. نبي کريم ﷺ وفرمايل چه داسې مه کوئ ليکن يواځې سورهٔ فاتحه لولئ. بيا له عون المعبود څخه ئې نقل کړی دی چه عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده سند د امام بخاري او داسې نورو په نزد حجت دی. مغالطه او دوکه ورکول دې ته وائي. دې لره له عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده حجت کيدل وروسته بايد ثابت شوی وای لومړی، دا ضروري وه چه له امام بخاري يا بيهقي څخه تر عمرو بن شعيب پورې د راويانو څه حال دی؟ که چيرته د بخاري او بيهقي جزء القرائت په ښه توګه وکتل شي نو څرګنديږي چه له عمرو بن شعيب څخه روايت کوونکی ضعيف دی.

**قال البيهقي و محمد بن عبيد الله بن عمير وان كان غير محتج به و كذلك بعض من تقدم ممن رواه عن عمرو بن شعيب فلقراءة المأموم فاتحة الكتاب فى سكتة الامام شواهد صحيحة عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده خبراً عن فعلهم و عن ابي هريرة و غيره من فتواهم. (ص ۵۴)**

امام بيهقي فرمائي چه اګر که محمد بن عبد الله بن عمير څخه حجت نه شي قائميدلی (ځکه چه هغه ضعيف متروک دی) ځينو محدثينو خو ورته کاذب هم ويلي دي. (لسان ج۵، ص۲۱۲) همدارنګه ځينې نور خلک هم کوم چه دې لره له عمرو بن شعيب څخه روايت کوي (له هغو څخه هم حجت نه شي قائميدلی) ليکن د امام په سکته کښې د مقتدي د سورهٔ فاتحه د قرائت لپاره له عبد الله بن عمرو او حضرت ابو هريره او داسې نورو څخه په صحيح روايتونو کښې د هغوی فعل او فتوی بيان موجود دی. آه

په دې کښې امام بيهقي فيصله کړې ده چه له عبد الله بن عمرو، حضرت ابو هريره او داسې نورو په دې باب کښې مرفوع حديث ثابت نه دی يواځې د دوی د فعل او فتوی ثابته ده او هغه هم مطلقاً نه دي بلکه د امام په سکته کښې د مقتدي قرائت ته جائز وائي او له دې څخه حنفيه هم منع نه کوي. په وجوب باندې ئې هيڅ دليل نشته لکه څرنګه چه په تفصيل سره بيان شول. پس دا هم زمونږ دليل دی.

**اووم دليل:**

په دې دليل کښې ئې بيا د عبادة بن الصامت حديث بيان کړی دی حالانکه د حديثو لوستونکي

او بل ته ور ښوونكي ته پوهيږي چه كله صحابي يو وي نو حديث ئې هم يو وي، يو حديث لره څو حديثه ګڼل صحيح نه دي.

مونږ وويل چه د عباده حديث مضطرب دی. د دې په طريقو كښې كه چيرته كومې يوې طريقې ته ترجيح نه وای نو د قبول وړ به نه وای ليكن كله چي يوې طريقې ته ترجيح وركړی شوه نو همدا طريقه حجت ده پاتې طريقې ئې حجت نه شي جوړيدلی او له دغو طريقو څخه هغه طريقه راجحه ده كوم چه امام مسلم او بخاري په صحيح كښې غوره كړې ده او په دې كښې دمقتدي او امام څه ذكر نشته، يواځې دومره مضمون شته چه څوک سورهٔ فاتحه و نه لولي د هغه لمونځ نه كيږي. او له دې څخه هيڅوک انكار نه كوي، په امام او منفرد باندې زمونږ په نزد هم د فاتحه قرائت واجب دی او دا حديث ئې په دې معنٰى باندې امام احمد بن حنبل، سفيان بن عيينه او امام زهري غوندې د حديثو امامانو محمول كړی دی. حضرت جابر بن عبد الله صحابي او نورو صحابه وو هم د دې همدا مطلب ګڼلی دی. له دې صحيح طريقې پرته د عباده د حديث چه څومره طريقې دي ټولې مرجوح دي او د قبول وړ نه دي. بيا له كوم كتاب څخه چه د حديث دا الفاظ په تكميل البرهان كښې نقل شوی دی له هغه څخه د حديث الفاظ نه دي را اخيستل شوي ځكه چه الفاظ ئې د تكميل البرهان د مؤلف په خلاف او د حنفيه وو لپاره مفيد وو. د مجمع الزوائد الفاظ دا دي: **من قرأ خلف الامام فليقرأ بفاتحة الكتاب** (ج۱،ص۱۸۶) يعنې چه كوم سړی په امام پسې قرائت كوي نو سورهٔ فاتحه دې وائي. له دې څخه صاف څرګنديږي چه په امام پسې د سورهٔ فاتحه قرائت لازم نه دی چه څوک ئې لوستل غواړي لوستلی ئې شي او مونږ د حضرت ابو هريره او عبد الله بن عمرو بن العاص له روايتونو څخه ثابته كړې ده چه د دې مطلب دا دی چه مقتدي دې پخپل زړه كښې سورهٔ فاتحه وائي يا دې د امام په سكته كښې وائي. او له دې څخه هيڅوک هم منع نه كوي

**اتم دليل**:

اتم حديث د حضرت عائشه رضي الله عنها دی چه رسول الله ﷺ وفرمايل: كوم سړی چه په لمانځه كښې سورهٔ فاتحه و نه لولي د هغه لمونځ ناقص (نيمګړی) دی (د تكميل البرهان مؤلف د دې په ترجمه كښې د بيكار لفظ له ځانه ور زيات كړی دی) د دې په اړه عرض دی چه د دې حديث حاصل هغه دی كوم چه د حضرت ابو هريره رضي الله عنه د دريم حديث حاصل دی. له دې څخه د مقتدي په ذمې باندې د سورهٔ فاتحه قرائت لازمول زور او زياتی دی. ځكه چه مقتدي ته د امام قرائت كافي دی چه ثبوت ئې مونږ د صحيح حديثونو له مخې وركړی دی. له مقتدي پرته د امام او منفرد لمونځ خو مونږ هم له سورهٔ فاتحه پرته ناقص بولو. ځكه چه د سورهٔ فاتحه لوستل په دوی باندې واجب دی. د مقتدي لپاره په قرآن او حديث كښې د انصات (خاموش پاتې كيدلو) حكم دی. (انما جعل الامام ليؤتم به)

(امام د دې لپاره جوړ شوی دی چه د هغه اتباع وشي)او له امام سره یو ځای قرائت کول اتباع نه دی بلکه د امام اتباع دا دی چه مقتدي غلی پاتې شي او قرائت نې واوري له امام سره یو ځای د مقتدي قرائت کول د شاه ولی الله رحمه الله په قول د قرآن د تعظیم خلاف دی.

**نهم او لسم دلیل**

تر دې وروسته نهم او لسم حدیث هم د حضرت عباده حدیث دی او دواړه د بیهقي له جزء القرائت څخه را نقل شوی دی.

ما ویلي دي چه چه د عباده حدیث مضطرب دی او د مضطرب حدیث چه کومې طریقې ته ترجیح ورکړ شي هغه مقبوله او پاتې نورې ټولې طریقې ئې د قبول وړ نه دي او دا هم څرګنده شوې ده چه د دې حدیث هغه طریقه راجحه ده کومه چه امام بخاري او امام مسلم غوره کړې ده. بیا د تکمیل مؤلف دا حدیث د بیهقي له جزء القرائت څخه خو را نقل کړ لیکن دا ئې و نه لیدل چه کوم وخت محمد بن سلیمان بن فارس دا حدیث په دغو الفاظو سره بیان کړی دی. **(لاصلوٰة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب خلف الامام)** په دې وخت کښې ابو الطیب محمد بن احمد ذهلي هغه له دې خبرې منع کړ **(قال قلت لمحمد بن سليمان خلف الامام؛ قال خلف الامام ص۲۷)** آیا په دې حدیث کښې خلف الامام هم شته؟ و ئې ویل هو! او محمد بن ذهلي ثقه دی د هغه په دې لفظ باندې انکار کول پخپل دا بیانوي چه د هغه په نزد دا زیاتوالی منکر دی چه قرینه ئې دا ده چه د دې حدیث په سند کښې زهري هم شته او د زهري مذهب له موطاء امام مالک او داسې نورو څخه معلوم شوی دی چه د هغه په نزد په جهري لمانځه کښې مقتدي ته له امام سره یو ځای قرائت جائز نه دی. په تفسیر طبري کښې هم د ثقاتو په روایت سره د زهري دا قول مروي دی چه په کوم لمانځه کښې امام جهر کوي مقتدي دې په هغه کښې قرائت نه کوی اګر که د امام قرائت وا هم نه وري هو! په کوم لمانځه کښې چه امام جهر نه کوي مقتدي دې پخپل زړه کښې قرائت وکړي او په کوم لمانځه کښې چه امام جهر کوي په هغه کښې هیڅا ته قرائت جائز نه دی نه په زوره او نه په پټه. (ج۱. ص۱۱۱) که چیرته په دې حدیث کښې هغه د خلف الامام لفظ روایت کړی وای نو په جهري لمانځه کښې به ئې په امام پسې له قرائت کولو څخه ولې منع کوله؟ پس یا خو زیاتوالی شاذ دی لکه څرنګه چه د ابو الطیب ذهلي له پوښتنې څخه دا مفهوم را ووځي یا دا چه دا حدیث د مسبوق په اړه دی کوم چه تر امام وروسته خپل پاتې رکعتونه پوره کوي مطلب دا دی چه که چیرته مسبوق تر امام وروسته په پاتې رکعتونو کښې سورۂ فاتحه و نه لولي نو لمونځ ئې نه کیږي او په مسبوق باندې مونږ هم د سورۂ فاتحه قرائت واجب بولو او د خلف د لفظ معنی وروسته مستعملیدل له قرآن څخه ثابت دي. د دې آیت تفسیر چه **(وَجَعَلْنَاهَا نَكَالًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا)** ملاحظه کړی (مونږ دا واقعه عبرت وګرځاوه

د هغو خلکو لپاره کوم چه د دې په مخکښې موجود وو او د هغو خلکو لپاره کوم چه تر دې وروسته راتلونکي وو) (تفسير طبري ج١، ص٢٦٥)

پاتې شوه د امام بيهقي دا وينا چه د دې سند صحيح دی نو له دې څخه د حديث صحيح والی نه لازميږي ځکه چه شاذ حديث هغه دی چه راويان ئې ټول ثقه وي ليکن کوم ثقه ئې د ثقاتو د جماعت (ډلې) خلاف کړی وی. بيا د امام بيهقي دا وينا چه په دې حديث کښې د خلف الامام د لفظ زياتوالی داسې دی لکه څرنګه چه د مکحول په روايت کښې د (لاتقرؤا بأم القرآن) زياتوالی دی. نو د مکحول د دې زياتوالي حال خو مونږ بيان کړ چه امام احمد او يحيٰی بن معين او داسې نورو د حديثو امامانو ده ته ضعيف ويلي دي. بيا دا وينا چه دی له حضرت عباده څخه د څو وجوهاتو له مخې مشهور صحيح دی. نو دا هغه خبره ده کومه چه علامه ابن تيميه کړې ده چه صحيح دا ده چه د، د حضرت عباده قول دی، د رسول الله ﷺ قول نه دی. له دې څخه مونږ کله انکار کړی دی چه ځينې صحابهٔ کرام د قرائت خلف الامام قائل وو ليکن چونکه د هغوی قول د قرآن د نصّ او صحيح حديث خلاف دی له دې وجې په دې کښې تاويل کيږي چه هغو يا په زړه کښې سورهٔ فاتحه تلاوت کاوه او يا د امام په سکته کښې. او د هغو صحابه وو قول ته ترجيح ورکول کيږي کوم چه د قرآن د نصّ او د صحيحو احاديثو موافق دي او د عباده په لسم حديث کښې هم د امام او غير امام زياتوالی صحيح نه دی د کوم چه مطلب ئې دا دی چه "د هغه سړي لمونځ صحيح نه دی چه سورهٔ فاتحه و نه لولي که امام وي يا بل څوک" ځکه چه د دې په سند کښې احمد بن عمير دمشقي مشهور په ابن جوصا دی چه په اړه ئې حافظ بن منده له حمزه کتاني څخه نقل کړی دی چه هغه له ابو جوصا څخه روايت کول پرېښی وو. او وئې فرمايل چه له ما سره د ابن جوصا د روايت دوه سوه حصې دي کاش چه هغه خالص سپين وای او حاکم له زبير بن عبد الواحد اسدي څخه نقل کوي چه ما د ابو علي هيڅ لغزش (ښوييدنه) نه دی ليدلی پرته له دې چه هغه له عبد الله ابن وهب دينوري او ابن جوصا څخه روايت کوي. آه. د دې په سند کښې محمد بن ابي السري هم شته کوم چه غالباً عسقلاني دی. دی سره له حفظه ډيرې غلطۍ کوي او منکرات روايت کوي. ذهبي په ميزان کښې د هغه د يوه منکر حديث په بيانولو سره فرمايلي دي چه د ده نور منکر احاديث هم شته. پس په دې روايت کښې د امام اوغير امام لفظ يا د ابن ابي السري له مناکيرو څخه دی يا د ابن جوصا له غرائبو څخه دی. له دې څخه حجت نه شي قائمېدلی. بيا په دې کښې د مقتدي ذکر نشته يواځې د امام او غير امام ذکر دی نو له غير امام څخه منفرد مراد دی نه مقتدي ځکه چه د مقتدي په باره کښې په صحيح حديث اذا قرأ الامام فانصتوا (چه کله امام قرائت کوي نو چُپ پاتې شئ) کښې د خاموشي او چُپ والي صريح حکم راغلی دی او همدا حکم په قرآن کښې هم دی. وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ

**فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا** او مونږ ووېل چه په اتفاق سره دا آیت د قرائت خلف الامام په باره کښې نازل شوی دی. اوس دې د تکمیل البرهان مؤلف خپل ګرېوان ته سر ټیټ کړي او و دې ګوري چه څوک خدايي حکم او د رسول الله ﷺ صحیح حدیثونه ردوي، دی او که مونږ؟ بیا په دې باندې دا لن ترانی (بې ځایه خبرې او الزامات) چه خپل ځان ئې محقق، مبصر او د محمدي شریعت محکوم او فرمانبردار ګڼلی او د حنفي مذهب عوام او خواص ئې مذهب پرست، فرقه بند او هډوکي خرڅوونکي بللي او شرمېږي هم نه. په اختلافي مسائلو کښې چه کله له هر لوري سره دلائل موجود وي نو دا خوله پرېکونه او د تهذیب خلاف خبري لیکل دې ده ته مبارک وي، مونږ چا ته بد رد نه وایو یواځې د خپل مسلک په تائید او تقویت باندې اکتفاء کوو.

د دغو لسو حدیثونو په بیانولو سره د تکمیل البرهان مؤلف د **(تلك عشرة كاملة)** تاج په سر باندې په کېښودلو سره ډېر په فخر سره ویلي دي چه: "الحمد لله په امام پسې د سورهٔ فاتحه د قرائت مسئله د نبي کریم ﷺ له دغو لسو حدیثونو څخه په ښه توګه حل شوه" ګوا که له حنفیه وو سره نه له قرآن څخه کوم دلیل شته او نه له حدیثو څخه. د علم خاوند دې د داسې خبرو په کولو سره باید وشرمېږي. آیا ده ته دا معلوم نه دي چه حنفیه هم په دې مسئله کښې یواځې له قرآن او حدیثو څخه استدلال کوي.

تر دې وروسته د تکمیل البرهان مؤلف د صحابه وو آثار بیان کړی دی. ما ووېل چه له کومو حدیثونو څخه هغه استدلال کړی دی هغه یا خو صحیح نه دي او که صحیح دي نو د قرائت خلف الامام په اړه صریح نه دي. اوس آثار وګورئ.

## د حضرت عمر رضی الله عنه اثر

لومړی اثر د حضرت عمر رضی الله عنه دی چه له هغه څخه یزید بن شریک د قرائت خلف الامام په اړه پوښتنه وکړه نو ده ورته وفرمایل: سورهٔ فاتحه لولئ. ما ووېل چه اګر که ته (امام) وې؟ و ئې فرمایل اګر که زه (امام) وم. ما ووېل چه اګر که تاسو جهر کوئ؟ ده وفرمایل چه اګر که زه جهر کوم. دې لره دار قطني روایت کړی دی او ویلي ئې دي چه راویان ئې ثقه دي. او په دویم سند سره ئې روایت کړی دی او ویلي ئې دي چه دا سند صحیح دی او طحاوي[1] هم دې لره روایت کړی دی.

---

۱ - څرګندېږي چه د صاحبِ تکمیل په مخکښې طحاوي هم شته او ممکنه ده چه موطاء امام محمد او نصب الرایه او زیلعي هم وي او عمدة القاري شرح بخاري للعیني هم وي نو آیا هغوی ته د حنفیه وو دلائل په حدیثونو کښې په نظر نه دي وراغلي؟ که چیرته په نظر نه دي وراغلي نو معلومېږي چه هغوی په عربي باندې نه پوهېدل او که چیرته په نظر وراغلي دي نو بیا په کومه خوله باندې د حنفي مسلک ته د رسول الله ﷺ د حدیثو خلاف وائي؟ ۱۲ ظ

ځواب د دی چه له حضرت عمرﷺ څخه مختلف روایتونه دي. عبد الرزا پخپل مصنف کښې له موسے بن عقبه امام المغازي و السير څخه دا روایت کړی دی چه رسول اللهﷺ، صدیق اکبر او حضرت عمر رضی الله عنهما به له قرائت خلف الامام څخه خلک منع کول او دا حدیث مرسلاً صحیح دی او امام محمد پخپل موطاء کښې له داؤد بن قیس فراء څخه له محمد بن عجلان څخه روایت کړی دی چه حضرت عمر وفرمایل: کاش چه د هغه سړي خولې ته ډبرې یا کاڼي ولویږي چه څوک په امام پسې قرائت کوي. د دې ټول راویان ثقه دي لیکن روایت مرسل دی ځکه چه غالباً د محمد بن عجلان سماع له حضرت عمر څخه نه دی لیکن مرسل او منقطع زمونږ په نزد حجت دی او علامه عیني په عمدة القاري کښې تصریح کړې ده چه کله چیرته دوه مرسله له یوه صحیح حدیث سره ټکر وي نو په دوه مرسله باندې عمل کول بهتر دي. ص۸۸۵. او شاه ولی الله صاحب په ازالة الخفاء کښې یو مستقل باب د عمر بن الخطاب د مذهب د تدوین لپاره منعقد کړی دی. په دې کښې فرمائي: (قلت روی اهل الکوفة من اصحاب عمر الکوفيين ان المأموم لا يقرأ شيئاً - آه). (د حضرت عمرﷺ چه کوم کوفیان اصحاب دي د هغو روایت دا دی چه (د حضرت عمر په نزد) مقتدي څه قرائت نه شي کولی) په دې صورت کښې د ترجیح د اصولو مطابق د تحریم روایت ته ترجیح ورکول کیږي. (فقد ثبت فی الاصول ترجيح المحرم على المبيح اذا تعارضا) (ځکه چه په اصولو کښې له دلائلو څخه ثابت شوي دي چه کله محرم او مبیح تعارض سره وکړي نو محرم ته ترجیح ورکول کیږي) خصوصاً چه کله د تحریم روایت د قرآن د نصّ او د صحیح حدیث موافق وي. یا دواړه روایتونه په دې ډول سره جمع شي چه د ممانعت روایت په دې صورت باندې محمول دی چه کله له امام سره یو ځای قرائت وشي او د قرائت امر یا اجازه په هغه صورت کښې دی چه کله له امام څخه مخکښې وي یا د هغه په سکتو کښې وشي یا په سرّي لمانځه کښې قرائت وکړي لکه څرنګه چه د حضرت ابو هریره، عبد الله بن عمرو او حضرت عباده څخه د بیهقي په روایت مونږ د دې ثبوت وړاندې کړی دی چه د امام په ذمه د سکتې د واجب والي هیڅ دلیل نشته. پس امر لره په وجوب باندې نه شي محمولیدلی یواځې به په جواز باندې محمولیږي.

## د حضرت علیﷺ اثر

دویم اثر د حضرت کرم الله وجهه دی چه هغه به فرمایل: ووایئ په امام پسې د ماسپښین او مازدیګر په دوه لومړنیو رکعتونو کښې سورۀ فاتحه او یو بل سورت. دار قطني فرمایلي دي چه د دې سند صحیح دی.

زه وایم چه آیا صاحب تکمیل د مقتدي په ذمې باندې له سورۀ فاتحه پرته د یو بل سورت لوستل هم واجبوي؟ که چیرته ئې ځواب هو وي نو دا د اجماع خلاف دی کوم خلک چه د قرائت

خلف الامام قائل دي په هغو کښې یو هم د مقتدي په ذمې باندې له سورۀ فاتحه برسیره د بل هیڅ یوه سورت لوستلو ته واجب نه وائي. پخپل اهلِ حدیث هم د دې قائل نه دي. او که چیرته ئې ځواب د نفی وي نو د حضرت علي رضی الله عنه د اثر ځواب دې ورکړي ځکه چه په دې مقتدي ته د سورۀ فاتحه او د یوه بل سورت د دواړو حکم دی. او زمونږ ځواب دا دی چه له حضرت علي رضی الله عنه څخه هم مختلف روایتونه راغلي دي. عبد الرزاق او ابو بکر بن ابي شیبه پخپل مصنف کښې له حضرت علي رضی الله عنه څخه داسې روایت کړی دی. **(قال من قرأ خلف الامام فقد اخطأ الفطرة)** (چه څوک په امام پسې قرائت وکړي هغه د فطرت (یعنې د سنتو) په خلاف عمل کوي). دار قطني هم دې لره پخپل سنن کښې روایت کړی دی چه مونږ د شعبي له مرسل سره مخکښې بیان کړی دی. او د دې په سند کښې خبره شته چه قیس او محمد بن سالم ضعیف دي لیکن دغو دواړو ته نورو ثقه ویلي دي د دې لپاره دا روایت ردیدلی نه شي. او د ابن ابي شیبه په سند کښې دا ضعیف راوي نه دی سند ئې د صحیح شرط موافق دی پرته له محمد بن الاصبهاني څخه. لیکن دې ته علامه ذهبي او ابن حبان ثقه ویلي دي. او ظاهره خبره ده چه د حضرت علي فتاوی او قضایا له نورو خلکو څخه زیات د کوفې خلک ښه پیژني ځکه چه د خلافت دِ انکار زمانه ئې اکثره په کوفه کښې تیره کړې ده د دې لپاره د هغو روایت ته ترجیح ورکول کیږي. خصوصاً په داسې حال کښې چه دا روایت د کتاب الله او صحیح حدیث موافق هم دی. او امام عبد الله بن یعقوب سندموني پخپل کتاب کشف الاسرار کښې له عبد الله بن زید بن اسلم څخه روایت کوي. هغه له خپل پلار (زید بن اسلم مولی عمر بن الخطاب) څخه روایت کوي چه له صحابه وو څخه لسو کسانو به له قرائت خلف الامام څخه په سختۍ سره خلک منع کول. کوم چه په لاندې ډول دي: حضرت ابو بکر صدیق، حضرت عمر بن الخطاب، حضرت عثمان بن عفان، حضرت علي بن ابي طالب، حضرت عبد الرحمٰن بن عوف، حضرت سعد بن ابي وقاص، حضرت عبد الله بن مسعود، حضرت زید بن ثابت، حضرت عبد الله بن عمر او حضرت عبد الله بن عباس رضی الله تعالی عنهم اجمعین. (عمدة القاري) چه څومره سند مذکور دی د هغه ټول راویانثقه دي. عبد الله بن زید ته امام بخاري او امام احمد ثقه ویلي دي او محدثین چه د سند کومه برخه حذف کوي په هغه کښې کلام نه کوي.

پس د حضرت عمر رضی الله عنه غوندې د حضرت علي رضی الله عنه په اثر کښې هم محرم ته په مبیح باندې ترجیح ورکول کیږي، یا ممانعت په جهري لمانځه باندې او اجازت په سرّي لمانځه باندې محمولیږي چه تائید ئې د بیهقي د جزء القرائت له دې اثر څخه کیږي:

عن علی قال من السنّة ان یقرأ الامام فی الرکعتین الاولیین من صلوة الظهر بأم الکتاب و سورة سرّا فی نفسه و ینصتون من خلفه و یقرءون فی انفسهم.

(حضرت علی﷛ وفرمایل چه د لمانځه سنت دا دي چه امام د ماسپښین په لومړیو دوه رکعتونو کښې سورهٔ فاتحه اویو بل سورت سوکه یا په پټه ووائي او په هغه پسې ولاړ خلک چُپ یعنې غلي ودریږي، په زړه کښې دې وائي). امام بیهقي له ځ څخه احتجاج کړی دی او په دې کښې ښه تصریح ده چه مقتدي دې خاموشه وي. بیا له دې څخه تر سورهٔ فاتحه وروسته د بل سورت د یو ځای کولو وجوب هم ثابت دی چه اهل حدیث ئې قائل نه دي او حنفیان ئې قائل دي.

## د عبد الله بن عمر﷛ اثر

**دریم اثر:** ابو العالیه وائي چه ما په مکّه مکرمه کښې له عبد الله بن عمر﷛ څخه پوښتنه وکړه چه زه لمونځ وکړم؟ و ئې فرمایل چه د دې کور (بیت الله) له ربّ څخه ما ته حیا راځي چه زه لمونځ وکړم او په هغه کښې قرائت و نه کړم اګر که سورهٔ فاتحه هم وي. دې روایت لره امام بخاري په جزء القرائت کښې روایت کړی دی.

زه وایم چه په دې کښې د قرائت خلف الامام ذکر نشته بلکه د مطلق قرائت ذکر دی چه په لمانځه کښې قرائت باید ضرور وشي اګر که سورهٔ فاتحه هم وي. دا په غیر مقتدي باندې محمولیږي ځکه چه ابو العالیه پخپله مرسلاً روایت کړی دی چه خلکو په امام پسې قرائت کاوه نو د (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا) آیت نازل شو (فسکت القوم و قرأ النبی ﷺ) (بیا به خلک خاموش وو او نبي کریم ﷺ به قرائت کاوه) او له موطاء امام مالک څخه له تر ټولو صحیح سند سره د عبد الله بن عمر﷛ مذهب ذکر شو چه کله له هغه پوښتنه کیدله چه آیا په امام پسې قرائت کیږي؟ نو ویل به ئې چه په امام پسې چه کوم سړی لمونځ کوي هغه د امام قرائت کافي دی او چه کله یواځې لمونځ کوي نو باید چه قرائت وکړي. تر دې وروسته نافع وویل چه عبدُ الله بن عمر﷛ په امام پسې قرائت نه کاوه او بیهقي هم په جزء القرائت کښې له صحیح سند سره له قاسم بن محمد څخه همدا روایت کړی دی چه عبد الله بن عمر په امام پسې قرائت نه کاوه نه په جهري لمانځه او نه په سرّي کښې.

پس د ابو العالیه دا روایت له هغه سره نه ټکر کیږي دا روایت په امام او منفرد باندې محمول کول ضروري دي. بیا د دې دا لفظ اګر که سورهٔ فاتحه هم وي دا وائي چه د عبد الله بن عمر په نزد د قرائت لپاره سورهٔ فاتحه متعینه نه ده او دا صاحب د تکمیل البرهان ته مضر (تاواني) دی. ځکه چه هغه د فاتحه د تعیّن او د هغه د رکنیت قائل دی. تر دې وروسته له کنز العمال څخه چه کوم اثر ده د عبد الله بن عمر را نقل کړی دی په هغه کښې کاتب غلطي کړې ده. هغه په اصل کښې د عبد الله بن عمرو بن العاص اثر دی. د امام بیهقي جزء القرائت ص۴۵ ملاحظه کړئ. او د دې په سند کښې مثنی بن صباح ضعیف دی. (تقریب ص۲۰۱) بیا په دې کښې په امام پسې د قرائت مطلقاً ذکر

نشته بلکه تر امام مخکښې یا د سکتې په حالت کښې د قرائت کولو ذکر دی او له دې څخه هیڅوک انکار نه کوي. همدارنګه په دې کښې دا لفظ هم دی چه **(من صلی مکتوبة او سبحة فلیقرأ بأم القرآن و قرأنا معها)** (کوم سړی چه فرض لمونځ کوي یا نفل نو سورهٔ فاتحه دې هم لولي او له هغې سره دې د قرآن څه نوره برخه هم لولي) له دې څخه له سورهٔ فاتحه سره د سورت د یو ځای کولو وجوب ښکاره معلومیږي لیکن اهلِ حدیث د دې قائل نه دي. که چیرته له دې اثر څخه د مقتدي په ذمې باندې د سورهٔ فاتحه قرائت واجب کړی شي نو د یوه سورت یا څو آیتونو لوستل به هم واجب شي او د دې هیڅوک هم قائل نه دی. پس دا اثر په اتفاق سره متروک العمل دی.

## د ابی بن کعب رضی الله عنه اثر

څلورم اثر د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه اثر دی چه هغه به په امام پسې قرائت کاوه. لیکن ښکاره خبره دا ده چه هغه به له امام څخه مخکښې یا به د امام په سکتاتو کښې قرائت کاوه او له دې څخه مونږ هم منع نه کوو لکه څرنګه چه په راتلونکي اثر کښې د دې ښه تصریح راغلې ده.

## د عبد الله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه اثر

پنځم اثر د عبد الله بن عمرو بن العاص اثر دی چه هغه به په امام پسې قرائت کاوه.

لیکن پخپل د تکمیل مؤلف د کنز العمال په حوالې سره د دې تشریح هم کړې ده چه هغه به ویل: چه کله ته له امام سره وې نو سورهٔ فاتحه له هغه څخه مخکښې یا د هغه په سکتاتو کښې وایه، او دا مونږ هم جائز بولو او د وجوب هیڅ دلیل نشته ځکه چه د امام په ذمې باندې د یوه دلیل له مخې هم سکوت واجب نه دی.

## د ابو هریره رضی الله عنه اثر

شپږم اثر د حضرت ابو هریره رضی الله عنه اثر دی چه په کوم لمانځه کښې سورهٔ فاتحه و نه لوستل شي هغه خداج (ناقص) دی. ابو السائب وویل چه کله زه په امام پسې یم او هغه په جهر سره قرائت کوي نو څه به کوم؟ حضرت ابو هریره رضی الله عنه په ځواب کښې وویل چه **(ویلك یا فارسی اقرأ بها فی نفسك. الخ)** د دې ترجمه صاحبِ تکمیل داسې کړې ده چه (سورهٔ فاتحه سو که او په پټه سره وایه) او زمونږ په نزد ئې ترجمه دا ده چه (سوهٔ فاتحه په زړه کښې ئې وایه) ځکه چه په ابو داؤد، نسائي او داسې نورو کښې په صحیح سند سره له ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی **(اذا قرأ الامام فانصتوا)** چه کله امام قرائت کوي نو تاسو خاموش و اوسئ، او قلبي (د زړه قرائت) ته قرائت ویل د لغت او عرف له مخې ثابت دي لکه څرنګه چه مونږ مخکښې ویلي دي. پس په دواړو روایتونو باندې د عمل کولو

صورت دا دی چه حضرت ابو هريرهﷺ د مقتدي لپاره د انصات (چُپ والي) هم قائل دی چه مقتدي ته په امام پسې خاموش يا غلی دريدل واجب دي او په زړه کښې قرائت ويل جائز بولي. همدا زمونږ مذهب دی

## د عبد الله بن مغفلﷺ اثر

اووم اثر د عبد الله بن مغفلﷺ اثر دی چه هغه به په امام پسې د ماسپښين او مازديگر په دوه لومړنيو رکعتونو کښې له سورۀ فاتحه سره يو بل سورت هم قرائت کاوه او په وروستنيو دواړو رکعتونو کښې به ئې يواځې سورۀ فاتحه تلاوت کاوه.

زه وايم چه ابن منده پخپل تفسير کښې له عبد الله بن مغفل څخه د دې په خلاف روايت کړی دی چه ما د صحابه وو له يوه مشر څخه پوښتنه وکړه (راوي وائي چه زما گومان دا دی چه هغه د عبد الله بن مغفل نوم واخيست) آيا په هر سړي باندې څوک چه قرآن اوري د قرآن اوريدل او خاموش اوسيدل واجب دي؟ و ئې فرمايل چه دا آيت (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا) (چه کله قرآن ويل کيږي نو وا ئې وری او چُپ يا خاموش و اوسئ) د قرائت خلف الامام په باره کښې نازل شوی دی چه کله امام قرائت کوي نو هغه واورئ او خاموش و اوسئ. (زيلعي ج۳. ص۲۳۲) پس که چيرته د بخاري د جزء القرائت په روايت کښې د خلف الامام د لفظ زياتوالی شاذ او منکر نه دی نو ويل کيږي چه عبد الله بن مغفل له امام سره يو ځای قرائت نه کاوه. له امام څخه ئې مخکښې يا د هغه په سکتاتو کښې قرائت کاوه. بيا په دې رو يت کښې له سورۀ فاتحه سره د بل يوه سورت د يو ځای کولو هم ذکر شته آيا صاحبِ تکميل دا د امام يا مقتدي په ذمې باندې واجب بولي؟ که چيرته ئې نه بولي نو د داسې اثر د بيانولو څه فائده په کوم باندې چه پخپل عمل نه کوي.

## د ابو سعيدﷺ اثر

اتم اثر د ابو نضره اثر دی چه ما له ابو سعيد څخه د قرائت خلف الامام په باره کښې پوښتنه وکړه هغه وفرمايل چه سورۀ فاتحه وايه.

زه وايم چه دا حديث ابو داؤد له ابو نضره څخه روايت کړی دی لکه څرنگه چه پخپله صاحبِ تکميل را نقل کړی دی. په دې کښې د خلف الامام يادونه نشته بلکه د دې الفاظ دا دي چه (قال امرنا ان نقرأ بفاتحة الكتاب وما تيسر) (مونږ ته امر شوی دی چه سورۀ فاتحه لولئ او نور چه کوم آسانه وی) او اهل حديث تر سورۀ فاتحه وروسته نور څه لوستل واجب نه بولي. ترمذي او ابن ماجه کښې هم د حضرت ابو سعيد خدريﷺ دا روايت موجود دی په دې کښې هم د خلف الامام لفظ موجود نه دی. ابن عدي په کامل نومي کتاب کښې او ابن ابي شيبه په مصنف کښې. اسحق بن

راهویه پخپل مسند کښې او طبراني د اهلِ شام په مسند کښې دا حدیث روایت کړی دی د دغو حضراتو په روایتونو کښې هم د خلف الامام نوم او نښان نشته. طبراني دا روایت لها بو نضره څخه له ابو سعید څخه په دې الفاظو روایت کړی دی **(لاصلوة الابأم القرآن ومعها غيرها)** (لمونځ نه کیږي لیکن له سورهٔ فاتحه سره او له هغې سره چه څه نور قرآن هم وي) او د کامل الفاظ دا دي: **(لاصلوة الا بفاتحة الكتاب و سورة معها)** (لمونځ نه کیږي مګر له سورهٔ فاتحه سره او له هغې سره یو بل سورت) د ابن ماجه الفاظ دا دي: **(لا صلوة لمن لم يقرأ في كل ركعة بالحمد و سورة في فريضة و غيرها)** (لمونځ نه کیږي د هغه سړي چه په هر رکعت کښې الحمد شریف او یو بل سورت ورسره و نه وائي. که فرض لمونځ وي او که نفل) (اعلاء ج۲، ص۱۸۲) اوس که چیرته دا قرائت په خلفِ الامام باندې محمول کړی شي نو صاحبِ تکمیل باید د دې قائل شي چه د امام او مقتدي په ذمې باندې په هر رکعت کښې تر سورهٔ فاتحه وروسته د یو بل سورت لوستل هم واجب دي حالانکه هغه د دې قائل نه دی بیا د داسې آثارو له را نقل کولو څخه څه فائده په کومو باندې چه هغه پخپله عمل نه کوي.

تر دې وروسته صاحبِ تکمیل د حنفیه وو خوا ته یوه مغالطه منسوب کړې ده چه د تعلیم په وخت کښې نبي کریمﷺ (مسیء[1] الصلوة ته فاقرأ ما تيسر معك من القرآن) ویلي وو چه له قرآن څخه هغه لولئ کوم چه تاسو ته آسانه وي (خاص ئې د سورهٔ فاتحه د لوستلو حکم نه دی کړی) له دې څخه څرګنده شوه چه د فرض قرائت د ادا کولو لپاره سورهٔ فاتحه خصوصیت نه لري د یوه یا دوه آیتونو په ویلو سره هم فرض ادا کیږي. د دې په ځواب کښې صاحبِ تکمیل وائي چه "حافظ صاحب یعني حافظ ابن حجر عسقلاني فرمایلي دي: د دې مطلب دا دی **(ای بعد الفاتحة)** یعنې تر سورهٔ فاتحه وروسته چه کوم سورت ستاسو یاد وي او آسانه وي هغه وایئ لکه څرنګه چه په ابو داؤد کښې د رفاعة بن رافع په حدیث کښې **(ثم اقرأ بأم القرآن)** صاف موجود دی. یعنې رسول اللهﷺ مسیئ الصلوة ته وفرمایل چه تر سورهٔ فاتحه وروسته چه کوم سورت آسانه وي هغه وایه".

زه وایم چه دا حدیث له قرائت خلف الامام سره هیڅ تعلق نه لري بلکه د منفر له لمانځه سره تعلق لري او د منفرد په ذمې باندې سورهٔ فاتحه او یو سورت یا دوه درې آیتونو لوستل واجب دي لیکن د صاحبِ تکمیل په نزد له سورهٔ فاتحه پرته نور څه ویل واجب نه دي که چیرته دا حدیث د قرائت خلف الامام په اړه و بلل شي نو هغه باید په دې باندې قائل شي چه په امام او مقتدي دواړو باندې تر سورهٔ فاتحه وروسته څه نور لوستل هم واجب دي. پاتې شوه د حنفیه وو دا وینا چه د مسیئ

---

[1] یعنې د لمانځه په بده توګه ادا کوونکی. دا حدیث په همدې عنوان سره بیانیږي. ظ

الصلوة په حدیث کښې د سورهٔ فاتحه ذکر نشته یواځې دومره ده چه له قرآن څخه چه کوم تاسو ته آسانه وي هغه لولئ. دا هیڅکله مغالطه نه ده بلکه واقعه دا ده چه د دې حدیث راویان دوه صحابه دي یو ابو هریره او بل رفاعة بن رافع. د حضرت ابو هریره په ټولو روایتونو کښې دا شته چه (**ثم اقرأ ما تیسر معك من القرآن**) (بیا له قرآنکریم څخه چه کوم تاسو ته آسانه وي هغه لولئ) په هیڅ یوه روایت کښې هم د ام القرآن یا د سورهٔ فاتحه ذکر نشته او د رفاعة بن رافع په حدیث کښې هم اکثرو راویانو همدا خبره کړې ده. یواځې یوه راوي محمد بن عمر (**ثم اقرأ بأم القرآن وبما شاء الله**) ویلي دي (بیا سورهٔ فاتحه ولولئ او تر هغې وروسته چه څه خدای غواړي هغه لولئ) دا د ابو داؤد الفاظ دي او همدارنګه د محمد بن عمرو په روایت کښې د امام احمد او ابن حبان دا الفاظ دي (**ثم اقرأ بأم القرآن وبما شئت**) (بیا سورهٔ فاتحه لولئ او څه مو چه زړه غواړي هغه لولئ) پخپله حافظ ابن حجر په فتح الباري ج۲. ص۲۳۱ کښې د دې تصریح کړې ده:

**قوله ثم اقرأ ما تیسر معك من القرآن لم تختلف الرواة فی هذا عن ابی هریرة و اما رفاعة ففی روایة اسحٰق المذکورة یقرأ ما تیسر من القرآن مما علمه الله وفی روایة یحیی بن علی فان کان معك قرآن فاقرأ والا فاحمد الله و کبره وهلله وفی روایة محمد بن عمرو عند ابی داؤد ثم اقرأ بأم القرآن وبما شاء ولاحمد وابن حبان من هذا الوجه ثم اقرأ بأم القرآن ثم اقرأ بما شئت اه.** پس د محمد بن عمرو دا زیاتوالی شاذ دی او شاذ حدیث د حدیث د اصولو له مخکي نه شي صحیح کیدلی خصوصاً په داسې حال کښې چه محمد بن عمرو متفق علیه ثقه هم نه دی. یحیی بن معین او جوزجاني او یعقوب بن شیبه او ابن سعد ورته ضعیف ویلي دي. او کومو خلکو ئې چه توثیق کړی دی هغوی هم ده لره د خطا او د ضبط د کموالي په الفاظو مجروح کوي. ملاحظه کړئ تهذیب التهذیب ج۹. ص۳۷۲/۲۷۷.

د داسې راوي تفرد (یواځې والی) د محدثینو د اصولو له مخې د قبول وړ نه دی او بیا د زیاتوالی د قرآن د نصّ خلاف دی. په قرآن کښې (**فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ**) راغلی دی چه له قرآن څخه کوم آسانه وي هغه لولئ. د سورهٔ فاتحه قید نشته. پس کوم روایت چه د قرآن د نصّ موافق وي هغه راجح دی او کوم چه د قرآن په نصّ باندې زیاتوالی ثابتوي هغه له قرآني نصّ سره نه شي برابریدلی د دې لپاره موږ وایو چه فرض خو یواځې دومره قرائت دی کوم چه آسانه وي (یعنې کم تر کمه یو آیت) او په خبر واحد کښې چه کوم زیاتوالی مذکور دی هغه فرض نه دی بلکه واجب دی. په دې صورت کښې د قرآن په نصّ باندې هم عمل وشو او په حدیث باندې هم. او د سورهٔ فاتحه قرائت د فرض ګڼلو په صورت کښې د نصّ ابطال لازمیږي او دا نه بنائي چه خبر واحد د قرآن له نص سره برابر شي. اوس دې صاحب تکمیل البرهان خپل ګریوان ته سر ټیټ کړي او ودې ګوري چه

مغالطه ورکوونکي او د خبرِ واحد پر بناء د قرآن د نصّ باطلوونکی څوک دی. دی او که مونږ؟ پاتې شوه دا دعوی چه په قرآن او حدیث کښې له ماتیسر (کوم چه آسانه وي) څخه مراد سورهٔ فاتحه دی. دا زور او زیاتی دی. له سورهٔ و العصر، انّا اعطینٰک الکوثر او قل هو الله احد څخه سورهٔ فاتحه زیات آسان څرنګه کیدلی شي چه دوه ځایه د ضاد لفظ پکښې دی. د ض صحیح ادا کول عوامو او خواصو ته هم مشکل دی او له همدې وجې څخه تر اوسه دا هنګامه (شور او غوغا) را ولاړه شوې ده چه ضاد د ظاء مشبه ده او که د دال؟

## د فرض او واجبو فرق

علامه شعراني شافعي په میزان کښې فرمائي: **فرحم الله ابا حنيفة حيث غيّر بين لفظ الفرض و الواجب وبين معناهما فجعل ما فرضه الله تعالى اعلى مما فرضه رسول الله ﷺ وان كان لا ينطق عن الهوٰى ادبا مع الله تعالى ونفس رسول الله ﷺ يحب اباحنيفة لانه يحب رفع رتبة تشريع ربّه على تشريعه هو ولو كان ذٰلك باذنه تعالى ولم ينظر الى ذٰلك من جعل الفرض و الواجب مترادفين و قال الخلف لفظيٌّ و الحق انهما عند الامام ابى حنيفة متفاضلان والخلف معنوى كما هو لفظى. آه (فتح الملهم ج۲، ص۱۹)**

**ترجمه**: الله تعالی دې په امام ابو حنیفه رحمه الله باندې خپل رحمتونه نازل کړي چه د فرض او واجبو تر منځ ئې فرق وکړ او د دواړو معناوې ئې ځان ځانته بیان کړې چه کوم عمل لره چه الله تعالی فرض کړی دی هغه ئې د رسول الله ﷺ له خوا تر فرض شوي عمل! ملی او لوړ وګڼه اګر که رسول الله ﷺ هم له خپل خواهش څخه څه نه دي فرمايلي. امام ابو حنیفه رحمه الله د الله تعالی ادب ملحوظ کړ او په دې باندې د رسول الله ﷺ زړه هم د امام ابو حنیفه رحمه الله تعریف کوي څکه چه ده ته هم همدا خوند ورکوي چه د الله تعالی تشریع د ده له تشریع څخه په لوړې مرتبې باندې کینبودل شي اګر که د ده تشریع هم د الله تعالی په اجازې سره دی په دې نکتې باندې هغه خلک نه پوهیږي کوم چه فرض او واجب برابر بولي. حقه خبره دا ده چه د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد د فرض او واجبو درجه له یوه او بل څخه کمه ده. په دواړو کښې د لفظي فرق تر څنګ معنوي فرق هم شته آه

صاحب تکمیل البرهان د علامه شعراني يو قول را نقل کړی دی. له هغه سره دې دا قول هم يو ځای کړي او ودې ګوري نو حقیقت به ورته واضح شي چه د قرآن او حدیثو احکام سره برابرول صحیح نه دي، چه کوم حکم له قرآن څخه ثابت دی هغه فرض او کوم حکم چه له حدیثو څخه ثابت دی هغه ته باید واجب وویل شي

## د حضرت عائشه ﷺ اثر

نهم اثر د حضرت عائشه ﷺ اثر دی چه هغې به په امام پسې د قرائت د کولو امر کاوه په دې کښې د سورۀ فاتحه ذکر نشته. نه دا تصریح شته چه له امام سره یو ځای په جهري یا سرّي لمانځه کښې دې مبارکې دِ قرائت امر کاوه او یا ئې په جهري لمانځه کښې د امام په سکتاتو کښې. پس په دې کښې د اهلِ حدیثو لپاره هیڅ حجت نشته. مونږ ویلي دي چه لس صحابۀ کرام چه په هغو کښې څلورګوني خلفاء راشدین هم شامل دي له قرائت خلف الامام څخه په سختی سره خلک منع کول. د دغو صحابه وو قول د قرآن د نص (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا) او د صحیح حدیث (اذا قرأ الامام فانصتوا). موافق دي چه کله قرآن ویل کیږي نو وا ئې وریئ او غلي شئ او چه کله امام قرائت کوي نو تاسو خاموش و اوسئ. پس ترجیح دې ته ورکول کیږي. د حضرت عائشي ﷺ په مجمل قول سره قرآن او صحیح حدیث نه پریښوول کیږي. په دې کښې تاویل کیږي چه په سرّي لمانځه کښې یا د جهري لمانځه په سکتاتو کښې به ئې د قرائت کولو امر کړی وي

## د حضرت جابر ﷺ اثر

لسم اثر د حضرت جابر ﷺ اثر دی چه مونږ په امام پسې د ماسپښین او مازدیګر د لمونځونو په لومړنیو دوه رکعتونو کښې سورۀ فاتحه او یو بل سورت قرائت کاوه او په دوه آخرنیو کښې مو یواځې سورۀ فاتحه وایه.

نو آیا صاحبِ تکمیل د دې قائل دی چه د مقتدي په ذمې باندې له سورۀ فاتحه پرته کوم بل سورت ویل واجب دي. که چیرته د دې قائل نه وي نو داسې اثر خو پخپله په ده باندې حجت دی په کوم باندې چه دی پخپله عمل نه کوي. بیا دا حدیث مضطرب دی ځکه چه ابن ماجه دې حدیث لره د یزید فقیر په واسطه سره له حضرت جابر ﷺ څخه روایت کړی دی او بیهقي په جزء القرائت کښې خاص د یزید فقیر په واسطه سره روایت کړی دی لیکن په دې کښې د خلف الامام ذکر نشته یواځې دومره خبره ده چه هغه به په لومړنیو دوه رکعتونو کښې سورۀ فاتحه او څه نور تلاوت کاوه او په وروستنیو دوه رکعتونو کښې به ئې یواځې سورۀ فاتحه تلاوت کاوه. بیا بیهقي له عبید الله بن مقسم څخه له حضرت جابر څخه روایت کړی دی. په دې کښې هم د خلف الامام ذکر نشته. د دې مضمون دا دی چه په لمانځه کښې د قرائت سنت دا دی چه په لومړنیو دوه رکعتونو کښې سورۀ فاتحه او یو بل سورت ولوستل شي او په وروستنیو دوه رکعتونو کښې یواځې سوره فاتحه. بیا د اعمش په واسطه سره له یزید فقیر څخه له حضرت جابر څخه په دې الفاظو روایت کړی دی (اقرأ فی الاولیین بالحمد و سورة و فی الاخریین بالحمد) چه په لومړیو دوه رکعتونو کښې الحمد او یو بل

سورت وايه او په آخري دوه رکعتونو کښې يواځې الحمد وايه. پس په داسې مضطرب روايت سره د هغه حديث معارضه نه شي کيدلی کوم چه امام مالک په موطاء کښې په صحيح سند سره او امام ترمذي په جامع کښې په صحيح حسن روايت سره روايت کړی دی چه حضرت جابر رضی الله عنه فرمائي چه چا په کوم لمانځه کښې سورهٔ فاتحه و نه لوستلو هغه لمونځ نه دی کړی ليکن دا چه په امام پسې وي ‹نو لمونځ ئې پرته له قرائت څخه صحيح دی› او حافظ ابن حجر دې روايت ته مشهور ويلي دي بيا د ابن ماجه له روايت څخه يواځې دومره څرګنده شوه چه هغه په سرّي لمونځونو کښې په امام پسې قرائت کاوه او دې ته مونږ هم جائز وايو. دا له کومه ځايه څرګنده شوه چه هغه په جهري لمونځونو کښې هم له امام سره يو ځای قرائت کاوه او د نزاع محل همدا صورت دی.

## د عباده رضی الله عنه اثر

يوولسم اثر د حضرت عباده بن الصامت رضی الله عنه دی چه ابو داؤد له نافع بن محمود څخه روايت کړی دی چه حضرت عباده د سهار د لمانځه نه وځنډيده نو ابو نعيم لمونځ ورکړ په دې منځ کښې عباده راغی او زه ورسره وم مونږ په ابو نعيم پسې په صف کښې ودريدلو. ابو نعيم په دې وخت کښې په جهر سره قرائت کاوه عباده د سورهٔ فاتحه لوستل شروع کړ. له لمانځه څخه فارغ شولو ما وويل چه له تا نه مې د سورهٔ فاتحه لوستل واوريده په داسې حال کښې چه ابو نعيم په جهر سره قرائت کاوه حضرت عباده وويل چه مونږ ته رسول الله ﷺ يوه ورځ لمونځ راکړ الخ بيا ئې دې روايت لره له تمهيد د ابن عبد البر او مستدرک حاکم څخه نقل کړی دی. په دې کښې دا سوال او ځواب د محمود بن ربيع خوا ته منسوب شوی دی.

ما ويلي دي چه دا حديث مضطرب دی او د اضطراب تفصيل مې هم بيان کړی دی او دا چه د دې حديث په ټولو طريقو کښې هغه طريقه راجحه ده کومه چه امام بخاري او مسلم غوره کړې ده. په دې کښې يواځې دومره مضمون ده چه پرته له سورهٔ فاتحه څخه لمونځ نه کيږي. د امام يا مقتدي په دې کښې بالکل ذکر نشته او سفيان بن عيينه او زهري او امام محمد دا په منفرد باندې محمول کړی دی. او په کومې طريقې سره چه د نافع يا محمود سوال او ځواب مذکور دی نو دې لره امام احمد او يحيی بن معين او د حديثو د امامانو يوې ډلې ضعيف ګڼلی دی. بيا صاحب د تکميل البرهان بايد هم دا فکر وکړي چه محمود بن ربيع يو صغير ‹کوچنی› صحابي دی او نافع متوسط ‹منځنی› تابعي دی **(کما في التقريب مستور من الثالثة)** د دغو دواړو د حضرت عباده په قرائت خلف الامام باندې انکار کول څه شی بيانوي؟ له دې څخه صاف څرګنديږي چه دغو دواړو له حضرت عباده څخه پرته هيڅ يو صحابي په امام پسې قرائت کوونکی نه وو ليدلی او نه د دغو دواړو په نزد مقتدي ته قرائت خلف الامام جائز وو او نه هغوی تر او سه پورې په قرائت خلف الامام

باندې روږدي وو، بیا ئې هم د حضرت عباده په قرائت باندې انکار وکړ. نو که چیرته له یوه صحابي څخه قرائت خلف الامام ثبوت هم پیدا شي نو له دې څخه د اهلِ حدیثو مدعٰی څرنګه ثابتیدلی شي په داسې حال کښې چه له دې اثر څخه دا هم څرګنده شوه چه پرته له دغه صحابي څخه نور صحابهٔ کرام د قرائت خلف الامام قائل نه وو.

## د ابن عباس رضی الله عنهما اثر

دولسم اثر د عبد الله بن عباس اثر دی چه هغه فرمایلي دي چه په امام پسې سورهٔ فاتحه لولئ. بیا ئې دا د عیزار بن حریث په واسطه سره را نقل کړی دی.

د دې په سند کښې ابو بحر بر بهاري دی چه دار قطني او محمد بن ابي الفوارس جرح پرې کړې ده. او ابو البرقاني او ابن السرخسي ورته کذاب ویلي دي. ابو الحسن بن الفرات ورته مخلط ویلي دي یعنې په روایت کښې ګډوډوالی کوي. په ده باندې غفلت غالب وو. مونږ د ابو جمره په واسطه سره له عبد الله بن عباس رضی الله عنهما څخه روایت را نقل کړی دی چه له هغه څخه پوښتنه وشوه چه کله امام زما مخې ته وي نو زه قرائت وکړم؟ و ئې فرمایل نه. د دې سند حسن دی. همدارنګه پخپله ابن عباس دا روایت هم کړی دی چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه تاسو ته د امام قرائت کافي دی که امام په پټه سره قرائت کوي او که جهر کوي او د دې سند هم حسن دی. پس یا خو یو روایت باید ردّ کړی شي او بل روایت کوم چه د قرآني نصّ ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ او صحیح حدیث (اذا قرأ الامام فانصتوا) موافق دی او یا دواړه په دې ډول سره یو ځای شي عبد الله بن عباس د مقتدي په حق کښې قرائت لره فرض نه ګاڼه او په جهري لمانځه کښې ئې له امام څخه مخکښې یا د سکتې په وخت کښې قرائت مستحب ګاڼه. همدارنګه په سرّي لمانځه کښې هم. او له دې څخه حنفیه هم ممانعت نه کوي لکه څرنګه چه څو ځله په تفصیل سره تیر شول.

## د ابن مسعود رضی الله عنه اثر

دیارلسم اثر د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه دی. ابو مریم وائي چه ما عبد الله بن مسعود په امام پسې قرائت کوونکی ولیده.

صاحبِ تکمیل باید د دې اثر په را نقل کولو وشرمیږي ځکه چه په دې کښې نه د سورهٔ فاتحه ذکر شته او نه د بل کوم سورت. ممکنه ده چه هغه به ثناء یعنې (سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ - الخ) او (إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ حَنِيفًا وَّمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ) وائي کوم چه مقتدي ئې د امام تر قرائت مخکښې وائي. په دې کښې دا خبره چیرته ده چه هغه به د امام له قرائت سره یو ځای قرائت

کاوه. عبد الله بن مسعود او د هغه د ملګرو مذهب مشهور دی چه هغو به د قرائت خلف الامام څخه په سختۍ سره ممانعت کاوه. لکه څرنګه چه مونږ مخکښې په ښه توګه واضحه کړې ده. هو! که چیرته امام لحّان (غلط قرآن ویونکی او جاهل وي) نو په هغه پسې به ئې مقتدي ته د قرائت اجازه ورکوله او د حنفیه وو ځینې فقهاء ئې هم قائل دي.

روی الطبرانی فی الکبیر بسند رجاله ثقات عن ابن مسعود انه قال یا فلان لا تقرأ خلف الامام الا ان یکون اماماً لا یقرأ (مجمع الزوائد) ای الا ان یکون الامام لحانا فحینئذٍ یجوز للمقتدی ان یقرأ خلفه و هذا وجه ذهب الیه بعض اصحابنا. (عمدة القاری)

(طبراني د ثقاتو په روایت سره له عبد الله بن مسعود ﷺ څخه روایت کړی دی. هغه وویل اې فلانیه په امام پسې قرائت مه کوه. لیکن که چیرته امام قاري نه وو (اُمّي وي نو قرائت وکړه) (مجمع الزوائد) یعنې که چیرته امام غلط قرائت کوونکی او جاهل وي نو د مقتدي لپاره جائز دي چه په هغې پسې قرائت وکړي. زمونږ ځینې اصحاب هم د دې قائل دي).

تر دې وروسته صاحبِ تکمیل د ترمذي یو عبارت نقل کړی دی چه د عباده حدیث حسن صحیح دی او د رسول الله ﷺ د اصحابو او داسې نورو د علم خاوندانو په دې باندې عمل کړی دی چه له همدې جملې څخه حضرت عمر فاروق، جابر بن عبد الله، عمران بن حصین رضی الله عنهم اجمعین هم دي، د دغو ټولو قول او فتوی همدغه ده چه پرته له سورهٔ فاتحه څخه لمونځ د کار شی[1] نه دی بالکل بیکاره دی. آه. لیکن د عباده د حدیث الفاظ ئې را نقل کړي نه دي. الفاظ ئې دا دي:

(لا صلوٰة لمن لم یقرأ بفاتحة الکتاب) (د هغه سړي لمونځ نه کیږي چه سورهٔ فاتحه و نه لولي) نو له دې څخه څوک انکار کوي. حنفیه هم وائي چه د سورهٔ فاتحه لوستل واجب دي. خبره خو په قرائت خلف الامام کښې ده چه په مقتدي باندې هم د سورهٔ فاتحه قرائت واجب دی او که نه؟ د عباده په حدیث کښې د دې ذکر نشته او له نورو صحیحو احادیثو له مخې مونږ ویلي دي چه د مقتدي لپاره د امام قرائت کافي دی. مقتدي ته د خاموش اوسیدلو حکم دی او په کوم ځای کښې چه ترمذي د قرائت خلف الامام ذکر کړی دی هلته ئې د محمد بن اسحٰق په واسطه سره د محمود بن ربیع حدیث له حضرت عباده څخه را نقل کړی دی چه په هغه کښې (لا تفعلوا الا بأم القرآن) الفاظ راغلي دي (په امام پسې څه مه وایئ مګر سورهٔ فاتحه) دا تصریح ئې هم کړې ده چه دا حدیث زهري له محمود بن ربیع څخه له حضرت عباده څخه له رسول الله ﷺ څخه داسې روایت کړی دی (لا صلوٰة

[1] - د لا تجزئ الصلوٰة دا ترجمه د بنده ایجاد دی د دې صحیح ترجمه دا ده چه بې له فاتحې څخه لمونځ کافي نه دی.

**لمن لم یقرأ بفاتحة الکتاب و هذا اصح** (د هغه سړي لمونځ نه کیږي چه سورهٔ فاتحه و نه لولي او همدغه زیات صحیح دی، چه په دې کښې ئې اشاره وکړه چه د محمد بن اسحاق د **(الا بأم القرآن)** زیاتوالی صحیح نه دی. پس خبره د سورهٔ فاتحه په قرائت کښې نه ده ځکه وجوب ئې په امام او منفرد باندې متفق علیه دی بلکه خبره په قرائت خلف الامام کښې ده. او مونږ ویلي دي چه د عباده له حدیث څخه په مقتدي باندې د قرائت خلف الامام وجوب نه ثابتیږي. امام ترمذي د ترک القرائت خلف الامام یو باب تړلی او د امام احمد بن حنبل دا قول ئې را نقل کړی دی.

**واما الامام احمد بن حنبل فقال معنی قول النبی ﷺ لا صلوة لمن لم یقرأ بفاتحة الکتاب اذا کان وحده واحتج بحدیث جابر بن عبدالله حیث قال من صلی رکعة لم یقرأ فیها بأم القرآن فلم یصل الا ان یکون وراء الامام قال احمد فهذا رجل من اصحاب النبی ﷺ تأول قول النبی ﷺ لا صلوة لم لم یقرأ بفاتحة الکتاب ان هذا اذا کان وحده.(ص۴۲)**

(لیکن احمد بن حنبل فرمائي چه د عباده په حدیث کښې د رسول الله ﷺ دا ارشاد چه د هغه سړي لمونځ نه کیږي چه سورهٔ فاتحه و نه لولي د هغه سړي لپاره ده چه یواځې لمونځ کوي. او د حضرت جابر له حدیث څخه ئې استدلال کړی هغه فرمائي چه کوم سړی د لمانځه په کوم رکعت کښې سورهٔ فاتحه و نه لولي د هغه لمونځ نه کیږي لیکن دا چه په امام پسې وي. امام احمد وفرمایل چه وګورئ د رسول الله ﷺ دغه اصحابي همدا مطلب بیان کړی دی چه کوم سړی تنها لمونځ کوي د هغه لمونځ پرته د سورهٔ فاتحه له قرائت څخه نه کیږي)

د مقتدي لپاره ئې دې لره عام و نه ګڼه نو د کوم ځای انصاف دی چه د بیهقي او داسې نورو قول حجت وي او د امام احمد قول دې حجت نه وي.

## د عمران بن حصین رضي الله عنه اثر

تر دې وروسته د تکمیل البرهان مؤلف د بیهقي له جزء القرائت څخه د حضرت عمران بن حصین قول را نقل کړی دی چه د هیڅ یوه مسلمان لمونځ پرته له اوداسه. رکوع. سجدې او د سورهٔ فاتحه له قرائت څخه نه پاکیږي. په امام پسې او که یواځې وي.

د دې اثر ټولې اجزاوې متفق علیه دي پرته له وراء الامام او غیر الامام له جزء څخه چه له هغې څخه په امام پسې د سورهٔ فاتحه د قرائت ثبوت ورکړ شوی دی. صاحب تکمیل باندې لازمه وه چه د دې جزء صحیح والی ئې ثابتولی ځکه چه په سند کښې ئې زیاد بن ابي زیاد الجصاص دی کوم چه امام محمد او یحیی بن معین او علي بن مدیني او ابو زرعه او ابو حاتم او نسائي. فضل غلابي. دار قطني او ابن عدي ضعیف. متروک. مذموم (بد) منکر الحدیث ورته ویلي دي او د دې

معارض (له دې سره په ټکر کښې) هغه حدیث دی کوم چه امام بیهقي له سلمة بن فضل څخه له حجاج بن ارطاة څخه له قتاده څخه له زرارة بن اوفي څخه له حضرت عمران بن حصین څخه روایت کړی دی چه رسول الله ﷺ خلکو ته لمونځ ورکاوه او یوه سړي د ده مبارک شا ته قرائت کاوه چه کله دی مبارک ﷺ فارغ شو نو ئې فرمایل چه زما په سورت کښې چا له ما سره جګړه کوله؟ بیا ده په امام پسې له قرائت کولو څخه خلک منع کړل.

امام بیهقي په دې کښې دا کلام کړی دی چه (نهي عن القراءة خلف الامام) (رسول الله ﷺ تر دې وروسته له قرائت خلف الامام څخه خلک منع کړل) یواځې حجاج بن ارطاة په دې حدیث کښې د زیاتوالي ویلي دي.

زه وایم چه حجاج بن ارطاة له محمد بن اسحاق څخه زیات قوي دی چه روایت ئې بیهقي او اهلِ حدیث بار بار د حجت په توګه وړاندې کوي. له حجاج بن ارطاة څخه امام مسلم مفرداً روایت کړی دی. امام بخاري تعلیقاً له دې څخه استشهاد کړی دی. شعبه د ده زیات تعریف کاوه. همدارنګه حماد بن زید او سفیان بن عیینه او سفیان ثوري د ده د تیقظ (بیداري) او د حدیثو د یادونې تعریف کړی دی او د حدیثو ټول امامان له ده څخه روایت کوي. ترمذي د ده د ځینو احادیثو تصحیح کړې ده او د ډیرو ئې تحسین (ستاینه) کړې ده او له ده څخه روایت کوونکی سلمة بن الفضل هم ثقه دی. یحیی بن معین د ده توثیق کړی دی. همدانګه ابو داؤد او ابن سعد او امام احمد ورته ثقه ویلي دي. پس د جصاص له روایت څخه احتجاج کول او د ارطاة له روایت څخه اعراض (مخ اړول) کول له انصاف څخه لرې ده او د خپل مذهب له حمایت پرته نور څه نه دي.

تر دې وروسته صاحبِ تکمیل د تابعینو فتواوې هم نقل کړي دي. ګوا که له اهلِ ظاهر سره د تابعینو له اقوالو سره احتجاج کول ښه نه ښکاریږي د کومو په نزد چه د مرفوع حدیث څخه پرته د صحابي قول هم حجت نه دی.

## د سعید بن جبیر رحمه الله اثر

تر ټولو مخکښې ئې د سعید بن جبیر رحمه الله فتوی را نقل کړې ده لیکن ترجمه ئې نه ده کړې ځکه چه هغه د مؤلف په خلاف وه. د دې حاصل دا دی چه له سعید بن جبیر رحمه الله څخه عثمان بن خیثم پوښتنه وکړه چه آیا زه په امام پسې قرائت وکړم؟ و ئې فرمایل هو اګرکه قرائت اوروې هم خلکو نن صبا نوې طریقه را ایستلې ده کومه چه په سلفو کښې نه وه. د سلفو دا طریقه وه چه کله به یو څوک امام جوړ شو نو هغه به تکبیر تحریمه ووایه او غلی به شو تر دې پورې چه د هغه په خیال کښې په ده پسې مقتدیانو به سورة فاتحه ولوست بیا به ئې قرائت شروع کړ او خلک به خاموش شول

زه وایم چه په دې اثر کښې چه ده د سلفو کومه طریقه بیان کړې ده په هغې کښې دا تصریح ده چه هغه به له امام سره یو ځای قرائت نه کاوه بلکه د امام په سکتاتو کښې به ئې قرائت کاوه او د امام د قرائت په وخت کښې به خاموشه شول. او په دې صورت کښې هیڅ اختلاف نشته. د امام په سکتو کښې قرائت ته مونږ هم جائز وایو او د وجوب ئې هیڅ دلیل نشته ځکه چه په امام باندې د اوږدې سکتې واجب والی د هیڅ یوه دلیل له مخې ثابت نه دی. د علامه ابن تیمیه په حوالې سره د دې ذکر تیر شوی دی او پخپله د سعید بن جبیر دا فتوی مذکوره ده چه له ده څخه د قرائت خلف الامام په باره کښې پوښتنه وشوه نو و ئې فرمایل چه په امام پسې قرائت نشته او د دې روایت ټول راویان ثقه دي له کوم څخه چه د صحاحو مصنفینو احتجاج کړی دی. پس د هغو چه کومه فتوی د قرآن د نص او صحیح حدیث (اذا قرأ الامام فانصتوا) موافق وي هغه به راجحه او صحیح وي.

## د حماد بن ابي سلیمان رحمه الله علیه فتوی

تر دې وروسته ئې د امام ابو حنیفه د استاذ حماد بن ابي سلیمان فتوی را نقل کړې ده چه له هغه څخه د ماسپښین او مازدیگر په لمانځه کښې (صاحبِ تکمیل دا جمله حذف کړې ده. مغالطه ورکول دې ته وائي) د قرائت خلف الامام په اړه پوښتنه وشوه نو وئې فرمایل چه سعید بن جبیر به قرائت کاوه. ما وویل چه ستاسو فتوی څه ده؟ ده وفرمایل چه زه هم دا خوښوم چه قرائت وکړم.

له دې څخه په ظاهره دا څرگندیږي چه سعید بن جبر یواځې په ماسپښین او مازدیگر کښې د قرائت خلف الامام قائل وو. همدا عمل حماد هم غوره کړ. او په یوه روایت کښې کوم چه د هدائې ملا صاحب له امام محمد څخه نقل کړی دی. امام ابو حنیفه هم دا غوره کړی دی. خبره په دې صورت کښې ده چه امام په جهر سره قرائت کوي. په دې اړه د تکمیل له مؤلف سره هیڅ دلیل نشته چه په دې حالت کښې هم په مقتدي باندې قرائت واجب دی.

## د مکحول رحمه الله علیه فتوی

تر دې وروسته ئې د مکحول شامي فتوی را نقل کړې ده لیکن ښکاره خبره ده چه مکحول یواځې دوه درې صحابهٔ کرام لیدلي دي. د ده فتوی د محمد بن سیرین د فتوی په مخکښې هیڅ حیثیت نه لري کوم چه فرمائي چه زه په امام پسې قرائت کول سنت نه بولم. لکه څرنگه چه د صحیح سند له مخې د ابن ابي شیبه په حوالې سره مونږ مخکښې بیان کړ.

پاتې شوه د امام بخاري رحمه الله په جزء القرائت کښې دا وینا چه "په تابعینو کښې فلاني او فلاني (یوولس کسان) د قرائت خلف الامام قائل او عامل وو". د دې په اړه د سند او الفاظو مخې ته راوړل ضروري دي ځکه چه ممکنه ده چه هغه حضرات به په سرّي لمانځه یا د جهري لمانځه په

سکتاتو کښې د قرائت قائل وو او له دې څخه مونږ هم ممانعت نه کوو امام بخاري د ډیرو صحابه وو او تابعینو نومونه د قرائت خلف الامام په قائلینو کښې شمار کړي دي حالانکه تر تحقیق وروسته څرګنده شوه چه هغوی مطلقاً د دې قائل نه وو بلکه په سرّي لمانځه کښې یا د جهري لمانځه په سکتاتو کښې د قرائت خلف الامام قائل وو او مونږ په څو ځو ځله دا ویلي دي چه په دې صورت کښې نزاع (اختلاف) نشته. لکه څرنګه چه صاحب تکمیل د حضرت سعید بن جبیر او ابو سلمه او حسن بصري فتوٰی پخپل تائید کښې را نقل کړې ده په داسې حال کښې چه دوی د امام په لومړۍ او دویمې سکتې کښې د قرائت قائل دي او امام حسن بصري د **(فی نفسك)** قید زیاتوي چه په امام پسې سورهٔ فاتحه پخپل زړه کښې لولئ او له دې څخه هیڅوک ممانعت نه کوي د صاحب تکمیل دا ترجمه چه "سوکه یا ئې په پټه لولئ" په مونږ باندې حجت نه ده. بیا د امام بخاري د جزء القرائت په حوالې سره ئې دا هم لیکلي دي چه حسن بصري، سعید بن جبیر، میمون بن مهران او داسې نورو بې شمیره تابعینو ویلي دي چه په امام پسې قرائت کوئ. حالانکه د حسن بصري او سعید بن جبیر په الفاظو کښې د امام د سکتې په وخت یا په زړه کښې د لوستلو قید په ښکاره توګه راغلی دی.

## د عطاء رحمه الله اثر

د حضرت عطاء بن ابي رباح فتوٰی د حنفیه وو موافقه ده، د اهلِ حدیثو موافقه نه ده. دی فرمائي چه کله امام په جهر سره قرائت کوي نو مقتدي دې بیړه کوي او د امام په سکوت کښې دې سورهٔ فاتحه لولي او چه کله امام قرائت کوي نو مقتدي دې غلی شي لکه څرنګه چه الله تعالی فرمایلي دي له دې څخه پاک څرګندیږي چه د حضرت عطاء بن ابي رباح په نزد د **(وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا)** آیت د قرائت خلف الامام په اړه نازل شوی دی او په مقتدي باندې د امام د قرائت په وخت خاموش اوسیدل واجب دي.

## د مجاهد رحمه الله اثر

پاتې شوه د مجاهد رحمه الله فتوٰی چه کوم سړی په امام پسې قرائت و نه کړي هغه باید خپل لمونځ بیرته را وګرځوي. همدارنګه عبد الله بن زبیر فرمایلي دي په دې کښې د سورهٔ فاتحه ذکر نشته. نه د دې یادونه شته چه له امام سره دې یو ځای قرائت کوي یا دې د هغه د سکوت په وخت کښې. د دې لپاره له دې څخه حجت نه شي قائمیدلی. مونږ په مخکښینیو پاڼو کښې د امام احمد قول له المغني څخه را نقل کړی دی چه د مقتدي په ذمې باندې په امام پسې د قرائت نه واجب والی اجماعي مسئله ده. امام احمد فرمائي چه مونږ په مسلمانانو کښې له هیچا څخه دا نه دي اوریدلي

چه کله امام په جهر سره قرائت کوي او په هغه پسې ولاړ مقتديان قرائت و نه کړي نو لمونځ ئې نه کيږي. و ئې فرمايل چه رسول الله ﷺ. صحابه. تابعين. د حجاز په خلکو کښې امام مالک. د عراق په خلکو کښې سفيان ثوري. د شام په خلکو کښې اوزاعي او د مصر په خلکو کښې ليث (بن سعد). د دوی له جملې څخه يو ئې هم دا نه وائي چه چا په امام پسې قرائت و نه کړي او امام قرائت وکړي نو لمونځ باطل دی. آه. له دې څخه څرګنديږي چه د امام احمد په نزد يا خو د مجاهد او عبد الله بن زبير دا فتوی د صحيح سند له مخې ثابته نه ده يا ئې هغه مطلب نه دی کوم چه اهل حديث ئې کښې

## د امام اوزاعي او ليث بن سعد فتوی

همدارنګه صاحب تکميل د ابن عبد البر له تمهيد څخه چه د امام اوزاعي او ليث بن سعد کومه فتوی نقل کړې ده چه هغو د مقتدي په ذمې باندې قرائت خلف الامام ضروري ګڼله د قبول وړ نه ده څکه چه امام احمد بن حنبل د علماوو قول تر دوی زيات پيژني

د امام ليث بن سعد مصري په اړه د ابن خلکان په تاريخ کښې دي چه هغه حنفي وو په معاني الاثار طحاوي په باب قرائت خلف الامام کښې د ليث بن سعد روايت له امام ابو يوسف څخه له امام ابو حنيفه څخه له موسی بن ابي عائشه څخه له عبد الله بن شداد څخه له حضرت جابر بن عبد الله څخه موجود دی چه رسول الله ﷺ وفرمايل: **(من كان له امام فقراءة الامام له قراءة)**. کوم سړی چه له امام سره لمونځ کوي نو د امام قرائت د هغه لپاره قرائت دی

ليث بن سعد فرمائي چه ما د امام ابو حنيفه نوم اوريدلی وو او له هغه سره مې د ليدلو ډير شوق وو بيا ما په مکّه کښې هغه په داسې حالت کښې پيدا کړ چه خلکو په هغه باندې هجوم وروړی وو او (په شرعي مسائلو کښې) ئې فتواوې ترې غوښتلې په همدې حالت کښې يوه سړي د خپل يوه خاص حاجت په باره کښې فتوی وغوښتله نو زه د هغه له فی البديهه ځواب څخه ډير په تعجب کښې شوم (فيض الباري ج۱. ص۱۷۸) له دې څخه هم د ده حنفي والی ثابتيږي نو ممکنه ده چه د امام ابو حنيفه د روايت شوي حديث تر اوريدو مخکښې دې د قرائت خلف الامام قائل دي چه کله ئې دا حديث اوريدلی وي چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي چه کوم سړی له امام سره لمونځ کوي د هغه لپاره د امام قرائت کافي دی. تر دې وروسته به د قرائت خلف الامام قائل نه وي پاتې شوی

## د عبد الله بن مبارک فتوی

له ترمذي څخه د عبد الله بن مبارک چه کوم قول را نقل شوی دی چه "زه په امام پسې قرائت کوم

او خلک ئې هم کوي لیکن د کوفې له خلکو څخه یو قوم" نو د عبد الله بن مبارک دا ارشاد به هم د عراق د خلکو د دلائلو تر اوریدو مخکښې وي ځکه چه وروسته د ده د حنفي مذهب غوره کول دُنیا ته معلومه ده.

مؤرخینو او د طبقاتو اصحاب ده لره په حنفیانو کښې شمار کړی دی. ځینې خلک ئې یواځې د دې لپاره چه هغه له امام مالک څخه روایت کوي له مالکیه وو څخه ګڼلی دی لیکن د هغه فقهي کتابونه د امام ابو حنیفه په اقوالو باندې ښائسته او ډک دي. د امام مالک قول شاذ او نادر کله کله بیانوي. د ده له دې قول څخه چه **(الا قوم من الکوفیین)** (لیکن د کوفې له خلکو څخه یو قوم) دا را اخیستل چه د کوفې له خلکو څخه یوه ډله قرائت خلف الامام نه کاوه او نورو ټولو خلکو کاوه. د صاحبِ تکمیل خوش فهمي ده. د کوفې خلک د عبد الله بن مسعود او د هغه د اصحابو او د حضرت علي د اصحابو په مسلک باندې وو او د دغو حضراتو مذهب په پریښودلو د قرائت خلف الامام کښې مشهور او معروف دی.

## د علامه ابن تیمیه تحقیق

صاحبِ تکمیل ته د علامه ابن تیمیه قول بیا ور یادوو کوم چه مونږ مخکښې لیکلی دی چه کوم خلک مقتدي لره له امام سره یو ځای له قرائت کولو څخه منع کوي له هغو سره جمهور سلف او خلف دي او کتاب الله او صیح احادیث هم د دوی تائید کوي او کوم خلک چه په مقتدي باندې له امام سره قرائت واجب بولي د هغوی حدیثونه د حدیثو امامانو ضعیف ګڼلي دي او د ابو موسی په حدیث کښې د رسول الله ﷺ دا ارشاد چه **(واذا قرأ فانصتوا)** (چه کله امام قرائت کوي نو چُپ و اوسئ) د امام احمد. اسحاق بن راهویه. امام مسلم او داسې نورو په نزد صحیح دی. په خلاف د دې چه (له کوم څخه چه فاتحه خلف الامام ثابتیږي) دا په صحیح کښې نه دي شامل کړی شوي او د څو وجوهاتو له مخې ئې ضعیف والی ثابت شوی دی او هغه یواځې د عبادة بن الصامت قول دی آه. د رسول الله ﷺ وینا نه ده.

تر دې وروسته د تکمیل مؤلف په امام پسې د سورهٔ فاتحه قرائت د ائمهٔ کرامو په اقوال سره د ثابتولو کوشش کړی دی چه امام مالک او امام احمد ئې هم پکښې شامل کړی دی حالانکه د کتاب المغني په حوالې سره مونږ مخکښې وویل چه امام احمد په امام پسې د سورهٔ فاتحه د قرائت په وجوب باندې هیڅکله قول نه دی کړی. هغه خو په دې خبرې باندې اجماع نقل کوي چه د مقتدي په ذمې باندې د سورهٔ فاتحه قرائت د هیچا په نزد هم واجب نه ده او په جهري لمانځه کښې خو امام مالک او احمد بن حنبل صاحب په امام پسې قرائت ناجائز بولي او مقتدي ته د خاموش اوسیدو حکم کوي البته په سرّي لمانځه کښې د قرائت خلف الامام اجازه ورکوي د نورو ائمهٔ

کرامو مذهب هم ده په همدې ډول را نقل کړی دی لکه څرنګه ئې چه د امام احمد او امام مالک مذهب را نقل کړی دی. د دې لپاره تر څو پورې چه د دوی الفاظ په مخکښې موجود نه وي تر هغه وخته پورې فیصله نه شي کیدلی ځکه چه صاحب تکمیل د امام زهري نوم هم په همدې فهرست کښې شائع کړی دی. حالانکه مونږ د موطاء امام مالک او د بیهقي جزء القرائت په حوالې سره مخکښې وښودل چه امام زهري په جهري لمانځه کښې له قرائت خلف الامام څخه په سختئ سره خلک منع کول. د امام مسلم پخپل جامع صحیح کښې د **(اذاقرأالامام فانصتوا)** روایت داخلول او د ابي موسیٰ او ابي هریره په حدیث کښې دا زیاتوالی صحیح بلل دا په ګوته کوي چه د امام مسلم په نزد قرائت خلف الامام نشته بلکه مقتدي ته خاموش اوسیدل ضروري دي. د دې په خلاف تر څو پورې چه د هغه صحیح او واضح الفاظ نه وي تر هغه وخته پورې هغه په قرائت خلف الامام په کوونکو کښې څوک نه شي شمارلی.

## امام نووي رحمة الله علیه

د تکمیل مؤلف چه د امام نووي کوم عبارت را نقل کړی دی چه د سلف او خلف جمهورو علماوو په نزد په رکعت کښې سورهٔ فاتحه لوستل واجب دي. په دې کښې د قرائت خلف الامام ذکر نشته یواځې د سورهٔ فاتحه د قرائت ذکر دی او دا مونږ د امام او منفرد په حق کښې واجب بولو.

## شاه ولی الله رحمة الله علیه

د شاه ولی الله قول مسلک ئې له حجة الله البالغه څخه را نقل کړی دی چه په جهري لمانځه کښې د هغه په نزد مقتدي ته چُپ اوسیدل واجب دي هغه یواځې په سرّي لمونځونو کښې یا د جهري لمونځونو په سکتاتو کښې د قرائت خلف الامام اجازه ورکوي او په دې کښې د هیڅ اختلاف نشته

همدارنګه له تفسیر خازن څخه ئې چه کوم عبارت را نقل کړی دی په دې کښې هم د قرائت خلف الامام ذکر نشته یواځې د فاتحه د قرائت وجوب پکښې مذکور دی او په دې کښې کومه خبره نشته د نزاع محل او ځای قرائت خلف الامام دی. لنډه دا چه که امام نووي وي او که بغوي دغو ټولو یواځې د سورهٔ فاتحه واجب والی بیان کړی دی. دا حنفیان هم مني خبره په دې کښې ده چه آیا د امام په قرائت سره دا واجب د مقتدي له ذمې څخه ادا کیږي او که نه؟ هو! د امام احمد له قول څخه معلومه شوه چه په مسلمانانو کښې هیڅوک هم د دې قائل نه دی چه له امام سره که چیرته مقتدي قرائت و نه کړي نو لمونځ ئې باطلیږي پس د صاحب تکمیل د سورهٔ فاتحه د وجوب په اقوالو سره د سورهٔ فاتحه په قرائت باندې استدلال نیول محض او یواځې مغالطه ده.

## امام رازي رحمه الله

د امام رازي رحمه الله د (قسمت الصلوٰة بيني و بين عبدي) حديث څخه د فاتحه په رکنيت باندې استدلال نيول چه کوم وزن لري اهلِ علم پرې ښه پوهيږي ځکه چه له خبر واحد څخه رکنيت ثابتول د هغو خلکو کار دی چه د رکن او واجب له فرق او توپير څخه ناخبره وي. بيا له دې حديث څخه خو دا هم ثابته ده چه (بسم الله الرحمٰن الرحيم) د سورۂ فاتحه جزء نه ده کوم چه د امام رازي او ټولو اهلِ حديثو په خلاف ده. چه د هغه کوم ځواب دی ورکوي هغه به زمونږ له خوا څخه هم ځواب وي

## د رسول الله ﷺ عمل او خلفاء راشدينو رضي الله عنهم تعامل

پاتې شوه دا چه رسول الله ﷺ او خلفاء راشدينو په لمانځه کښې د سورۂ فاتحه په قرائت باندې هميشوالی او مداومت کړی دی. هو! له دې څخه يواځې په امام او منفرد باندې د سورۂ فاتحه د قرائت وجوب ثابتيږي او حنفيان دا مني. له دې څخه ځرنګه قرائت خلف الامام ثابتيږي؟ په داسې حال کښې چه په صحيح حديث کښې مقتدي ته په امام پسې د خاموش او غلي اوسيدلو حکم دی (اذا قرأ الامام فانصتوا) او د قرآن له نصّ څخه هم په مقتدي باندې د اوريدلو او چُپ اوسيدو وجوب ثابت دی (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا) او مونږ څو څو ځله ويلي دي چه په اجماع سره دا آيت د قرائت خلف الامام څخه په منع کولو کښې را نازل شوی دی. همدارنګه مونږ د کشف الاسرار نومي کتاب په حوالې سره په تيرو پاڼو کښِې ويلي دي چه په صحابۂ کرامو کښې لسو کسانو په سختۍ سره له قرائت خلف الامام څخه خلک منع کړي دي چه په هغو کښې څلور واړه خلفاء راشدين هم شامل دي.

## مشائخ صوفيه کرام رحمهم الله تعالی

تر دې وروسته صاحبِ تکميل د قرائت خلف الامام ثبوت د مشائخو کرامو او صوفيۂ عظامو په اقوالو سره کړی دی ليکن دلته ئې هم هغه مغالطه ورکړې ده چه ځينو حضراتو د سورۂ فاتحه قرائت ضروري ګڼلی وو. ده له هغه څخه په قرائت خلف الامام باندې دليل قائم کړی دی حالانکه د سورۂ فاتحه د قرائت په واجب والي کښې هيڅوک هم څه نه وائي خبره په خلف الامام کښې ده. سيدنا شيخ عبد القادر جيلاني رحمه الله له قول څخه همدارنګه د خواجه بهاؤ الدين نقشبند. خواجه معين الدين چشتي او خواجه شهاب الدين سهروردي له اقوالو څخه يواځې د سورۂ فاتحه د قرائت وجوب ثابتيږي نه په امام پسې د قرائت وجوب. د سلطان نظام الدين اولياء له تذکره څخه ئې نقل کړی دی (لكنه يجوز القراءة بالفاتحة خلف الامام في الصلوٰة وكان يقرأها في نفسه) هغه حنفي وو

لیکن د سورۀ فاتحه قرائت ئې خلف الامام جائز باله او پخپل نفس کښې ئې قرائت کاوه» د صاحبِ تکمیل په نزد د دې مطلب دا دی چه هغه به سورۀ فاتحه په پټه او سوکه وایه. زمونږ په نزد ئې معنٰی دا ده چه په زړه کښې ئې وایه یا ئې د امام تر قرائت مخکښې او یا ئې د هغه په سکته کښې قرائت کاوه. له امام سره ئې یو ځای قرائت نه کاوه که چیرته هغه په جهري لمانځه کښې له امام سره یو ځای قرائت کاوه نو د هغه ئې باید څرګند ثبوت وړاندې کړی وای او دا ئې هم باید ویلي وای چه د صحابه وو حضراتو، تابعینو. ائمۀ مجتهدینو او جمهورو سلفو او خلفو په مقابله کښې د دغو حضراتو رایه څه وزن[1] لري؟

## امام ابو حنیفه او امام محمد رحمهما الله تعالی

تر دې وروسته صاحبِ تکمیل د امام ابو حنیفه او احنافو علماوو په اقوالو سره قرائت خلف الامام د ثابتولو کوشش کړی دی. تر ټولو مخکښې ئې د علامه شعراني د میزان کبرٰی په حوالې سره دا لیکلي دي چه د قرائت خلف الامام په باره کښې د امام ابو حنیفه او امام محمد دوه قولونه دي. یو دا چه مقتدي ته د الحمد لوستل نه واجب دي نه سنت، دا د ده زوړ قول دی او همدا قول مشهور شوی دی. دویم قول دا دی چه د احتیاط له مخې په سرّي لمانځه کښې د سورۀ فاتحه قرائت مستحسن دی. مکروه نه دی. په دې باندې د صاحبِ تکمیل دا حاشیه چه "یاره خلکو دې رجوع لره «دویم قول» مشهورولو ته پرې نه ښود چه له وجې ئې په مسلمانانو کښې ډلبازی، طبقه بندي قائمې شوې" سر تر پایه لغو او بې ځایه ده ځکه چه لومړی خو په دواړو قولونو کښې کوم تعارض نشته. په لومړي قول کښې د وجوب او سنت والي نفي وه په دویم قول کښې د استحباب ذکر دی څوک دې ووائي چه په دغو دواړو کښې تعارض څه شی دی؟ بیا په هدایه کښې چه د حنفي فقهې مشهور کتاب او په درس کښې داخل دی دا دویم قول مذکور دی چه امام محمد د احتیاط له مخې په سرّي لمونځونو کښې د سورۀ فاتحه قرائت مستحسن بللی دی. له هدایې څخه زیات بل کوم کتاب په حنفي فقه کښې مشهور دی؟ نو دا خبره غلطه ده چه خلکو دویم قول مشهورولو ته پرې نه ښود.

بیا شاه ولی الله په حجة الله البالغه کښې او حضرت فقیه الامت، رشید الملّت، قطب الارشاد مولانا رشید احمد ګنګوهي رحمه الله پخپل کتاب سبیل الرشاد کښې د دې تصریح کړې ده چه د جهري لمانځه په سکتاتو کښې قرائت خلف الامام جائز دی. له امام سره یو ځای په جهري لمانځه

---

۱ ـ په دې سلسله کښې تر ټولو مخکښې د غور وړ خبره دا ده چه د تذکره مؤلف په ثقاهت کښې څه مقام لري؟» او له هغه څخه واخله تر نظام الدین رحمه الله پورې ئې د سند څه حال دی؟ رشید احمد

کښې قرائت کول د مقتدي لپاره منع دي.
د صاحبِ تکمیل دا وینا چه "کله امام صاحب خپل یو قول په غلط ګڼلو سره له هغه څخه رجوع کړی دی بیا هغه قول د هغه په ذمې باندې لګول او په هغه باندې د مباحثې او مناظرې په کولو سره په مسلمانانو کښې درز اچول تر کومه ځایه دیانت او انصاف دی الخ"؟ سر تر پایه لغو او بې ځایه دی. امام صاحب له خپل لومړي قول څخه رجوع نه ده کړې او نه د رجوع ضرورت وو. څکه چه د امام احمد بن حنبل له قول څخه څرګنده شوې ده چه "په اهل اسلام کښې هیڅوک هم د دې قائل نه دی چه کله امام قرائت کوي په دې وخت کښې د مقتدي په ذمې باندې قرائت واجب دی. او که چیرته قرائت و نه کړي نو لمونځ ئې فاسد دی".

## د اهل حدیثو ډله د ډله ایز فساد باني ده

د امام صاحب له دویم قول څخه یواځې په سرّي لمونځونو کښې د احتیاط له مخې د سورهٔ فاتحه قرائت ته مستحسن او مستحب ویلي دي لکه څرنګه چه صاحب د هدایې له امام محمد څخه نقل کړی دی او دا د دویم قول معارض (ټکر) نه دی او د شروحو په ټولو کتابونو کښې دا قول راغلی دی. پاتې شوه په دې مسئله کښې مناظرې او مباحثې کول. نو د دې ابتداء د اهل حدیث د ډلې له خوا شوې ده. هغوی د صاحبِ تکمیل البرهان غوندې د حنفیانو لمونځونو ته د فاسد. باطل. بیکاره په ویلو سره آسمان په سر باندې کیښود. محض د دې لپاره چه هغوی په امام پسې سورهٔ فاتحه نه لولي نو د احنافو علماوو ته د دې د ځواب ورکولو ضرورت پیښ شو لکه څرنګه چه په دې وخت کښې ما ناچیز ته د تکمیل البرهان په ځواب کښې د قلم پورته کولو ضرورت پیدا شو. که چیرته د اهل حدیث ډلې په اختلافي مسائلو کښې په دومره شدّت سره نزاع او اختلاف نه کولی نو حنفیانو ته د مناظرې او مباحثې بالکل ضرورت نه وو. آخر په مکې او مدینې کښې خو هم شافعیان موجود دي کوم چه د سورهٔ فاتحه قرائت په امام پسې فرض بولي لیکن د حنفیانو لمونځونو ته خو باطل او فاسد نه وائي. هغوی په دې پوهیږي چه مسئله اختلافي ده، له حنفیانو سره هم له قرآن، حدیثو او د سلف او خلف له عمل څخه دلائل موجود دي. د دې لپاره هیڅوک دا حق نه لري چه د یوه او بل مسلک باطل او لمونځونه ئې فاسد وبولي. له دې وجې هلته په دغو مسائلو کښې د مناظرې او مباحثې ضرورت هیڅکله نه دی پیدا شوی. په پاکستان یا هندوستان کښې د دې ضرورت د اهل حدیث د ډلې د بې ځایه خولې د استعمالولو له وجې مخې ته راغله و الهادی اعلم.

## علامه عيني رحمه الله

د غیث الغمام په حوالې سره د عيني چه کوم قول د بخاري له شرحې څخه را نقل شوی دی په هغه کښې خو دا لفظ شته **(على ان بعض اصحابنا استحسنوا ذلك على سبيل الاحتياط في جميع الصلوات و منهم استحسنها في غير الجهرية و منهم من رأى ذلك اذا كان الامام لحانا)** (ج۲، ص۱۲) (بیا زمونږ ځینو اصحابو (حنفیه وو) دې لره (قرائت خلف الامام) د احتیاط له مخې په ټولو لمونځونو کښې او ځینو په سرّي لمونځونو کښې او ځینو د لحان امام (غلط قرائت کوونکي امام) پسې قرائت مستحسن ګڼلی دی) آه. لیکن واجب ئې نه دی بللی او په جهري لمونځونو کښې د امام له قرائت سره مقتدي ته د قرائت کولو اجازه نه ده ورکړ شوې بلکه د هغه له قرائت څخه مخکښې یا وروسته ئې اجازه ورکړې ده تر څو چه د انصات (چُپوالي) فرض فوت نه شي ځکه چه د مقتدي په ذمې باندې د امام د قرائت په وخت کښې د قرائت اوریدل او خاموشه پاتې کیدل واجب دي د کوم چه علامه عیني په همدې ځای باندې تصریح کړې ده. لیکن د علامه عیني په عبارت کښې په دې ځای باندې د **(عليه فقهاء الحجاز والشام)** لفظ نشته چه (د حجاز او شام فقهاء کرام هم په همدې باندې دي) که چیرته په غیث الغمام کښې په دې ځای باندې دا لفظ موجود دی نو د علامه عیني خوا ته ئې نسبت صحیح نه دی. او که چیرته په دې کښې هم دا لفظ نه وي نو دا د صاحب تکمیل ایجاد دی. د علامه عیني په عبارت کښې چه په کوم ځای کښې د حجاز او شام د فقهاوو ذکر دی هغه د صاحب تکمیل لپاره مفید (ګټور) نه بلکه مضر (تاواني) دی. د هغه عبارت ملاحظه کړئ:

**و قال الثوري و الاوزاعي في رواية و ابو حنيفة و ابو يوسف و محمد و احمد في رواية و عبد الله بن وهب و الاشهب لا يقرأ المؤتم شيئاً من القرآن ولا بفاتحة الكتاب في شيء من الصلوة وهو قول ابن المسيب وجماعة من التابعين وفقهاء الحجاز و الشام على انه لا يقرأ معه فيما يجهر به وان لم يسمعه ويقرأ فيما يسر فيه الامام اه**

**(ج۲،ص۱۱)**

(د امام سفیان ثوري رحمه الله او امام اوزاعي په یوه روایت کښې او د امام ابو حنیفه، ابو یوسف، امام محمد او امام احمد په یوه روایت کښې او د عبد الله بن وهب او اشهب قول دا دی چه مقتدي دې په امام پسې قرائت نه کوي. سورۂ فاتحه دې په هیڅ یوه لمانځه کښې نه وائي او همدا قول د سعید بن المسیب او د تابعینو د پوره یوې ډلې قول دی او د حجاز او شام د فقهاوو مسلک دا دی چه مقتدي دې په جهري لمونځونو کښې په امام پسې قرائت نه کوي اګر که د امام قرائت اوري هم نه او په سرّي لمونځونو کښې دې قرائت کوي

## مولانا عبد الحی، شیخ التسلیم او ملا جیون

تر دې وروسته ئې د مولانا عبد الحی لکهنوي او شیخ التسلیم او داسې نورو په حوالې سره څه لیکلي دي. د ټولو په اقوالو کښې یواځې په سرّي لمونځونو کښې د قرائت خلف الامام استحسان والی دی چنانچه د مولانا عبد الحی او ملا جیون عالمګیر استاذ په عبارتونو کښې د امام محمد د قول حواله په صراحت سره موجوده ده او د امام محمد په قول کښې د سرّي لمونځونو قید په صراحت سره راغلی دی او په دې کښې د هیڅ اختلاف نشته بلکه مونږ خو په جهري لمونځونو کښې هم د امام له قرائت څخه مخکښې یا وروسته مقتدي ته د سورة فاتحه د قرائت اجازه ورکوو. البته له امام سره ئې یو ځای له قرائت حخه منع کوو چه په دې صورت کښې د انصات فرض له منځه ځي کوم چه په قرآن او حدیث کښې تاکید پرې شوی دی.

د امام رازي د اقول چه "امام ابو حنیفه په دې خبره کښې له مونږ سره موافقت کړی دی چه په امام پسچې د الحمد په ویلو سره لمونځ نه باطلیږي" آه. د صاحب تکمیل لپاره ګټور نه دی ځکه چه د الحمد لله د ویلو په صورت کښې د لمانځه په نه باطلیدو سره د قرائت خلف الامام استحباب یا وجوب یو هم نه ثابتیږي.

تر دې وروسته د دخل مقدر د دفع په توګه صاحبِ تکمیل د ملا علي قاري او امام ابن الهمام اقوال د مولانا عبد الحی لکهنوي په عبارت سره رد کړی دی. اهل علم پوهیږي چه د امام ابن الهمام او ملا علي قاري په مخکښې مولانا عبد الحی څه درجه لري؟ په دې باندې د صاحبِ تکمیل خوشحاله کیدل او په حنفي علماوو باندې الزام لګول پرته له **(الغریق تتثبت بالحشیش)** (اوبو اخیستی وښو ته هم لاس اچوي) څخه نور څه دي؟

## د صاحبِ تکمیل بې ځایه خوله اچول

تر دې وروسته د هغه دا وینا چه "زیات افسوس په هغو حنفي علماوو باندې راځي چه د صحاح سته وو احادیثو ته نه متوجه کیږي بلکه د مذهبي حمیّت له وجې موضوعي روایتونه. مکذوب. مختلف او باطل آثار پخپلو تصنیفاتو. لیکنو او حاشیو کښې راوړي او خپل عوام او جهلاء په فتنه کښې اچوي" آه.

دا د کلام یا خبرې هغه طرز دی کوم چه د اهل حدیث د ډلې د زیاتره غړیو شیوه او طریقه ده دا خلک په فروعي مسائلو کښې په سختی سره جګړه کوونکي دي. آیا صاحبِ تکمیل دا نه دي لیدلي چه حنفي علماء کرام له قرائت خلف الامام څخه د منع کولو لپاره تر ټولو مخکښې د قرآنکریم دا **(وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا)** آیت وړاندې کوي او مونږ ویلي دي چه په اجماع

او اتفاق سره دا آیت د قرائت خلف الامام په باره کښې نازل شوی دی. تر دې وروسته صحیح حدیث (انما جعل الامام ليؤتم به فاذا كبر فكبروا واذا قرأ فانصتوا). «رسول الله ﷺ فرمایلي دي چه امام د دې لپاره ټاکل شوی دی چه د هغه اتباع وشي نو چه کله هغه تکبیر وائي تاسو تکبیر وایئ او چه کله قرائت کوي نو خاموشه اوسئ» دې روایت لره امام مسلم صحیح ګڼلی دی او ابو داؤد له صحیح سند سره دا روایت کړی دی او په دلیل کښې ئې راوړي. نو آیا مسلم او ابو داؤد له صحاح ستّه وو څخه نه دي؟ بیا هغه له صحیح حدیث چه (من كان له امام فقراءته له قراءة) څخه استدلال کوي. دا حدیث ابن ماجه په سنن کښې، احمد بن منیع پخپل مسند کښې امام محمد پخپل موطاء او کتاب الآثار کښې روایت کړی دی. بیا له موطاء امام مالک او ترمذي او مصنف ابني ابي شیبه او مصنف عبد الرزاق اوداسې نورو څخه د صحابه وو او تابعینو د آثارو په بیانولو سره د سلفو او خلفو په تعامل سره د خپل مذهب تائید بیانوي. نو آیا د صاحبِ تکمیل په نزد د موطاء امام مالک او ترمذي او داسې نورو دا حدیثونه موضوعي، مکذوب «دروغجن» او باطل دي؟ څه نا څه خو له خدای څخه ویره، شرم او حیا په کولو سره خبره باید وشي. او دا ټوله زړورتیا، بیباکي په دې بناء باندې ده چه پخپله صاحبِ تکمیل پخپلو دلائلو کښې د بیهقي له جزء القرائت څخه ډیر احادیث او آثار را نقل کړې دي چه سند ئې ضعیف، لغوه او باطل دی لکه څرنګه چه په تیرو شویو پاڼو کښې په تفصیل سره تیر شول.

تر دې وروسته ئې د مولانا عبد الحی لکهنوي دا قول را نقل کړی چه "ځینو[1] فقهاوو چه دا ویلي دي چه له قرائت خلف الامام څخه د مقتدي لمونځ باطلیږي دا قول شاذ او مردود دی. له امام محمد څخه روایت دی چه هغه د مقتدي لپاره په سرّي لمونځونو کښې د فاتحه قرائت مستحسن بللی دی" الخ. عوامو ته ئې دا دوکه ورکړې ده چه مولانا عبد الحی او امام محمد د مقتدي په ذمې باندې د فاتحه قرائت واجب بولي. حالانکه د مولانا عبد الحی په عبارت کښې د سرّي لمونځونو تصریح موجوده ده او په جهري لمونځونو کښې د امام د سکتاتو قید هم مذکور دی تر څو چه په استماع او انصات کښې خلل واقع نه شي

تر دې وروسته چه له کومو احنافو علماوو څخه د قرائت خلف الامام جواز را نقل شوی دی هغه ټول په سرّي لمونځونو او په جهري لمونځونو کښې د امام له سکتاتو سره مقید دی. په حنفي علماوو کښې له امام سره یو ځای د انصات د فرض په پریښودلو سره د قرائت د جواز هیڅوک هم قائل نه دي

[1] - تفوه ترجمه صاحب تکمیل ډیر زیاتی کړی دی. دا بې ادبي او ګستاخي دې هغه ته مبارکه وي. د تفوه د لفظ معنی له تکلم او نطق څخه زیاته نه ده.

## د صاحب تکمیل په حنفي دلائلو باندې نیوکې

تر دې وروسته صاحبِ تکمیل د قرائت خلف الامام د مانعینو له دلائلو سره هم تعرض کړی دی او تر ټولو مخکښې ئې د قرآنکریم د دې (وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا) (چه کله قرآنکریم ویل کیږي نو تاسو ئې واورئ او چُپ و اوسئ) آیت په وړاندې کولو سره له ځانه ځواب ورکړی دی لیکن دا څه ضروري نه ده چه د صاحبِ تکمیل په ځواب سره د استدلال کوونکو خلکو تشفي او تسلي هم وشي. ځواب خو هر سړی د هر دلیل ورکولی شي نو دا څه ضروري ده چه هر ځواب دې صحیح وي؟ بیا هغه خلک کوم چه د قرآنکریم له دې آیت څخه استدلال کوي په پرې شوې خوله مذهب پرست، هڅوکي خرخوونکي او داسې نورو بې ځایه کلماتو سره یادول او د هغوی دلائل موضوعي، مکذوب بلل د کوم ځای تهذیب، دیانت او انصاف دی؟ مونږ مخکښې ویلي دي چه په اتفاق سره دا آیت له قرائت خلف الامام څخه د منع کولو په اړه نازل شوی دی. امام احمد بن حنبل د دې تصریح کړې ده او له تفسیر طبري او داسې نورو څخه مو ډیر آثار په تیرو شویو پاڼو کښې په صحیح او حسن سند سره نقل کړي دي.

له کومو څخه چه دا خبره واضحه شوې ده چه خلکو مخکښې قرائت کاوه په هغه باندې دا آیت نازل شو. د صاحبِ تکمیل دا وینا چه "احناف ورونه د فاتحه خلف الامام د لوستلو احادیث له دې آیت سره د ټکر په ګڼلو هغه احادیث نه مني الخ" بالکل غلطه ده بلکه مونږ دا احادیث په امام یا منفرد باندې محمولوو او مقتدي د امام د قرائت له وجې په قاریانو کښې شمارو. د قرائت تارک ئې نه بولو ځکه چه د مسلم او ابو داؤد صحیح حدیث (اذا قرأ الامام فانصتوا) موجود دی. چه (کله امام قرائت کوي نو تاسو خاموشه و اوسئ) او په ابن ماجه. موطاء امام محمد او د احمد بن منیع په مسند کښې صحیح حدیث موجود دی. (من کان له امام فقراءته له قراءة) (کوم سړی چه له امام سره وي د امام قرائت د هغه لپاره کافي دی) حنفیان د حضرت عباده صحیح حدیث هیڅکله نه پریږدي بلکه دا هم مني او د قرآنکریم آیت او صحیح حدیث (اذا قرأ فانصتوا) او (من کان له امام فقراءته له قراءة) ټول سره یو ځای کوي دا وائي چه په جهري لمونځونو کښې د امام ل قرائت سره قرائت کول منع دي، له امام څخه مخکښې یا وروسته د امام په سکته کښې او په سرّي لمونځونو کښې قرائت خلف الامام جائز یا مستحسن دی لیکن صاحبِ تکمیل او ډله ئې پخپله د قرآن او حدیثو تارکین دي کوم چه په جهري لمونځونو کښې د امام له قرائت سره یو ځای قرائت ته واجب وائي او د صحیح حدیث (اذا قرأ فانصتوا) او د خداوندي حکم (وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا) صریح یا ښکاره مخالفت کوي.

## د حنفيه وو په قرآني دليل باندې نيوكه

د حنفيه وو د دې دليل يو ځواب ده داسې ورکړی دی چه د قرائت خلف الامام احاديث له دې آيت سره ټکر نه دي بلکه مخصص ئي دي او د کتاب تخصيص په سنت سره جائز دی په داسې حال کښې چه حديث متواتر وي او د **(لا صلوٰة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب)** حديث په يقيني توګه متواتر حديث دی لکه څرنګه چه امام بخاري په جزء القرائت کښې فرمايلي دي **(تواتر الخبر عن رسول الله ﷺ لا صلوٰة الا بقراءة ام القرآن)**. (د رسول الله ﷺ دا حديث متواتر دی چه لمونځ نه کيږي مګر د سورۂ فاتحه له قرائت سره)

سوال له آسمانه او ځواب له پړي دې ته وائي خبره په قرائت خلف الامام کښې ده او تواتر د سورۂ فاتحه د قرائت بيانوي. مونږ په څو څو ځله ويلي دي چه د سورۂ فاتحه د قرائت په واجب والي کښې د هيچا اختلاف او نزاع نشته. خبره په دې کښې ده چه په امام پسې مقتدي ته د سورۂ فاتحه لوستل واجب دي او که نه؟ او د امام قرائت د هغه لپاره کافي دی او که نه؟ مونږ وايو چه د سورۂ فاتحه قرائت په لمانځه کښې واجب دی ليکن د امام قرائت د مقتدي لپاره کافي دی هغه په دې حالت کښې د قرائت پرېښودونکی نه دی بلکه د قاري (لوستونکي) په مرتبه کښې دی او د دغو دواړو مقدماتو په صحيحو احاديثو سره ثبوتونه څو څو ځله مخکښې تير شول. پس که چيرته صاحبِ تکميل همت لري نو له رسول الله ﷺ څخه دې د قرائت خلف الامام تواتر ثابت کړي. محض د سورۂ فاتحه د قرائت د تواتر په بيانولو سره عوامو ته د قرائت خلف الامام مغالطه ورکول يواځې او يواځې دوکه ده.

بيا د حنفيه وو په نزد مشهور او متواتر حديث هغه دی کوم چه تابعينو په اتفاق سره قبول کړی دی او په دې مسئله کښې د تابعينو اختلاف دی نو دې حديث ته متواتر يا مشهور نه شي ويل کيدلی. علامه عيني په شرح د بخاري کښې فرمائي:

**فان قلت هٰذا الحديث مشهور فتجوز الزيادة بمثله قلت لا نسلم انه مشهور لان المشهور ما تلقاه التابعون بالقبول وقد اختلف التابعون فى هٰذه المسألة ولئن سلمنا انه مشهور فالزيادة بالخبر المشهور انما تجوز اذا كان محكما اما اذا كان محتملا فلا وهٰذا الحديث محتمل لان مثله يستعمل النفى الجواز ويستعمل لنفى الفضيلة كقوله ﷺ لا صلوٰة لجار المسجد الا فى المسجد. (ولا صلوٰة بحضرة طعام. (رواه مسلم ج٢، ص١١)**

(که چيرته تاسو ووايئ چه دا حديث مشهور دی او په دې سره زياتوالی په کتاب الله باندې جائز دی نو زه وايم چه مونږ د دې مشهوروالی نه منو ځکه چه مشهور هغه دی چه تابعينو قبول کړی وي او په دې مسئله کښې د تابعينو تر منځ اختلاف دی او که چيرته و منل شي چه دا حديث

مشهور دی نو په مشهور حدیث سره په کتاب الله باندې زیاتوالی په هغه وخت کښې جائز دی چه هغه (پخپل مفهوم او مدلول کښې) محکم وي. اوکه چیرته محتمل وي نو (په هغه سره په کتاب الله باندې زیاتوالی جائز) نه دی او دا حدیث چه **(لاصلوٰة الابقراءة ام القرآن)** محتمل دی ځکه چه دا ډول لفظ کله کله د جواز د نفی (او عدم صحت) لپاره استعمالیږي او کله کله د فضیلت د نفی لپاره لکه څرنګه چه د رسول الله ﷺ ارشاد دی چه د جومات د ګاونډي لمونځ پرته له جومات څخه بل ځای نه کیږي (د دې مطلب په اتفاق سره دا دی چه له جومات څخه پرته ادا شوی لمونځ به کامل نه وي دا معنی ئې نه ده چه لمونځ به ئې با لکل صحیح نه وي) او (همدارنګه د ده ارشاد دی) چه د خوراک مخته لمونځ نه کیږي دې لره مسلم روایت کړی دی آه. د دې هم په اجماع سره دا مطلب دی چه کله د وږي سړي مخته خوراک راشي په دې وخت کښې د خوراک په پرېښودلو سره لمونځ وکړي نو لمونځ به ئې کامل نه وي دا مراد هیڅکله نه دی چه لمونځ ئې صحیح کیږي نه

بیا دا حدیث له قرائت خلف الامام سره هیڅ تعلق نه لري په دې کښې یواځې د سورهٔ فاتحه د قرائت ذکر دی او دې ته مونږ هم واجب وایو لیکن په مقتدي باندې ئې واجب نه بولو ځکه چه د قرآن په آیت او صحیحو حدیثونو کښې مقتدي ته د خاموش اوسیدلو صریح حکم دی چه خلاف ورزي ئې جائزه نه دي. له دې تقریر څخه د صاحبِ تکمیل د دې خبرې ځواب هم وشو چه "دا آیت مکّي دی او د سورهٔ فاتحه د قرائت حکم مقتدي ته نبي علیه الصلوٰة و السلام په مدینه منوره کښې ورکړی دی" پس آیا مقدم النزول (لومړی را نازل شوی آیت) د کوم مؤخر الافتراض (کوم شی چه په آخر کښې فرض شوی وي) لپاره ناسخ کیدلی شي؟ له هغه څخه دې ځوک پوښتنه وکړي چه په مدینهٔ طیبه کښې په کوم حدیث کښې ئې مقتدي ته د سورهٔ فاتحه د قرائت حکم ورکړی دی؟ که چیرته د حضرت عباده حدیث **(لا تفعلوا الا بأم القرآن)** ئې مراد وي نو مونږ ویلي دي چه له دې څخه وجوب هغه ځوک ثابتولی شي چه د عربي ژبې له اصولو او قواعدو څخه خبر نه وي او که نه نو هر پوه لرونکی فقیه په دې پوهیږي چه تر نهی وروسته له استثناء څخه اباحت مستفاد کیږي. نه دا چه وجوب ثابتیږي. بیا د همدې حدیث الفاظ په ابو داؤد کښې په دې ډول دی **(ان کنتم لا بد فاعلین فلا تفعلوا الا بأم الکتاب)** (که چیرته تاسو په امام پسې خامخا قرائت کول غواړئ نو تر سورهٔ فاتحه بغیر به څه مه وایئ) له دې څخه هر عام سړی هم د اباحت مراد اخلي. وجوب ترې نه شي اخیستل کیدلی

بیا ئې له تفسیر فتح البیان څخه چه کوم شی را نقل کړی دی چه "په صحیح البخاري. صحیح المسلم او داسې نورو په حدیثونو کښې په امام پسې د سورهٔ فاتحه د لوستلو حکم موجود دی الخ"

لوی جرأت دی، د بخاري او مسلم په هیڅ یوه حدیث کښې هم د قرائت خلف الامام حکم نشته صاحبِ تکمیل البرهان باید له خدای څخه وویریږي رسول الله ﷺ په هیڅ یوه حدیث کښې هم هیڅکله دا نه دي فرمایلي چه مقتدیان باید په امام پسې قرائت وکړي. بلکه د صحیح المسلم په یوه حدیث کښې ئې دا حکم ورکړی دی (اذا قرأ الامام فانصتوا) (چه کله امام قرائت وکړي نو تاسو خاموشه و اوسئ) او دې حدیث ته امام احمد، مسلم، د طبري مفسر، علامه ابن تیمیه او داسې نورو صحیح ویلي دي او د عباده په حدیث کښې د (لا تفعلوا الا بأم القرآن) زیاتوالي لره امام احمد، یحیی بن معین او د محدثینو یوې ډلې ضعیف بللی دی لکه څرنګه چه د کتاب المغني او علامه ابن تیمیه د تنوع العبادات د رسالې په حوالې سره پورته تیر شول او د عباده د حدیث چه کومه برخه صحیح ده هغه له قرائت خلف الامام سره هیڅ واسطه نه لري هغه د امام او منفر په اړه ده لکه څرنګه چه پخپله د حدیث راوي سفیان بن عیینه فرمایلي دي (قال هذا اذا كان وحده) (دا د هغه سړي په باره کښې ده څوک چه یواځې لمونځ کوي)

تر دې وروسته صاحبِ تکمیل د آیت او (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا) کښې د تعارض (ټکر) په ثابتولو سره د دواړو د ساقطولو کوشش کړی دی او د نور الانوار او توضیح او تلویح حواله ئې هم ورکړې ده حالانکه د تعارض لپاره د محل (ځای) اتحاد (یو والی) شرط دی کوم چه دلته وجود نه لري ځکه چه د (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا) آیت په اتفاق سره د قرائت خلف الامام په اړه دی او د (فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ) آیت د منفرد د لمانځه په اړه دی ځکه چه دا آیت د قیام اللیل په باره کښې نازل شوی دی او قیام اللیل په جماعت سره نه ادا کیږي یواځې ادا کیږي طلباء د تعارض په مطلب باندې د پوهولو لپاره د مثال په توګه په نور الانوار او داسې نور کښې دا آیتونه وړاندې کړی شوي دي چه شانِ نزول مه ګورئ نو په ظاهره کښې به تعارض معلوم شي او نه په حقیقت کښې تعارض ثابتول ئې مقصود نه دی لکه څرنګه چه د فقهاوو له طرزِ عمل څخه څرګنده ده چه هغوی یو شان له دواړو آیتونو څخه استدلال کړی دی. عیني شرح د بخاري ج۱، ص۱۱ ملاحظه کړئ.

بیا په حنفیه وو باندې صاحبِ تکمیل دا الزام لګولی دی چه دا آیت (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا) څخه حنفیه وو د جُمعې د خطبې په وخت غلي اوسیدو ته واجب ویلي دي لیکن دا هم وائي چه کله خطیب د (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا) آیت ووائي نو اوریدونکي دې په پټه سره درود ووائي نو د فاتحه خلف الامام په پټه سره له ویلو څخه ولې خلک منع کوي؟

خواب دا دی چه مونږ څو څو ځله دا ویلي دي چه دا آیت په اتفاق سره د قرائت خلف الامام په

باره کښې نازل شوی دی. د جُمعې خطبه وروسته ورسره ملحقه شوې ده او که نه نو په مکې کښې د جُمعې لمونځ او خطبه چیرته وو؟ پس څومره چه په لمانځه کښې د استماع او انصات تاکید دی په خطبه کښې دومره نشته د دې لپاره ځینو فقهاوو پر دې بناء باندې د درود ویلو اجازه ورکړې ده چه په خطبې کښې له امام څخه د کوم ضرورت په وخت خبرې کول یا د دُعا غوښتنه کول جائز دي او امام ته هم له مقتدیانو سره خبرې کول او د کومې ضروري خبرې پوښتنه کول یا امر با لمعروف او نهی عن المنکر کول جائز دي. او په دې وخت کښې مقتدي د امام د خبرې ځواب هم ورکولی شي لکه څرنګه چه د سلیک غطفاني له واقعې څخه چه نبي کریمﷺ د خطبې په وخت کښې له هغه سره خبره وکړه او یو ځل نبي کریمﷺ ته پ خطبه کښې د باران د دُعا په باره کښې خبره وشوه او د حضرت عمرؓ له واقعې څخه چه په خطبه کښې ئې حضرت عثمانؓ ته د ځنډ له وجې تنبیه (خبرداري) ورکړې وو او هغه په ځواب کښې خپل عذر بیان کړی وو. (بخاري) ښکاره خبره ده چه دا له خطبې سره منافي یا ټکر نه دی ګڼل شوی. همدارنګه چه کله خطیب د خطبې په منځ کښې حکم کوي چه په نبي کریمﷺ باندې درود ولیږئ نو په دې حکم باندې عمل کول هم د خطبې منافي نه دی. په پټه سره درود ویلی شي نه په لوړ آواز سره. او ځینو حنفي فقهاوو په دې صورت کښې هم په ژبې سره د درود شریف د ویلو اجازه نه ده ورکړې یوازې ئې په زړه کښې د ویلو اجازه ورکړې ده. نو اشکال پاتې نه شو.

یو الزام ئې دا لګولی دی چه -کله د سهار لمونځ شروع شوی وي په دې حالت کښې د امام د قرائت په وخت کښې د حنفیانو په نزد د صف شا ته د سُنتو ادا کول جائز دي او په **(وإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ)** سره دا ممنوع نه بولي. نو په دې آیت سره په امام پسې د سورهٔ فاتحه قرائت ولې ممنوع دی؟

ځواب دا دی چه د عبد الله بن عباس او عبد الله بن مغفل روایتونه پورته تیر شول چه په هغو کښې تصریح شوې ده چه دا آیت یوازې د مقتدي په حق کښې ده چه هغه به قرائت خلف الامام نه کوي بلکه غلی به اوسي. له دې پرته په نورو ځایونو کښې که چیرته قرآنکریم لوستل کیږي نو اوریدل او غلي اوسیدل فرض نه دي. ځینو حنفي فقهاوو دا قول غوره کړی دی د هغو په نزد د سهار د لمانځه په وخت په جومات کښې یوې خوا ته د سهار سنّت ادا کول جائز دي ځکه چه دا سړی تر اوسه مقتدي نه دی او ځینو فقهاوو د لفظ د عموم پر بناء باندې په داسې ځای کښې ئې د سهار د سنتو ادا کول منع کړي دي چیرته چه د امام قرائت اوریدل کیږي. هغوی وائي چه د جومات په دروازه کښې یا له جومات څخه د باندې سنّت باید ادا شي او بیا په جماعت کښې شریک شي. پاتې شوه د مقتدي **(سبحانك اللّٰهم)** لوستل. په دې کښې د حنفیانو صحیح قول دا دی چه په جهري لمانځه کښې د امام د قرائت په وخت مقتدي ته **(سبحانك اللّٰهم)** لوستل جائز نه دي بلکه

تکبير تحريمه دې وائي او چُپ دې ودرېږي او که موقع په لاس ورشي نو د امام په سکتاتو کښې دې (سبحانك اللّٰهم) لولي او د امام په سکتاتو کښې سورهٔ فاتحه هم لوستلی شي لکه څرنګه چه څو څو خله بيان شو

پاتې شوه دا چه کله امام جهر کوي په دې وخت کښې بايد د الله اکبر په ويلو سره هم لمونځ شروع نه شي د دې ځواب دا دی چه تکبير تحريمه د لمانځه شرط دی رکن ئې نه دی. نو د تکبير تحريمه په وخت دا سړی مقتدي نه دی تر تکبير تحريمه وروسته مقتدي جوړېږي او په همدې وخت کښې د قرآن اوريدل او خاموش اوسيدل واجبيږي له دې څخه مخکښې نه واجبيږي بله دا چه په دې باندې د ټولو اجماع هم ده چه د امام د قرائت له اوريدو سره سره د تکبير تحريمه په ويلو سره په لمانځه کښې شريکيدل صحيح دي پس صاحبِ تکميل دې بايد پخپلې پوهې باندې ماتم وکړي

او د امام بخاري له جزء القرائت څخه چه کوم الزام را نقل شوی دی چه په مدارسو او مکاتبو کښې استاذ يوه هلک ته سبق ورکوي او پاتې هلکان هم قرائت کوي هلته د ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ پر بناء باندې هلکان نه خاموشه کيږي الخ

د دې خو يو ځواب هغه دی کوم چه پورته تير شو چه دا آيت د مقتدي په حق کښې دی د غير مقتدي په حق کښې نه دی. دويم دا چه هلکان په لويانو باندې قياس کول هم غلط دي. هلکان خو بې اودسه هم قرآنکريم لوستلی شي. هغوی مرفوع القلم بلل شوي دي

له دې وروسته ئې دعوی کړې ده چه د انصات معنی د مطلق چُپ والي نه ده بلکه معنی ئې سکوت سره له اوريدو ده نو له دې څخه هم د حنفيانو مطلب نه شي حاصليدلی ځکه چه په دې سره په جهري لمانځه کښې به يواځې د امام د قرائت په وخت کښې ممانعت وي د امام په سکتاتو کښې د قرائت کولو ممانعت هيڅکله له دې آيت څخه نه ثابتيږي حالانکه د حنفيانو دعوی ده چه په جهري لمانځه کښې د امام د سکتاتو په وخت هم قرائت ناجائز او حرام دی الخ

دا په حنفيانو باندې افتراء ده. کوم خلک چه د امام د سکتاتو په رعايتولو سره سورهٔ فاتحه خلف الامام ولوستلی شي دې ته هيڅوا هم ناجائز او حرام نه دي ويلي. همدارنګه په سرّي لمونځونو کښې هم د سورهٔ فاتحه قرائت خلف الامام سوکه سوکه جائز دی په داسې حال کښې چه له امام سره منازعت او هغه ته د تشويش اچولو سبب و نه ګرځي لکه څرنګه چه څو څو خله تير شول

له دې وروسته ئې دعوه کړې ده چه کله امام په جهر سره قرائت وکړي او مقتدي هم سوکه سوکه هغه الفاظ ولولي نو په دې کښې په ښه توګه د استماع او انصات حکم هم په ځای کيږي الخ

دا محض دعوی ده کومه چه قابلِ قبوله نه ده. رسول الله ﷺ د وحی د نزول په وخت خپلو شونډو

مبارکو ته حرکت ورکاوه او یو ځای ئې ورسره وایه. جهر ئې نه کاوه. حق تعالی له دې څخه هم منع کړ او و ئې فرمایل چه لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ.

(له قرآن سره خپلې ژبې ته حرکت مه ورکوه د دې لپاره چه زر دې یاد شي، دې لره ستا په زړه کښې ځایول او په تا باندې د دې لوستل زمونږ په ذمه باندې دي. نو کله چه مونږ (د جبرائیل علیه السلام) په واسطه دا وایو نو د هغه د قرائت اتباع وکړئ). د دې په تفسیر کښې عبد الله بن عباس فرمائي (فاستمع له وانصت) (چه کله وحی نازلیږي نو هغه واورئ او چُپ و اوسئ)

له دې وروسته به هغه خپله ژبه نه خوځوله او غلی به اوسیده. ملاحظه کړی بخاري شریف ج۱. ص۳. معلومه شوه چه د قرآن د قرائت په وخت کښې ژبې ته حرکت ورکول اتباع نه دی او مقتدي ته د امام د اتباع امر ورکړ شوی دی. (انما جعل الامام لیؤتم به) (چه امام د دې لپاره جوړ شوی دی چه د هغه اتباع وشي) او د ابن عباس له حدیث څخه څرګنده شوه چه د قرائت اتباع دا دی چه با لکل سړی غلی و اوسي. ژبې ته حرکت ور نه کړي او په لغت کښې هم انصات صرف سکوت ته وائي. البته که چیرته (انصت له) وویل شي نو د دې دوه معناوې دي. یو غلی اوسیدل. دویم د غوږ په لګولو سره اوریدل. او چه کله انصات مطلق وي نو معنی ئې یواځې د سکوت (چُپوالي) ده ملاحظه کړی قاموس ج۱. ص۹۸. پس له امام سره یو ځای قرائت کول د امام د اتباع هم خلاف ده او د انصات هم خلاف ده.

تر دې وروسته ئې دا الزام لګولی دی چه له نبي کریم ﷺ څخه په لمانځه کښې څو سکتې ثابتې دي که چیرته مقتدي په نوموړي سکتاتو کښې سورهٔ فاتحه ولولي نو د (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ) آیت مخالف به نه وي.

ځواب ښکاره دی چه دې صورت ته چا ناجائز ویلي دي؟ او دا هم ښکاره ده چه دا سکتات په امام باندې واجب نه دي ځکه چه د وجوب هیڅ دلیل نشته. که چیرته امام سکته و نه کړي نو مقتدي د سورهٔ فاتحه قرائت نه شي کولی. نو نه به مقتدي ګنهګار وي او نه ئې لمونځ باطلیږي.

تر دې وروسته ئې دعوی کړې ده چه دا آیت په امام پسې په زوره زوره د لوستلو په ممانعت کښې نازل شوی دی او له امام رازي څخه نقل کړی دی چه دا قول د امام ابو حنیفه او د هغه د اصحابو دی.

ځواب دا دی چه لکه څرنګه چه په دې عبارت کښې د امام صاحب او د هغه د اصحابو خوا ته پرته له کوم سند د یوه غلط قول نسبت شوی دی همدارنګه دا دعوی هم غلطه ده چه دا آیت په امام پسې په زوره زوره د قرائت کولو په ممانعت کښې نازل شوی دی. خبردار: د صحابه وو په اړه څوک دا ګومان کولی شي چه هغوی په لمانځه کښې په رسول الله ﷺ پسې په زوره زوره شور او غوغا •

کوله. آیا هغوی د لمانځه له حقیقت او په هغه کښې د خشوع او خضوع له ضرورت څخه با لکل خبر نه وو؟

اهلِ حدیث چه کوم په دې ډول بې ځایه خبرې کوي او صحیح حدیثونه ردوي او د قرآن په آیت کښې غلط تاویلونه کوي نو هغوی عامل با لحدیث (په حدیثو عمل کوونکي) شول او حنفیان چه د نصوصو صحیح معناوې بیانوي او په صحیح طریقې باندې عمل کوي هغوی مذهب پرست، هډوکي خرڅوونکي جوړ شول. سبحان الله! دا څه انصاف دی؟ له دغو حضراتو څخه دې یو څوک پوښتنه وکړي چه که چیرته دا آیت په امام پسې په چیغو چیغو د لوستلو په ممانعت کښې نازل شوی وي او په پټه قرائت جائز وي نو د جُمعې په خطبه کښې به هم په زوره خبرې کول منع وي. په څومره اندازه آواز سره به خبرې کول، تسبیح، تکبیر او تهلیل باید ممنوع وي. ځکه چه ټولو علماوو د همدې آیت له مخې په خطبه کښې له خبرې کولو څخه منع کړې ده او پخپله صاحبِ تکمیل هم د دې آیت شانِ نزول خطبه ګڼلې ده. نو آیا دی به د دې قائل وي چه د جُمعې په خطبه کښې د امام د خطبې د اوریدو په وخت کښې خلکو ته بې له چیغې خبرې کول یا ذکر الله، تکبیر، تسبیح او تهلیل جائز دی؟ که چیرته ئې جائز بولي نو دا د اجماع خلاف دی، اهل حدیث هم د دې قائل نه دي او که چیرته ئې جائز نه بولي نو آیا د خطبې درجه تر لمانځه زیاته ده؟ چه په لمانځه کښې سوکه سوکه لوستل جائز او په خطبه کښې حرام دي.

تر دې وروسته ئې دعوی کړې ده چه د سورهٔ فاتحه په عدمِ فرضیت باندې د حنفیه وو له دې آیت څخه استدلال کول د ټولو محدثینو او مفسرینو په خلاف دی. دا هغه مغالطه ده چه کومه چه له شروع څخه تر آخره پورې د صاحبِ تکمیل شیوه (خوی یا طریقه) ده حنفیه وو له دې آیت څخه کله د سورهٔ فاتحه د عدمِ فرضیت استدلال کړی دی؟ له دې څخه خو هغوی د قرائت خلف الامام په عدمِ فرضیت باندې استدلال کوي او په دې کښې جمهور سلف او خلف له دوی سره دي. لکه څرنګه چه د علامه ابن تیمیه له قول څخه څرګنده شوې ده چه د سورهٔ فاتحه په عدمِ فرضیت باندې خو هغوی د ﴿فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ﴾ آیت څخه استدلال کوي او د اعرابي له حدیث څخه د دوی د استدلال تائید کیږي لکه څرنګه چه مخکښې په تفصیلي توګه تیر شول.

تر دې وروسته ئې دعوی کړې ده چه په دا آیت په لمانځه کښې د خبرو کولو په ممانعت کښې نازل شوی دی او د ځینو تابعینو قول ئې را نقل کړی دی چه دا آیت د خطبې په باره کښې نازل شوی دی، د خطبې په وخت ئې خلکو ته د اوریدلو حکم ورکړی دی الخ

د دې خواب تیر شوی دی چه په مکه کښې نه جُمعه قائمه وه او نه خطبه وه د دې لپاره چه کومو حضراتو دا آیت په خطبې پورې تړلی دی د هغو مطلب دا دی چه خطبه ئې له لمانځه سره ملحق کړې دی دا مطلب ئې نه دی چه شانِ نزول ئې یواځې د جُمعې خطبه ده ځکه چه دا آیت په اتفاق سره

مګي دی او په مکې کښې نه جُمعه وه او نه خطبه. او په خطبه کښې سو که خبرې کول يا په پټه سره ذکر و تسبيح کول په اتفاق سره جائز نه دی نو په لمانځه کښې له امام سره سوکه قرائت به څه ډول جائز وي؟ په لمانځه کښې خبرې کول تر هجرت وروسته هم جائز وو. چه کله د سورهٔ بقره آيت (وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ) نازل شو نو له خبرې کولو څخه خلک منع شول (صحيح مسلم) او (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَأَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ) آيت په اتفاق سره مګي دی دا په لمانځه کښې د خبرې کولو په ممانعت باندې محمولول صحيح نه دي. او که نه نو بيا دا لازميږي چه صحابهٔ کرام له ممانعت سره سره هم په عامه توګه په لمانځه کښې خبرې کولې او دا د هغوی له شان څخه ډېره لرې خبره ده او په مدينه منوره کښې صحابهٔ کرامو په عامه توګه قرائت خلف الامام نه کول. يوه يا دوو ناخبرو داسې کړې دی لکه څرنګه چه د حديث له لوستونکو څخه پټه نه ده چه کله له نبي کريم ﷺ پوښتنه وکړه چه په تاسو کښې چا قرائت وکړ نو يو اخې يوه سړي وويل چه ما قرائت وکړ. هغه لره نبي کريم ﷺ منع کړ.

بيا ئې د امام رازي رحمه الله قول را نقل کړی دی چه په دې آيت کښې کفارو ته خطاب دی او که چيرته دا آيت په قرائت خلف الامام باندې محمول کړی شي نو د قرآن سياق او سباق هم ګډوډيږي او ترتيب ئې له منځه ځي الخ.

زه وايم چه د امام احمد بن حنبل قول مخکښې تير شو چه په اتفاق سره دا آيت د لمانځه په اړه (د قرائت خلف الامام څخه په منع کولو کښې) نازل شوی دی نو آيا له احمد بن حنبل او د سلفو له نورو علماوو څخه زيات څوک د قرآن په سياق او سباق باندې پوهيدونکی کيدلی شي؟ بيا له دې آيت څخه مخکښې د لوی خدای ﷻ دا ارشاد دی چه (هٰذَا بَصَآئِرُ لِلنَّاسِ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ) (دا قرآن (پخپل ځای کښې) ګوا که ډير دليلونه دي ستاسو د ربّ له خوا څخه او هدايت او رحمت دی د هغو خلکو لپاره چه ايمان ئې پرې راوړی دی) په دې کښې د اهلِ ايمان او د قرآن ذکر دی. تر دې وروسته (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَأَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ) دی تر دې وروسته (وَاذْكُرْ رَّبَّكَ فِيْ نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَّخِيْفَةً وَّدُوْنَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ وَلَا تَكُنْ مِّنَ الْغٰفِلِيْنَ۝) دی چه هر مسلمان ته د ذکر تاکيد او له غفلت څخه د هغه ممانعت دی. لنډه دا چه د وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ څخه مخکښې هم د ايمان د خاوندانو ذکر دی او وروسته هم د ايمان خاوندانو ته خطاب دی. نو په منع کښې د قرآن د قرائت په متعلق مسلمانانو ته د خطاب په کولو سره د قرآن سياق او سباق څرنګه مختل او ګډوډ شو؟ تر دې آيت مخکښې د قرآن د عظمت (لوړوالي) بيان دی چه هغه د ايمان د خاوندانو لپاره بصائر، هدايت او رحمت دی، تر دې وروسته په يقيني توګه د هغه له عظمت سره دا مناسبه ده چه

کله قرآنکریم «په لمانځه کښې» لوستل کیږي هغه واورئ او غلي و اوسئ تر څو چه په ښه توګه له بصیرت، هدایت او رحمت څخه برخمن شئ. تر دې وروسته حکم دی چه خپل پروردګار سهار او ماښام په زړه کښې له عاجزي، خوف او ویرې سره یاد او له غافلانو څخه مه کیږئ.

ووایئ کوم عقلمند دا ویلی شي چه په دې صورت کښې د قرآن نظم ګډوډ او له منځه تللی دی بلکه چه په انصاف سره وکتل شي نو په کوم ځای کښې چه قرآنکریم د کفارو شور، فریاد او چیغو ذکر کړی دی هلته ئې د رحمت یادونه نه ده کړې بلکه هغوی ته ئې د سخت عذاب اخطار ورکړی دی

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَسْمَعُوا لِهَٰذَا الْقُرْآنِ وَالْغَوْا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُونَ ○ فَلَنُذِيقَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا عَذَابًا شَدِيدًا وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَسْوَأَ الَّذِي كَانُوا يَعْمَلُونَ ○

«یعنې کافر خلک وائي چه دا قرآن مه اورئ او شور او غوغا جوړ کړئ ښائي چه تاسو په دې ډول غالب شئ. مونږ به هغوی ته د سخت عذاب خوند ور وڅکو او هغوی د دې بد حرکت کوم چه دوی ئې کوي سزا ورکړو»

پس د (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ) عنوان هم دا وائي چه په دې کښې مسلمانانو ته خطاب دی، همدوی د قرآن په اوریدلو او خاموشه اوسیدلو باندې د رحمت هیله مند کیدلی شي یواځې کفار به په دې باندې د رحمت اُمیدوار څنګه کیدلی شي تر څو پورې چه ایمان ئې نه وي راوړی؟ پس د تفسیر فتح البیان دا قول هیڅکله صحیح نه دی چه په دې آیت کښې کفارو ته خطاب دی او مسلمانانو ته د خطاب په منلو سره د قرآنکریم په آیتونو کښې ارتباط نه پاتې کیږي بلکه له سیاق او سباق او د آیت له عنوان څخه ښه تره څرګندیږي چه په دې کښې یواځې او یواځې مسلمانانو ته خطاب دی. ټول مفسرین علماوو دا آیت له قرائت خلف الامام څخه په ممانعت باندې محمول کړی دی لکه څرنګه چه د علامه طبري په حوالې سره د تفصیل تر څنګ په لومړي سر کښې لیکلي دي. غالباً کتونکي به اندازه وکړي چه صاحب تکمیل البرهان په څومره بې انصافي او مذهبي عصبیت سره د حنفیانو په دلائلو باندې نیوکې کوي چه د قرآن له کوم آیت څخه چه د سلف او خلف جمهورو علماوو د قرائت خلف الامام په ممانعت باندې استدلال کړی وو هغه د تفسیر فتح البیان او امام رازي په قول سره ردول غواړي. (الغریق یتشبث بالحشیش) دې ته وائي چه اوبو اخیستونکي ته د وښو اسره هم ډیر په نظر ورځي

## د حنفیه وو د حدیثو په دلائلو باندې نیوکې

لومړی دلیل ئې دا بیان کړی دی چه په صحیح البخاري کښې چه کوم روایت له ابو بکره رضي الله عنه

څخه روايت دی چه هغه د رکوع په حالت کښې رسول اللهﷺ پيدا کړ نو په صف کښې له يو ځای کيدو څخه مخکښې ئې رکوع وکړه او د رسول اللهﷺ په حضور کښې ئې د دې خبرې يادونه وکړه هغهﷺ ده ته د رکعت د بيرته را ګرځولو حکم و نه کړ. له دې څخه حنفيه په امام پسې د سورۂ فاتحه په نه فرض کيدو باندې دليل راوړي چه کله په رکوع کښې له امام سره د يو ځای کيدو په صورت کښې (پرته له سورۂ فاتحه) څخه رکعت ادا شو نو د قيام په حالت کښې هم پرته له سورۂ فاتحه څخه لمونځ کيږي الخ.

په دې اړه عرض دا دی چه دا يواځې د حنفيانو دليل نه دی بلکه د مالکيانو، حنبليانو هم د مسبوق له دې مسئلې څخه په مقتدي باندې د قرائت خلف الامام د نه واجب والي استدلال کړی دی لکه څرنګه چه د کتاب المغني په حوالې سره مخکښې تير شو او يواځې ئې د ابي بکرهؓ له حديث څخه استدلال نه دی کړی بلکه له اجماع څخه ئې استدلال کړی دی. امام طحاوي تصريح کړې ده چه په دې کښې د فقهاوو اختلاف نشته چه مسبوق د رکوع په پيدا کولو سره رکعت پيدا کوي او د ابن قدامه په مغني کښې دي چه **(ولانها قراءة لا تجب على المسبوق فلم تجب على غيره كا لسورة)** بيا په امام پسې د سورۂ فاتحه قرائت په مسبوق باندې واجب نه دی نو په غير مسبوق باندې به هم واجب نه وي لکه د (ضم) سورت غوندې آه.

د دې دليل ځواب دا ورکړ شوی دی چه د قرائت وجوب د قيام (دريدلو) په حالت کښې دی چه کله حالت بدل شو نو حکم هم بدل شو.

زه وايم چه د اهلِ حديث له ژبې او قلم څخه د داسې خبرو وتل د تعجب وړ دي ځکه چه دا خو سراسر قياس دی چه په اړه ئې دا خلک په ډير زور او شور سره د **(اول من قاس ابليس)**[1] نارې لګوي. دوی بايد د کوم حديث له مخې دا ثبوت ورکړي چه د قرائت وجوب د قيام له حالت سره مخصوص دی. د حضرت عباده په حديث **(لا صلوة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب)** کښې خو د قيام شرط نشته. که چيرته په کوم بل حديث کښې دا قيد راغلی دی نو څرګنده شوه چه دی يو حديث په بل حديث باندې مقيد کولی شي. بيا حنفيانو کومه ګناه کړې ده چه هغوی له بل حديث **(من كان له امام فقراءته له قراءة)** څخه د عباده حديث په امام او منفرد پورې خاص کوي؟ بيا دا هم ښه شوه چه کله حالت بدل شي نو حکم هم بدليږي. اول خو دا ثابته کړئ چه د رکوع په کولو سره کوم حالت بدل شو؟ آيا لمونځ ختم شو او که لمونځ کوونکی بدل شو؟ آخر دا مسئله له کوم حديث څخه ده معلومه

---

۱ - چه تر ټولو مخکښې ابليس قياس کړی وو. مخکښې دا د هغه بې خبري ده چه د ابليس قياس کوم د ول قياس وو او د مجتهد قياس کوم قياس ته وائي. ۱۲ ظ

کړې ده د رکوع په کولو سره د لمانځه یا لمونځ کوونکي حالت بدلیږي؟ د ابو بکره حدیث او دغو ټولو حدیثونو څخه کوم چه د رکوع په پیدا کولو سره د رکعت په پیدا کولو دلالت کوي خو دا څرګندیږي چه د شارع علیه السلام په نظر کښې رکوع د قیام په حکم کښې دی له دې وجې د رکوع په پیدا کولو سره رکعت پیدا کیږي. البته سجده د قیام په حکم کښې نه ده ځکه چه د سجدې په پیدا کولو سره رکعت نه پیدا کیږي. او چه کله رکوع د قیام په حکم کښې ده نو په رکوع سره حالت بدل نه شو. پس په رکوع پیدا کوونکي باندې باید په رکوع کښې د فاتحه قرائت فرض شي لکه څرنګه چه ځینې صحابه هم دې خوا ته تللي دي. ملاحظه کړئ د بیهقي جزء القرائت ص۲۸.

**عن حسان بن عطية عن ابي الدرداء قال لا تترك الفاتحة خلف الامام زاد ابن ابي الحواري ولو ان تقرأ وانت راكع وفي رواية اخرى عن ابي الدرداء قال لو ادركت الامام وهو راكع لاحببت ان اقرأ بفاتحة الكتاب.**

(حسان بن عطیه له حضرت ابو الدرداء څخه روایت کوي هغه وفرمایل چه په امام پسې د سورهٔ فاتحه قرائت مه پریږدئ. که په رکوع کښې هم وی بیا ئې هم ووایئ. په بل روایت کښې دي چه ابو الدرداء ﷺ وفرمایل چه که چیرته زه امام په رکوع کښې هم پیدا کړم نو دا خوښوم چه سورهٔ فاتحه (په رکوع کښې هم) ولولم). په دې اثر سره د صاحب تکمیل ټول جوړ شوی عمارت ړنګ شو. څرګنده شوه چه په رکوع سره حالت هیڅ بدل نه شو بلکه په رکوع کښې هم د قیام غوندې د فاتحه قرائت کیدلی شي او دې اثر ته دی ضعیف نه شي ویلی ځکه چه امام بیهقي دې لره د حجت په توګه وړاندې کړی دی. پس د صاحب تکمیل دا نتیجه ایستل چه "لکه څرنګه چه د شریعت دا حکم دی چه هیڅ یو رکعت پرته له سورهٔ فاتحه څخه نه کیږي همدارنګه د شریعت دا حکم هم دی چه په رکوع کښې په یو ځای کیدو باندې (رکعت) کیږي" د حنفیانو او حنبلیانو د استدلا د وزني کیدلو اقرار دی. چه کله په رکوع کښې په یو ځای کیدو سره رکعت پیدا کیږي او په رکوع کښې د سورهٔ فاتحه لوستل فرض نه دی د امام قرائت کافي دی. د صاحب تکمیل دا وینا چه د رکوع حالت ته په تلو سره حالت بدل شو او په مثال کښې د مسافر او مقیم مسئله بیانول د هغه چه څومره بد حواسي ښکاروي کتونکي به ئې خپله اندازه وکړي.

حقه خبره دا ده چه کوم خلک د مقتدي په ذمې باندې په امام پسې د سورهٔ فاتحه قرائت ته فرض وائي هغوی خو دې یا د ظاهریه وو غوندې باید دا ومني چه د رکوع په پیدا کولو سره رکوع نه پیدا کیږي او یا دې د ابو الدرداء غوندې دا ومني چه امام په رکوع کښې پیدا کړي نو په رکوع کښې دې سورهٔ فاتحه ولولي. که چیرته هغوی د جمهورو غوندې دا ومني چه د رکوع په پیدا کیدو سره رکعت تر لاسه کیږي او په رکوع کښې سورهٔ فاتحه فرض نه ده نو بیا هغوی په هیڅ ډول هم په مقتدي باندې د فاتحه قرائت ته فرض نه شي ویلی

پاتې شوه دا چه د حنفیانو په نزد په تکبیر تحریمه کښې قیام فرض دی او په دې حالت کښې ابو بکره صحابي ته قیام هم په لاس ور نه غی پرته له قیام څخه د هغه رکعت ادا شو ، پس څرګنده شوه چه قیام هم فرض نه شو الخ.

له دې څخه د صاحبِ تکمیل د حواسو ګډوډوالی ښکاره دی. زه دا پوښتنه کوم چه حضرت ابو بکره تکبیر تحریمه ویلی وو او که نه؟ که چیرته ځواب په اثبات کښې وي نو په حدیث کښې د دې ذکر چیرته دی؟ که چیرته وویل شي چه د تکبیر د ذکر کولو ضرورت نشته ځکه چه معلومه خبره ده چه پرته له تکبیر تحریمه څخه لمونځ نه کیږي نو مونږ وایو د قیام د ذکر هم ضرورت نشته ځکه چه معلومه خبره ده چه تکبیر تحریمه پرته له قیام څخه نه صحیح کیږي. علامه شوکاني او امام طحاوي په دې باندې اجماع را نقل کړې ده چه تکبیر تحریمه پرته له قیام څخه نه صحیح کیږي. او که چیرته ئې ځواب په نفی کښې وي نو دا د ټول اُمت خلاف دی، له تکبیر تحریمه پرته د هیچا په نزد هم لمونځ نه شي صحیح کیدلی.

## په دویم دلیل باندې نیوکه

تر دې وروسته ئې دویم دلیل د حضرت ابو هریرةﷺ حدیث د ابو داؤد په حوالې سره په لنډه توګه را نقل کړی دی. مونږ دا حدیث پخپلو دلائلو کښې په مفصله توګه بیان کړی دی چه حضرت ابو هریرةﷺ فرمائي چه رسول اللهﷺ له یوه لمانځه څخه فارغ شو چه جهر ئې پکښې کاوه نو وئې فرمایل چه په تاسو کښې چا له ما سره یو ځای قرائت کړی دی؟ یوه سړي وویل چه هو! یا رسول الله. ما قرائت کړی دی. نو رسول اللهﷺ وفرمایل: ما هم دا ویل چه دا څوک دی چه له ما څخه قرآنکریم په زوره وړي؟ چه کله خلکو د رسول اللهﷺ دا خبره واوریده نو صحابه وو په هغه لمانځه کښې له قرائت کولو څخه بند شول په کوم کښې چه رسول اللهﷺ په جهر سره قرائت کاوه. دا روایت امام مالک په موطا کښې، امام شافعي په مسند کښې، څلور واړو امامانو په سنن کښې روایت کړی دی او ترمذي ئې تحسین کړی دی او ابن حبان ورته صحیح ویلي دي.

د دې دلیل ځواب صاحب تکمیل ورکړی دی چه "صحابه له قرائت کولو څخه منع شول. دا لفظ مدرج (یعنې راوي پخپله ور زیات کړی دی، د صحابي قول نه دی) دی مرفوع نه دی. دا د زهر تابعي قول دی".

ما مخکښې ویلي دي چه ابو داؤد دا روایت د معمر په واسطه سره هم روایت کړی دی او په دې کښې تصریح ده چه حضرت ابو هریرهﷺ وفرمایل: "خلک په جهري لمانځه کښې له قرائت کولو څخه منع شول". او معمر ثقه، متقن دی. له ده څخه روایت کوونکی احمد بن السرح هم ثقه ثبت دی. پس دا دعوی غلطه ده چه دا د زهري قول دی. بیا که چیرته د زهري قول هم وي نو دا د زهري فتوی نه ده بلکه د یوې واقعې خبر دی او زهري په مغازي، سِیر او د رسول اللهﷺ په اخبارو کښې د

وخت امام دی. د رسول اللهﷺ د زمانې د واقعاتو په بیانولو کښې د ده قول حجت دی.

د صاحبِ تکمیل دا وینا چه "له دې څخه په سرّي لمونځونو کښې د قرائت ممانعت نه لیدل کیږي" نو په سرّي لمونځونو کښې له قرائت څخه مونږ هم ممانعت نه کوو لیکن په جهري لمانځه کښې خو د قرائت ممانعت ثابت شو او همدغه زمونږ مدعا او غوښتنه ده.

تر دې وروسته صاحبِ تکمیل فرمائي چه د حدیث مطلب ښکاره دی چه تر سورهٔ فاتحه وروسته چه کله امام په جهري لمونځونو کښې کوم سورت تلاوت کوي نو مقتدي دې په خاموشۍ سره هغه اوري الخ

لیکن دی خو دې دا ووائي چه د حدیث دا مطلب د حدیث له کوم لفظ څخه معلوم شو؟ ښکاره ده چه **(فانتهی الناس عن القراءة فی ما جهر فیه النبی ﷺ بالقراءة)**. «پس خلک د قرائت له کولو څخه منع شول په هغو لمونځونو کښې چه رسو اللهﷺ به جهر کاوه» په دغو الفاظو کښې د فاتحه او غیر فاتحه هیڅ ذکر نشته بلکه مطلقاً له قرائت څخه د بندیدلو مفهوم ترې څرګندیږي. که چیرته وویل شي چه له دویم حدیث څخه دا قید ور زیات شوی دی په کوم کښې چه د ابو هریرةﷺ خپل شاګرد ته امر پکښې موجود دی چه **(اقرأ بها فی نفسك)** «چه سورهٔ فاتحه پخپل نفس کښې وایه» نو د دې مطلب زمونږ په نزد دا دی چه په زړه کښې ئې وایه. او که چیرته په یوه حدیث کښې له بل حدیث څخه تاسو کوم قید ور زیاتولی شئ نو حنفیه وو بیا څه ګناه کړې ده چه هغوی د عباده د حدیث **(لا صلوة لمن لم یقرأ بفاتحة الکتاب)** کښې د بل حدیث له وجې **(هذا اذا کان وحدهٗ)** قید ور زیاتوي چه د سورهٔ فاتحه له قرائت پرته د لمانځه د نه ادا کیدو حکم په هغه وخت کښې دی چه کله یو څوک تنها لمونځ کوي او دا قید پخپله د حدیث راوي سفیان بن عیینه ور زیات کړی هم دی او امام احمد بن حنبل د حضرت جابرﷺ له روایت څخه د دې تائید کړی دی او صحیح حدیث **(اذا قرأ فانصتوا)** هم د دې تائیدوونکی دی. **(فما هو جوابکم فهو جوابنا)**. د صاحبِ تکمیل د ترمذي د قول نقل کول او د امام احمد د قول پریښودل او له امام الکلام څخه د اسرې غوښتل چه د هغه د کومې بیچارګۍ ښکارندوی دی په هغه باندې د علم خاوندان ښه پوهیدلی شي.

## په دریم دلیل باندې نیوکه

د دریم دلیل ښه ځواب کښې خو صاحبِ تکمیل کمال کړی دی. یو خو ئې د حضرت جابر حدیث **(من صلّی رکعة لم یقرأ فیها بام القرآن فلم یصل الا ان یکون وراء الامام)** «چا چه کوم رکعت پرته له سورهٔ فاتحه څخه ادا کړ هغه لمونځ نه دی کړی لیکن دا چه په امام پسې وي» د دې مطلب ده داسې ایستلی دی چه "د مقتدي یواځې هغه رکعت چه امام ئې د رکوع په حالت پکښې پیدا کړی وي

پرته له سورهٔ فاتحه صحیح دی" خبردار! موطاء امام مالک او ترمذي له حضرت جابر څخه چه کوم الفاظ نقل کړي دي له هغو څخه د هیچا ذهن هم د دې مطلب خوا ته رسیدلی شي کوم چه صاحبِ تکمیل له ځانه جوړ کړی دی. ترمذې له دې حدیث څخه د امام احمد په عدم وجوب قرائت خلف الامام باندې استدلال نیول را نقل کړي دي. نو آیا امام حمد د حدیث په مطلب باندې غلط پوه شوی دی او صاحبِ تکمیل ئې په مطلب صحیح پوه شوی دی؟ سبحان الله! د (وراء الامام) لفظ د مسبوق له دې رکعت سره څه تړاؤ لري کوم چه د رکوع په حالت کښې ئې پیدا کړی دی. "یوه خبره له آسمانه او یوه له زمکې" دې ته وائي. که چیرته د داسې لرې او اوږدو مطالبو په بیانولو سره د نورو د دلائلو ځوابونه ورکوئ نو په خدای قسم تاسو به په یوه دلیل سره هم خپله مدعٰی و نه شئ کړئ چه ثابته ئې کړئ.

دا خو د حدیث په معنٰی کښې بې مطلبه او موقع تاویل وو اوس د صاحبِ تکمیل د دیانت په سند کښې بحث ملاحظه کړی. لومړی خو ده د جابر اثر د موقوف په ګڼلو سره د اقاعده بیان کړې ده چه "د صحابي قول د مرفوع حدیث په خلاف وي نو هغه د حنفیانو په نزد مقبول نه دی" لیکن لومړی دې هغه دا ثابته کړې چه د حضرت جابر دا قول د مرفوع حدیث ولې خلاف دی؟ د (اذا قرأ فأ نصتوا) حدیث خلاف نه دی. او (من کان له امام فقراءة الامام له قراءة) حدیث سره هم موافق دی. پاتې شو د عباده حدیث، نو امام ترمذي د امام احمد قول نقل کړی دی چه هغه د حضرت جابر د همدې قول له وجې دعباده حدیث په منفرد باندې محمولوي ځکه چه د عباده په حدیث کښې له امام یا مقتدي څخه هیڅ تعرض هم نشته.

بیا ده د ترمذي محشي او مولانا احمد علي محدث سهارنپوري د ناخبره په بللو سره دا ګلان شیندلي دي چه دغو خلکو دا اثر د طحاوي په حوالې سره مرفوع لیکلی دی حالانکه پخپله امام طحاوي په شرح معاني الآثار کښې د دې تردید په زوړورو الفاظو سره کړی دی. بیا ئې له طحاوي څخه یو عبارت را نقل کړی دی (من ذٰلک یحیٰی بن السلام عن شعبة فهو منکر ـ الخ) "له پلوه د هغه حدیث یحیٰی بن سلام له شعبه څخه دی هو! هغه حدیث منکر دی" له دې څخه هر لیدونکی او اوریدونکی په دې پوهیږي چه امام طحاوي به د یحیٰی بن سلام دې حدیث ته منکر ویلي وي کوم چه له حضرت جابر څخه مروي دی حالانکه د طحاوي قول په اصل کښې د جابر د حدیث په اړه نه دی بلکه د حج د مناسکو د هغه حدیث په اړه دی کوم چه یحیٰی بن سلام له شعبه څخه له ابن ابي لیلی څخه له زهري څخه له سالم څخه له عبد الله بن عمر ﷺ څخه مرفوعا روایت کړی دی چه تمتع کوونکی که چیرته هدی پیدا نه کړی نو د تشریق په ورځو کښې دې روژه و نیسي او د محدثینو د اصولو پر بناء د دې حدیث مرفوع والی ئې منکر ګڼلی دی او ویلي ئې دي چه دا د عبد الله بن عمر

قول دی ځکه چه یحیٰی بن سلام او ابن ابي لیلی په حفظ کښې محدثین څه خبره لري. تر دې وروسته طحاوي دا هم ویلي دي چه (مع انی لا احب ان اطعن علی احد من العلماء بشیء ولکن ذکرت ما یقول اهل الروایة فی ذلك اه) ـ ج۱، ص۳۶۵ - یعنې اګر که په علماوو کښې په هیڅا باندې طعن «بد رد ویل» نه خوښوم لیکن د روایت خاوندانو چه څه ویلي دي هغه ما ذکر کړي دي.

## د صاحبِ تکمیل خیانت

په دې ځای کښې صاحبِ تکمیل څو خیانتونه کړي دي. ي دا چه طحاوي د یحیٰی بن سلام هغه حدیث ته منکر ویلي وو کوم چه د شعبه په واسطه د روژې او تشریق د ورځو په جواز کښې ئې روایت کوي. دې حدیث ته ئې هیڅکله منکر نه دي ویلي کوم چه په ج۱، ص۱۰۷ کښې د امام مالک په واسطه له وهب بن کیسان څخه له حضرت جابر څخه د قرائت خلف الامام په اړه مرفوعا روایت کړی شوی دی.

دویم کوم حدیث چه طحاوي د یحیٰی بن سلام او ابن ابي لیلی د ضعف له وجې منکر ویلي وو هلته ئې په ښه توګه تردید نه وو کړی بلکه پاک صاف ئې ویلي وو چه "زه پخپله په کوم عالم باندې طعن «رد بد ویل» کول نه غواړم یواځې د روایت د خاوندانو قول را نقلوم". له دې څخه په ښکاره توګه څرګندیږي چه پخپله د طحاوي په نزد یحیٰی بن سلام او ابن ابي لیلی ضعیف یا مطعون نه دي. په دې باندې دا زړورتیا او بیباکي چه خپله خوږخان په خیانت ککړوئ او د ترمذي محشی او مولانا احمد علي صاحب باندې له خدای د نه ویریدو الزام لګوئ.

دریم د رجالو له کتابونو څخه ئې د یحیٰی بن سلام ترجمه هم نه ده لیدلې چه دا ترې څرګندیږي چه ځینو محدثینو ده ته هم ثقه ویلي دي او داسې راوي حسن الحدیث وي او د صحیح او حسن راوي که چیرته داسې زیاتوالی وکړي کوم چه د جماعت خلافه وي نو د هغه زیاتوالی مقبول دی. ملاحظه کړئ شرح نخبه ص۱۲. او ښکاره ده چه موقوف لره مرفوع ګرځول داسې زیاتوالی نه دی چه په مخالفت باندې محمول کړی شي ځکه چه صحابه وو حضراتو ﷺ کله کله د رسول الله ﷺ حدیث د فتوی په توګه د ځان له خوا څخه استعمالول او کله کله به ئې د رسول الله ﷺ د نامه مبارک په یادونې سره حدیث مرفوع ګرځاوه. اوس د یحیٰی بن سلام ترجمه له لسان المیزان ج۲، ص۲۶۰ څخه ملاحظه کړئ. ابن عدي وائي چه د ضعف تر څنګ دده حدیث باید ولیکل شي. ابن حبان ده لره په ثقاتو کښې یاد کړی دی او ویلي ئې دي چه کله کله خطائي هم کوي. ابو زرعي رازي ویلي دي چه (لا بأس به ربما وهم) «دا کومه خبره نه ده کله کله وهم هم کوي». ابو حاتم ویلي دي شیخ بصري لوی صدوق «رښتونی» دی او ډیر رښتیا ویونکی دی. ابو العرب د قیروان په طبقاتو کښې د

دې يادونه کړې ده او ويلي ئې دي چه: (كان من الحفاظ ومن خيار خلق الله) (د حديثو له حفاظو څخه او له بهترينو خلکو څخه وو) آه. يواځې دار قطني ورته ضعيف ويلي دي. ابن عدي پخپلو منکراتو کښې د جابر حديث نه دی ذکر کړی کوم چه په اوس وخت کښې د بحث لاندې دی نه طحاوي ورته منکر ويلي دي او اکثرو محدثينو د يحيٰی بن سلام توثيق کړی دی نو که چيرته د ده حديث مولانا احمد علي صاحب حسن وويل نو کومه ګناه ئې وکړه؟

پاتې شوه دا چه طحاوي تر دې وروسته د اسمٰعيل بن موسٰی سُدّي اثر بيان کړی دی چه دا مضمون پکښې دی چه اسماعيل له امام مالک څخه پوښتنه وکړه چه زه د جابر دا حديث مرفوع وګرځوم؟ امام ملک وفرمايل (خذوا برجله) په دې کښې تر ټولو مخکښې د اسماعيل سُدّي حال بايد معلوم شي چه هغه د کومې درجې شخصيت دی؟ هو! اګر که څينو محدثينو د ده توثيق کړی دی ليکن ابن حبان په ثقاتو کښې د ده يادونې سره ليکلي دي چه عبدان (شيخ د بخاري) وفرمايل چه ابو بکر بن ابي شيبه او نهاد بن السري (چه دا هم د امام بخاري د مشائخو له جملې څخه دی) مونږ د ده خوا ته له ورتلو څخه منع کړو او وئې ويل چه دا سړی فاسق دی، سلفو ته بد وائي. ابن عدي وائي چه هغه د امام مالک دوه حديثونه موصول کړل او له شريک څخه هم څو حديثونه منفرد دي (هيڅوک ورسره شريک نه دی) خلکو د ده د غلو فی التشيع پر بناء ده ته منکر ويلي ده. يعنې غالي (سرسخت) شيعه دی د دې لپاره محدثينو انکار پرې کړی دی. (تهذيب ج۱، ص۳۳۶)

د داسې غالي او کلک شيعه په روايت سره د ايحيٰی بن سلام غوندې بهترين حافظ روايت لره زخمي کول يواځې د صاحبِ تکميل جرئت او زړورتيا ده. بيا همدغه سرسخت شيعه د امام مالک چه کوم قول را نقل کړی دی له دې څخه داسې څه نه څرګنديږي چه امام مالک د دې حديث په رفع باندې انکار کړی دی او که د دې سړي په همدرس والي باندې، د هغه الفاظ دا دي چه "د هغه پښې ونيسئ" چه مطلب ئې دا هم کيدلی شي چه دا بندي يا قيد کړئ تر څو چه حديث بيان نه شي کړی. او دا مطلب هم کيدلی شي چه تر پښو ئې ونيسئ او له دې ځايه ئې وباسئ. دا غالي شيعه زمونږ په درس کښې د کښيناستو لائق نه دی. له دې څخه دا چيرته څرګنديږي چه امام مالک د حديث په مرفوع والي باندې انکار کړی دی او که چيرته انکار هم وي نو رفع ئې نه صحيح کيږي. ليکن حسن خو کيدلی شي او مولانا احمد علي صاحب رفع ته حسن ويلي دي، صحيح ئې نه دي ورته ويلي.

## په څلورم دليل باندې نيوکه

د حنفيانو له خوا څخه څلورم دليل دا بيان شوی دی چه په صحيح مسلم کښې له قتادة ﷫ څخه (واذا قرأ فانصتوا) راغلی دی (د صاحبِ تکميل له الفاظو څخه داسې مفهوم را ووځي چه هغه قتاده

لره صحابي ګڼي. دا غلط دی. د حدیث راوي حضرت ابو موسیٰ اشعري صحابيؓ دی، په دې حدیث کښې رسول اللهﷺ د امام او مقتدي فرائض بیان کړي دي چه "امام د دې لپاره جوړېږي چه د هغه اتباع وشي چه کله تکبیر وائي نو تکبیر ورسره وایئ او چه کله قرائت کوي نو چُپ او غلي ودرېږئ او چه کله رکوع کوي نو رکوع وکړئ الخ". له دې څخه هر سړی چه وا ئې وري نو په دې پوهیږي چه مقتدي باید د امام د قرائت په وخت کښې غلی او چُپ و اوسي. مونږ دې حدیث ته د عباده د حدیث معارض (ټکر) یا د هغه ناسخ نه دي هیڅکله نه دي ویلي. مونږ یواځې دا وایو چه د عباده په حدیث کښې د امام یا مقتدي هیڅ ذکر نشته. په دې کښې یواځې دا مضمون دی چه څوک سورهٔ فاتحه و نه لولي نو لمونځ ئې نه کیږي. دې ته د مقتدي په اړه ویل صحیح نه دي دا د غیر مقتدي په حق کښې دی اوداابوموسیٰ حدیث په ښکاره توګه د مقتدي په حق کښې دی او مونږ ویلي دي چه د عباده د حدیث راوي سفیان بن عیینه او زهري هم دا د غیر مقتدي په اړه بللی دی.

اوس تر دې وروسته د اهلِ حدیث تاویلات وګورئ دوی وائي چه **(اذا قرأ فانصتوا)** مطلب دا دی چه له سورهٔ فاتحه پرته د بل سورت له ویلو څخه خاموشه و اوسئ. یو څوک دې ترې پوښتنه وکړي چه **(اذا قرأ فانصتوا)** په حدیث کښې د فاتحه او غیر فاتحه یادونه په کوم ځای کښې شوې ده چه دا قید ورسره زیاتوئ؟ په حدیث کښې خو مطلقاً د خاموش اوسیدو ذکر دی. که چیرته دا وویل شي چه د عباده د حدیث له وجې دا قید ورسره لګول کیږي نو د دې څه دلیل دی چه د عباده په حدیث سره د **(اذا قرأ فانصتوا)** حدیث مقید کول ضروري دي؟ د تطبیق او توفیق دا صورت خو هم کیدلی شي چه د عباده حدیث د دې حدیث له وجې په منفرد باندې محمول کړی شي لکه څرنګه چه سفیان بن عیینه، امام احمد بن حنبل او امام زهري محمول کړي دي او حنفیه وو هم همدا غوره کړی دی اوس دې صاحبِ تکمیل د دې وجه ووائي چه د تطبیق کومه وجه چه دی بیانوي هغه صحیح دی او کومه وجه مونږ بیان کړې ده هغه صحیح نه ده. اهلِ حدیث کوم چه د تقلید منکرْ دي دا حق نه لري چه **(اذا قرأ فا نصتوا)** د حدیث ظاهري مطلب د چا د تقلید له وجې بدل کړي او که چیرته دوی د بیهقي او داسې د تقلید له وجې د دې یوه حدیث د مطلب د بیانولو حق وي نو مونږ ته هم د امام ابو حنیفه، احمد بن حنبل، سفیان بن عیینه او زهري د تقلید له وجې د دې د هغه مطلب د بیانولو حق لرو کوم چه د حدیث له الفاظو څخه پرته له تاویل څخه څرګندیږي.

پاتې شوه دا چه د دې **(اذا قرأ فانصتوا)** دویم راوي حضرت ابو هریرهؓ خپل شاګرد ته ویلي وو **(اقرأ بها فی نفسك یافارسی)** چه د اقتداء په حالت کښې سورهٔ فاتحه پخپل نفس کښې ووایه. د دې مطلب زمونږ په نزد دا دی چه په زړه کښې ئې وایه څکه چه په موطا د امام مالک کښې د حضرت

ابو هریرة رضی الله عنه دا حدیث موجود دی. (فانتهى الناس عن القراءة فيما جهر فيه النبي ﷺ) چه خلک په جهري لمونځونو کښې په رسول الله ﷺ پسې له قرائت کولو څخه منع شول لکه څرنګه چه مخکښې تير شو. له دې څخه پاک صاف څرګند شو چه په جهري لمونځونو کښې حضرت ابو هریره رضی الله عنه د قرائت خلف الامام قائل نه وو. قال في غيث الغمام قوله اقرأبها المراد من القراءة في النفس و الاخطار بالبال من دون ان يتلفظ بها اى احضر معانيها في نفسك و قدر فيها حين يقرأها الامام كذا نقله الزرقاني في معناه عن عيسى و ابن نافع آه. يعنې د حضرت ابو هریره دا ويل چه پخپل نفس کښې سورهٔ فاتحه لولئ د دې مطلب دا دی چه په زړه کښې ئې وايئ او په زړه کښې فکر پرې وکړئ په ژبې سره تلفظ مه پرې کوئ بلکه معنٰی ئې په زړه کښې حاضره کړئ او سوچ فکر پرې وکړئ په داسې حال کښې امام سورهٔ فاتحه لولي. زرقاني په همدې ډول د دې مطلب له عيسٰی او ابن نافع څخه نقل کړی دی آه. ابن نافع د امام مالک شاګرد دی. وقال الطحاوي رحمه الله و كان من الحجة عليهم في ذلك ان حديثي ابي هريرة و عائشة الذي رووها عن النبي ﷺ كل صلوة لم يقرأ فيها بام القرآن فهي خداج ليس في ذلك دليل على انه اراد بذلك الصلوة التي تكون وراء الامام قد يجوز ان يكون عنى بذلك الصلوة التي لا امام فيها للمصلي و اخرج من ذلك انما موم بقوله من كان له امام فقراءة الامام له قراءة فجعل المأموم في حكم من يقرأ بقراءة امامه فكان المأموم بذلك خارجاً من قوله كل من صلى صلوة لم يقرأ فيها بفاتحة الكتاب فصلوته خداج آه (ج۱، ص۱۰۶)

امام طحاوي فرمائي چه کوم خلک د قرائت خلف الامام قائل نه دي د هغوی پخپلو مخالفینو باندې دا حجت دی چه د حضرت ابو هريره او حضرت عائشه په دې حديث کښې چه په کوم لمانځه کښې سورهٔ فاتحه و نه لوستل شي هغه ناقص دی په دې باندې هيڅ دليل نشته چه له دې څخه هغه لمونځ مراد دی چه په امام پسې وي. کيدلی شي چه له دې څخه هغه لمونځ مراد وي په کوم کښې چه لمونځ کوونکی په امام پسې نه وي. په دې حکم سره ده مقتدي ته پخپل دويم قول سره چه د چا امام وي د هغه قرائت د مقتدي لپاره قرائت دی مستثنٰی کړی دی په کوم کښې چه مقتدي لره د امام د قرائت له وجې حکماً قاري ګڼل شوی دی پس مقتدي له دې حکم څخه مستثنٰی دی چه کوم لمونځ پرته له سورهٔ فاتحه څخه ادا شي هغه ناقص دی.

اوس دې صاحب تکميل په انصاف سره ووائي چه (اذا قرأ فانصتوا) د حديث چه کوم تاويل کوي د هغه د صحيح والي او حق والي څه دليل دی؟ لکه څرنګه چه په حديث کښې صاف حکم دی چه امام کوم وخت قرائت کوي مقتدي دې غلی و اوسي

پاتې شوه دا چه د دار قطني په روایت کښې **(اذا قال الامام غیر المغضوب علیهم ولا الضالین فا نصتوا)** چه کله امام سورهٔ فاتحه ختم کړي نو تاسو چُپ شئ چه له دې ښخه ښرګنده شوه چه د خاموشه اوسیدلو حکم تر سورهٔ فاتحه وروسته دی. اهلِ حدیث دې د دې روایت په وړاندې کولو سره لږ باید وشرمیږي، دا روایت منکر دی ټولو ثقاتو دا روایت داسې بیان کړی دی **(اذا قال الامام غیر المغضوب علیهم و لا الضالین فقولوا اٰمین)**. (چه کله امام غیر المغضوب علیهم و لا الضآلین ووائي نو تاسو اٰمین ووایئ) کوم یوه محدث کیدای شي **(فقولوا اٰمین)** په لټډو الفاظو یعنې د **(فانصتوا)** په لفظ سره بیان کړی وي. دې لره کوم یوه عقلمند د تصحیف او تبدیل په کولو سره **(فانصتوا)** وویل؟ په داسې ګډو وډو او بې مطلبه خبرو سره صاحبِ تکمیل خپل ځان خوشحاله کوي لیکن د پوهې خاوندان د هغه په بې وسې باندې ښه خبر دي او که چیرته دا صحیح ومنل شي چه نو تر و لا الضآلین وروسته په جهر سره اٰمین ویل به هم ممنوع وي ځکه چه په حدیث کښې تر و لا الضآلین وروسته د خاموشه اوسیدلو امر دی **(فما هو جوابکم فهو جوابنا)**. او که چیرته کوم مقتدي په لمانځهٔ کښې داسې وخت له امام سره شریک شي چه امام سورهٔ فاتحه لوستلی وي نو ده ته د قیام په حالت کښې د سورهٔ فاتحه لوستل په امام پسې جائز نه وي ځکه چه په دې حدیث کښې د امام د و لا الضآلین تر ویلو وروسته مقتدي ته د خاموشه اوسیدلو حکم دی. په دې اړوند د صاحبِ تکمیل څه فتوٰی ده؟

## په پنځم دلیل باندې نیوکه

د حنفیانو له خوا ښخه پنځم دلیل دا بیانوي چه **من کان له امام فقراءته له قراءة** (د چا چه امام وي نو د امام قرائت د هغهٔ لپاره قرائت دی) صاحبِ تکمیل د علامه سندي حنفي اسره نیولې چه د دې په سند کښې جابر جعفي دی کوم چه کذاب دی او دا حدیث د صحاح ستّه د حدیث (د عباده د حدیث) خلاف دی. الله، الله د تقلید ښخه انکار کوونکی هم د سندي حنفي تقلید کوي یا للعجب! که چیرته دی په رښتیا هم اهلِ حدیث وای نو د دې حدیث د طریقو پلټنه به ئې کوله تر څو چه ورته ښرګنده شوې وای چه د ابن ماجه په سند کښې د جابر جعفي موجودوالی دا نه لازموي چه په هر سند کښې دې دی موجود وي. اوس واورئ چه دا حدیث د حضراتو صحابو وو یوې ډلې روایت کړی دی.

جابر بن عبد الله، عبد الله بن عمرو، ابو سعید خدري، ابو هریره، ابن عباس او انس بن مالک رضی الله عنهم اجمعین د جابر حدیث چه په کوم سند سره له ابن ماجه ښخه روایت کړی دی په دې

کښې جابر جعفي شته لیکن د دې دویم سند با لکل صحیح دی چه امام محمد صاحب په موطا کښې له امام ابو حنیفه څخه له موسیٰ بن ابي عائشه څخه له عبد الله بن شداد څخه له حضرت جبار څخه په دې الفاظو روایت کړی دی (من صلّی خلف الامام فان قراءة الامام له قراءة) (څوک چه په امام پسې لمونځ کو نو د امام قرائت د ده لپاره هم قرائت دی).

په دې باندې د دار قطني دا وینا چه "دا حدیث سفیان ثوري او ابو الاحوص، شعبه، اسرائیل، شریک، ابو خالد دالاني، سفیان بن عیینه او داسې نورو له موسیٰ بن ابي عائشه څخه له عبد الله بن شداد څخه له نبي کریم ﷺ څخه مرسلاً روایت کړی دی. (د صحابي نوم ئې حذف کړی دی) او هم هغه صحیح دی" په مونږ باندې حجت نه دی ځکه چه د احمد بن منیع په مسند کښې دا حدیث د سفیان ثوري او شریک القاضي په واسطه مرفوعاً موصولاً روایت شوی دی. پس دا وینا غلطه ده چه امام ابو حنیفه یواځې دې لره موصول ګرځولی دی او که چیرته و هم منل شي چه امام ابو حنیفه یواځې موصول ګرځولی دی نو امام ابو حنیفه له زرګونو محدثینو څخه پورته ثقه دی. هغه چه کوم حدیث یواځې هم موصول وګرځوي د محدثینو د اصولو پر بناء واجب القبول دی.

## د حدیثو په علم کښې د امام ابو حنیفه درجه

د یحییٰ بن معین تر زمانې پورې په امام ابو حنیفه باندې هیڅا هم جرح نه وه کړې. د خلق قرآن په مسئله کښې د فتنې تر را ولاړیدو وروسته ځینو حشویه محدثینو په هغه باندې جرح شروع کړه ځکه چه په دې فتنه کښې په محدثینو علماوو باندې زور او زیاتی کوونکی قاضي د عقیدې له مخې معتزلي او د فروعاتو له مخې حنفي وو. حشویه وو له دغو قاضیانو څخه داسې انتقام واخیست چه امام ابو حنیفه، امام ابو یوسف او امام محمد بن حسن شیباني باندې جرح لګول شروع کړل کوم چه د حنفي مذهب ستنې دي. (ولما سئل ابن معين عنه قال ثقة مأمون ما سمعت احدا ضعفه هذا شعبة بن الحجاج يكتب اليه ان يحدث وشعبة شعبة).

(چه کله له یحییٰ بن معین څخه د امام صاحب د نسبت په اړه پوښتنه وشوه نو وئې فرمایل چه ثقه او مامون دی. ما له هیڅا څخه نه دي اوریدلي چه هغه ته ئې ضعیف ویلی وي. شعبة بن الحجاج هغه ته د خط په ذریعه د حدیث د بیانولو تاکید کوي او شعبه خو شعبه دی.

لویو لویو امامانو کرامو د امام صاحب تعریف کړی دی لکه عبد الله بن المبارک او دی خو د امام صاحب له شاګردانو څخه شمیرل کیږي، سفیان بن عیینه، سفینا ثوري، حماد بن زید، عبد الرزاق، وکیع بن الجراح. او ده خو د امام صاحب په فقهي باندې فتواوې ورکولې. همدارنګه درې ګوني امامان امام مالک، امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمة الله علیهم هم د امام صاحب ډیر

صفت او ستاينه کړې ده (عيني شرح بخاري ج۲. ص۱۲)

په تاريخ د خطيبِ بغدادي کښې چه کوم له ځينو لويو خلکو څخه د امام صاحب تضعيف او تنقيص (ضعيف او کم ګڼل) منقول دی دا ټول د خلقِ قرآن تر فتنې وروسته د حشويه ډلې درواغ او له ځانه جوړې شوې خبرې دي. ځکه چه دا ټول خرافات عموماً د مجهولينو، مجروحينو، کذابينو (دروغجنو) په ذريعې سره روايت شوي دي او د خطيب تر وفات ډير وروسته د هغه په تاريخ پورې ملحق شوي دي. خطيب د ثقاتو په ذريعې سره پرته د مناقبو او فضائلو څخه نور څه نه دي ذکر کړي چا ته چه په دې باندې د نور تفصيل د کتلو شوق وي نو زما مستقل مضمون "خطيب بغدادي او د حديثو منکرين" په مطبوع شوې ماهنامه "الصديق" ملتان سـ۱۹۵۷/۵۸ـء کښې دې وګوري.

پاتې شوې نورې طريقې کوم چه د حضرت عبد الله بن عمرو، ابو سعيد خدري، ابو هريره، ابن عباس او انس بن مالک ﷺ څخه مروي دي. د هغو په ځينو راويانو باندې اګر که دار قطني څه خبره کړې ده ليکن په هغو کښې اکثره داسې دي چه کوم چه د ځينو محدثينو په نزد ثقه دي بيا د اصولِ حديث قاعده ده چه څو ضعيفان سره يو ځای شي د حسن او کله کله د صحيح درجې ته هم رسيږي. پس دا وينا غلطه ده چه د حنفيانو د کور فيصله ده چه دا حديث د منلو وړ نه ده. که چيرته صاحبِ تکميل د عيني شرح د بخاري مطالعه کړې وای نو ور معلومه شوې به وای چه د حنفيه وو په نزد دا حديث با لکل صحيح با لکه له صحيح څخه هم پورته دی ځکه چه دې لره پخپله امام محمد له امام ابو حنيفه څخه په موطا او کتاب الآثار کښې په صحيح سند سره روايت کړی دی. بيا امام دار قطني کوم چه دې حديث ته مرسلاً صحيح ويلي دي هغه ته دې معلومه وي چه عبد الله بن شداد کوچنی صحابي دی او چه کله د امام شافعي په نزد د سعيد بن المسيب غوندې د لوی تابعي مرسل د قبول وړ دی نو د کوچني صحابي مرسل به په طريقهٔ اولی سره د قبول وړ وي ځکه چه د صحابه وو مراسيل په اتفاق سره ټولو قبول کړی دی.

تر دې وروسته صاحبِ تکميل د امام بخاري رحمه الله يوه فيصله را نقل کړې او دعوی ئې کړې ده چه دا د سرو زرو په اوبو سره د ليکلو وړ ده چه حاصل ئې دا دی چه **(من کان له امام فقراءة الامام له قراءة)** حديث عام دی او د عباده په حديث کښې له **(الا بام القراٰن)** څخه سورهٔ فاتحه مستثنی شوې ده. د دې داسې مثال شو لکه څرنګه چه په يوه حديث کښې دي چه زما لپاره د زمکې ټول مخ د لمانځه ځای جوړ شوی دی، بيا په دويم حديث کښې ئې د **(الا المقبرة و الحمام)** په ويلو سره قبرستان او داسې نور مستثنی کړي دي.

ليکن پوښتنه دا ده چه امام طحاوي خو هم دا ويلي دي چه د ابو هريره حديث **(کل صلوة لم يقرأ فيها بام القراٰن فهی خداج)** (په کوم لمانځه کښې چه سورهٔ فاتحه و نه لوستل شي هغه خداج (ناقص،

نیمګړی، دی، عام دی چه له دې څخه (من کان له امام فقراءته له قراءة) حدیث مقتدي لره مستثنی کړی دی او مقتدي د امام د قرائت له وجې قاري ګڼل شوی دی. نو د دې څه وجه ده چه د امام بخاري قول د سرو زرو په اوبو سره د لیکلو وړ دی او د امام طحاوي قول د سرو زرو په اوبو سره د لیکلو وړ نه دی. دا یواځې او یواځې زور زیاتی او عصبیت دی نور څه نه دي. حالانکه د قرائت لفظ ته عام ویل غلط دي او د ابو هریره په حدیث کښې د (کل صلوٰة) عام والی صحیح او څرګند دی. بیا مونږ مخکښې وویل چه د عباده په حدیث کښې استثنائیه جملې (الا بأم القرأن) ته د فن امام یحیٰی بن معین ضعیف ویلي دي له دې وجې څخه د (من کان له امام ـ الخ) کښې تاویل کول صحیح نه دي او د (من کان له امام) حدیث صحیح حدیث دی. همدارنګه د مسلم حدیث (اذا قرأ فا نصتوا) او د قرآن نص (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا) سره موافق دی. دا د عباده او ابو هریره د حدیثونو لپاره مخصص ګڼل صحیح دي. پس د امام طحاوي قول ډیر وزني دی چه په مخکښې ئې د امام بیهقي او داسې نورو قولونه هیڅ حقیقت نه لري.

پاتې شوه دا چه دار قطني (او بیهقي) له حضرت جابر څخه روایت کړی دی چه یوه سړي په ماسپښین یا مازدیګر کښې په رسول اللهﷺ پسې د (سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى) سورت ووایه نو ده تر لمانځه وروسته پوښتنه وکړه، دا څوک چه په ما پسې ئې قرائت کاوه؟ درې ځله ئې پوښتنه وکړه یوه سړي وویل چه ما قرائت وکړ. و ئې فرمایل: ما لیدل چه تاسو له ما سره په قرآنکریم کښې منازعت کاوه کوم سړی چه په امام پسې لمونځ کوي د هغه لپاره د امام قرائت کافی دی الخ.

دا حدیث خو د حنفیه وو دلیل وو چه صاحب تکمیل د مغالطې ورکولو په توګه خپل بللی دی له حدیث څخه په ښکاره توګه څرګندیږي چه نوموړي سړي په پټه سره قرائت کړی وو، که چیرته ئې په جهر سره قرائت کړی وای نو پیغمبر علیه السلام ته به د درې ځله پوښتنې کولو ضرورت نه پیدا کیده. صحابه وو به په لومړي ځل پوښتنې سره ویلي وای چه فلانې قرائت کړی دی. بیا د دهﷺ دا وینا چه څوک په امام پسې لمونځ کوي نو د امام قرائت د هغ لپاره قرائت دی په پاکه توګه دا وائي چه په امام پسې مقتدي باید قرائت و نه کړي. له دې څخه دا مطلب اخیستل چه له سورهٔ فاتحه څخه پرته بل کوم سورت دې نه وائي د زور او زیاتی تاویل دی کوم چه هېڅکله د نبي کریمﷺ له ارشاد څخه ئې مفهوم نه راووځي بلکه له دې څخه خو دا معلومیږي چه په سرّي لمونځونو کښې هم دهﷺ ته د مقتدي قرائت خوند نه ورکاوه. او دا چه په عامه توګه صحابهٔ کرامو په نبي کریمﷺ پسې قرائت نه کاوه یوه یا دوو بې خبرو داسې کول چه نبي کریمﷺ هغوی له قرائت څخه منع کول که چیرته ټولو صحابهٔ کرامو قرائت کولی نو پاتې مقتدیانو به خامخا ویلي وای چه مونږ یواځې د

سورهٔ فاتحه قرائت کړی دی لیکن داسې و نه شول بلکه تول خاموش او غلي شول. بیا قرائت کوونکي دا هم و نه ویل چه ما سورهٔ فاتحه او سورهٔ (سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى) قرائت کړی دی، ده هم یواځې د (سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى) د قرائت اقرار وکړ چه دا ترې څرګندیږي چه صحابه وو د سورهٔ فاتحه خلف الامام اهتمام نه کاوه. بیا که چیرته په امام پسې د سورهٔ فاتحه قرائت لازم وای نو دا سړی به ئې له مطلقاً قرائت څخه نه منع کولی بلکه په ښکاره توګه به ئې ورته ویلي وای چه له سورهٔ فاتحه پرته نور څه مه وایه. د حضرت جابر د حدیث په هیڅ یوې طریقې کښې هم د سورهٔ فاتحه د قرائت استثناء نه ده راغلې او د عباده د حدیث د استثنائیه جملې حال پورته تیر شو چه د حدیثو امامانو ضعیف ګڼلی دی. پس د حنفیانو دلیل لره خپل دلیل جوړوونکی پخپله د جهالت او ناپوهي ارتکاب کوي. هغه د دې خطاب چه نورو ته ئې کوي پخپله ئې ښه مستحق دی.

## په شپږم دلیل باندې تنقید

تر دې وروسته ئې شپږم دلیل د عبد الله بن مسعود حدیث د کنز العمال په حوالې سره نقل کړی دی (اذا صلّی احدکم خلف الامام فلیصمت فان قراءته له صلٰوة) (کوم سړی چه په امام پسې لمونځ کوي نو چُپ دې اوسي ځکه چه د امام قرائت د ده لپاره قرائت دی او د امام لمونځ د ده لمونځ دی). دې حدیث ته خو ئې لومړی ضعیف ویلی دی. لیکن مونږ ویلي دي چه دا حدیث له څو صحابهٔ کرامو ﷺ څخه روایت شوی دی چه عبد الله بن مسعود صحابي هم پکښې اضافه یا زیات شوی دی. او د ضعیف حدیث په ګڼو طریقو سره د حسن یا صحیح درجې ته رسیدل د حدیثو په اصولو کښې تصریح پرې شوې ده. بیا د دې حدیث ځینې طریقې په یقیني توګه صحیح دي او ځینې حسن دي لکه څرنګه چه مونږ مخکښې پخپلو دلائلو کښې بیان کړي دي او دا هم تیر شول چه حافظ ابن حجر دا حدیث د حضرت جابر د روایت له وجې مشهور ګڼلی دی او د مشهور حدیث چه کومه درجه ده اهلِ حدیث ترې ناخبره نه دي. بیا ئې په دې کښې هغه بې موقع او بې ځایه تاویل کړی دی چه د قرائت لفظ عام دی چه د عباده د حدیث له وجې سورهٔ فاتحه ترې مستثنٰی ده الخ. د دې تاویل بیکار والی اوس بیان شو.

بیا ئې یو عجیب الزام لګولی دی چه که چیرته د (فان قرائته له قراءة) څخه دا مطلب واخیستل شي چه د امام قرائت مقتدي ته کافي دی، هغه ته د سورهٔ فاتحه د لوستلو ضرورت نشته نو د (و صلوته له صلوة) به هم همدغه مطلب وي چه د امام لمونځ د مقتدي لپاره کافي دی نو تر اقتداء وروسته د لمانځه د رکنونو لکه رکوع، سجده او داسې نورو هم به مقتدي ته ضرورت نه وي.

د دې ځواب دا دی چه د صاحبِ تکمیل په نزد صلوة یواځې سورهٔ فاتحه ته وائي لکه څرنګه چه

د (قسمت الصلوٰة بيني وبين عبدي) په تفسير کښې په ۵۴ مخ کښې له امام رازي څخه ئې نقل کړی دی چه الله تعالی په دې حديث کښې سورۀ فاتحه ته صلوٰة ويلي دي چه دا ترې څرګنده شوه چه که چيرته فاتحه نه وي نو لمونځ هم نشته الخ. چه کله د ده په نزد يواځې سورۀ فاتحه ته لمونځ ويل کيږي نو د ابن مسعود د حديث حاصل به دا وي چه د امام قرائت د مقتدي قرائت دی او سورۀ فاتحه ئې د مقتدي سورۀ فاتحه دی پخپله مقتدي ته ئې د ويلو ضرورت نشته او تر قرائت وروسته ئې خاص د سورۀ فاتحه يادونه د دې لپاره وکړه چه ښائي څوک دا مطلب ترې واخلي چه له قرائت څخه مراد پرته له سورۀ فاتحه څخه نور قرائت دی، د دې لپاره دا شبهه رفع کړې ده، دا خو الزامي ځواب وو وګورئ صاحبِ تکميل دا الزام په څه ډول سره له خانه لرې کوي.

تحقيقي ځواب ئې دا دی چه د (وصلوٰته له صلوٰة) د جملې هغه مطلب دی کوم چه د (الامام ضامن) د حديث مطلب دی «د امام لمونځ د صحت او فساد له مخې د مقتدي د لمانځه متضمن دی» يعنې که چيرته د امام لمونځ صحيح شي نو د مقتدي به هم صحيح کيږي، که چيرته فاسد شي نو د مقتدي به هم فاسديږي چنانچه د ابو داؤد په يوه روايت کښې ئې دا مضمون په دې ډول بيان کړی دی. (قال وحدثنا ان رسول الله ﷺ قال لقد اعجبني ان تکون صلوٰة المسلمين او المؤمنين واحدة). «حضرت معاذ بن جبل بيان وکړ چه رسول الله ﷺ وفرمايل چه ما ته دا ښه کار څرګنديږي چه د مسلمانانو لمونځونه يو لمونځ وي» د جماعت لمونځ ده ﷺ يو لمونځ وباله او ځان ځانته ئې ډير لمونځونه ونه بلل او د عرف او عادت له مخې هم د جماعت لمونځ يو لمونځ ګڼل کيږي او له همدې وجې د جماعت لمونځ يو لمونځ دی. چه کله د سترې ضرورت پيښ شي نو يواځې د امام مخې ته ستره کافي ده. د هر مقتدي مخې ته د ځان ځانته سترې لګولو ضرورت نشته. نو د يوه لمانځه لپاره يو قرائت او يوه فاتحه کافي ده هر يوه د قرائت ضرورت نشته، پاتې ارکان په قرائت باندې قياس کول غلط دي ځکه چه د امام د قرائت لپاره خو استماع او انصات په قرآنکريم کښې واضح او څرګند حکم دی او د رکوع او سجدې لپاره نيابت کافي نه دی بلل شوی بلکه مقتديانو ته ښکاره حکم دی چه (اذا رکع فارکعوا واذا سجد فاسجدوا). «چه کله امام رکوع کوي نو تاسو هم رکوع کوئ او چه کله سجده کوي نو تاسو هم سجده وکړئ» او دا عام عادت هم دی چه کله د بادشاه دربار ته ډير خلک د يوې عريضې د وړاندې کولو لپاره ورځي نو د تعظيم افعال هر سړی جلا جلا په ځای کوي ليکن خبرې اترې يواځې د خلکو مشر او سردار کوي، هر سړی ځان ځانته خبرې نه کوي او د عريضې تر قبليدلو وروسته هر سړی ځان ځانته د بادشاه شکريه ادا کوي او د تعظيم آداب په ځای راوړي. شريعت په لمانځه کښې هم همدغه صورت اينښی دی چه لومړی هر يو تکبيرونه ووايئ، شاهي آداب په ځای راوړئ تر دې وروسته د عريضې وړاندې کول د امام کار دی چه کله

هغه تر سورۀ فاتحه وروسته بل سورت قرائت کوي کوم چه د الله تعالى له خوا ځخه د ځواب ورکولو په مرتبه کښې ده نو هر سړی د تعظيم آداب په ځای راوړي او په رکوع او سجده کښې د شکريې او تعظيم الفاظ ادا کوي.

## د اهلِ حديثو له مصنفينو ځخه هيله

که چيرته اهلِ حديث له انصاف ځخه کار واخلي نو د هغوی لپاره دومره پوهيدل کافي دي چه په کوم حديث کښې رسول الله ﷺ د امام او مقتدي دواړو فرائض بيان کړي دي. يعنې د **انما جعل الامام ليؤتم به فاذا كبر فكبروا واذا ركع فاركعوا واذا قال سمع الله لمن حمده فقولوا اللّٰهم ربّنا لك الحمد واذا سجد فاسجدوا الخ.** (امام د دې لپاره ټاکل کيږي چه د هغه اتباع (پيروي) وشي، چه کله هغه تکبير وائي نو تاسو هم تکبير ووايئ. چه کله رکوع کوي نو رکوع وکړئ. چه کله سمع الله لمن حمده وائي نو تاسو اللهم ربنا و لک الحمد ووايئ. چه کله سجده کوي نو تاسو سجده وکړئ). په هيڅ يوه روايت کښې هم نشته چه **(واذا قرأ فاقرءوا)** (چه کله امام قرائت کوي نو تاسو هم قرائت وکړئ) که چيرته د مقتدي په ذمې باندې د امام له قرائت سره يو ځای قرائت فرض يا واجب وای نو بيان به ئې خامخا په دې حديث کښې راغلی وای په کوم کښې چه د امام او مقتدي دواړو فرائض بيانيږي. په دې حديث کښې که چيرته دی نو **(اذا قرأ فانصتوا)** (چه کله امام قرائت کوي نو تاسو چُپ و اوسئ) دی. ملاحظه کړئ مسلم شريف او ابو داؤد. پس څوک چه په امام پسې د سورۀ فاتحه قرائت د فرض کيدو دعوی کوي هغه دې د دې حديث له طريقو ځخه په يوې طريقې کښې **(اذا قرأ فاقرءوا)** وښيي ځکه چه په همدې حديث کښې د امام او مقتدي دواړو فرائض بيان شوي دي. د عباده حديث وړاندې کول کافي نه دي ځکه چه په هغه کښې د امام او مقتدي د دواړو د فرائضو بيان نشته بلکه د حديث راوي سفيان بن عيينه، زهري او داسې نورو پخپله ويلي دي چه دا د تنها لمونځ کوونکي په اړه دی او همدغه امام احمد هم بيان کړی دی.

## په اووم دليل باندې نيوکه

اووم دليل له صحيح مسلم ځخه د زيد بن ثابت رضی الله عنه قول را نقل شوی دی **(لا قراءة مع الامام في شيء من الصلوات)** (له امام سره يو ځای په هيڅ يوه لمانځه کښې هم قرائت نشته) د امام طحاوي الفاظ دا دي **(لا تقرأ مع الامام في شيء من الصلوات ورجاله ثقات)** (له امام سره يو ځای په هيڅ يوه لمانځه کښې قرائت مه کوئ او د دې راويان ټول ثقه دي) له دې وروسته هم هغه بې موقع او بې ځايه تاويل په دې کښې هم شوی دی چه دا اثر په ما سوا د فاتحه باندې محمول دی او په ډير جرئت سره وائي

چه د صحيح مسلم په څواب سره په همدې مخ باندې موجود دی الخ. يو څوک دې ترې پوښتنه وکړي چه د امام نووي تقليد له کومې ورځې څخه واجب شوی دی کوم چه د هغه د څواب په حنفيانو باندې لازم ګرځيدلی دی او چه و ئې نه مني نو شب کور (هغه څوک چه د تعصب له مخې واضحه او ښکاره خبره هم نه مني) بلل کيږي؟ ليکن کوم خلک چه د امام طحاوي څواب و نه ويني، و ئې نه مني د هغو لپاره کوم لقب بايد غوره شي؟ دا دی د اهلِ حديثو ديانت او تهذيب چه دخپل مطلب خبره له هر ځای څخه پيدا کړي نو فوراً په چټکۍ سره مقلد جوړيږي او په منلو ئې دومره زور لګوي چه ګوا که له آسمان څخه وحی نازله شوه چه د زيد بن ثابت د اثر هم هغه مطلب دی کوم چه امام نووي بيان کړی دی او که امام بيهقي د خپل مذهب په رعايت او حمايت کښې څه ليکلي دي. زه پوښتنه کوم چه د زيد بن ثابت په اثر کښې د فاتحه او غير فاتحه يادونه چيرته شوې ده؟ او که چيرته له داسې ډول تاويلونو څخه کار واخيستل شي نو ستاسو يو دليل به هم قائم پاتې نه شي. هر سړي ته به اختيار وي چه ستاسو ټول دلائل په منفرد باندې محمول کړي او په تائيد کښې د (اذا قرأ فانصتوا) حديث او (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا) قرآني آيت وړاندې کړي. بيا دا د کوم ځای انصاف دی چه ستاسو تاويل او د امام نووي او بيهقي قول حجت وي او د نورو تاويل او امام احمد، سفيان بن عيينه، زهري، طحاوي او علامه عيني اقوال دې حجت نه وي؟ که چيرته تاسو رښتونی اهلِ حديث يئ نو يواځې د حديثو په الفاظ سره استدلال وکړئ. له دې خوا اخوا څخه پکښې قيدونه مه لګوئ. که په دې لار باندې لاړ شئ نو انشاء الله د حنفيه وو د مسلک قوت به په رڼو سترګو باندې تر نظر درشي.

تاسو چه د حنفيه وو په څومره دلائلو باندې نيوکې کړي دي هغوی په ښکاره الفاظو کښې د قرائت خلف الامام ممنوع والی او نه واجب والی ظاهروي ليکن تاسو د امام نووي يا بيهقي يا امام رازي د تقليد د اسرې په نيولو سره په هغو کښې هغه تاويلونه کوئ د کومو تاويلونو چه تاسو هيڅ حق نه لرئ. "اوبو اخيستونکي وښو ته هم لاس غزوي" دې ته وائي.

د امام احمد او علامه ابن تيميه د قول بيا اعاده کول

په آخر کښې د امام احمد بن حنبل او علامه ابن تيميه قول بيا در په زړه کوم. امام احمد فرمائي چه "مونږ په اهلِ اسلام کښې له هيچا څخه نه دي اوريدلي چه کله امام په جهر سره قرائت کوي او په هغه پسې مقتديان قرائت و نه کړي نو لمونځ ئې نه صحيح کيږي. رسول الله ﷺ، او د ده صحابهٔ کراوم ﷺ، تابعين رحمهم الله، په اهل حجاز کښې امام مالک، د عراق په خلکو کښې امام سفيان ثوري، دشام له خلکو څخه امام اوزاعي، د مصر په خلکو کښې امام ليث بن سعد. په دوی کښې يو هم دا نه وائي چه کوم سړی مقتدي وي او د ده امام قرائت کوي او دی قرائت و نه کړي نو د ده لمونځ باطل دی آه". موفق بن قدامه د امام احمد د دې قول په نقل کولو سره په دې مسئله کښې د

اجماع دعوی کړې ده. (ج۱، ص۲۰۲)

علامه عیني په شرح د بخاري کښې فرمایلي دي چه د قرائت خلف الامام ممانعت د اتیاوو لویو لویو صحابهٔ کرامو څخه منقول دی چه له هغو څخه حضرت علي، عبادلهٔ ثلاثه (عبد الله بن مسعود، عبد الله بن عمر، عبد الله بن عباس) هم دي. محدثینو ته د دغو صحابهٔ کرامو نومونه څرګند دي. د دغو حضرات په دې باندې اتفاق کول د اجماع په مرتبه کښې ده. د دې لپاره د هدایې ملا صاحب فرمائي چه د قرائت خلف الامام په پرېښودو باندې د صحابه وو اجماع ده. د ډېرو اتفاق ته اجماع ویل شوي دي ځکه چه زمونږ په نزد دې ته هم اجماع ویل کیږي. او شیخ امام عبد الله ابن یعقوب حارثي پخپل کتاب "کشف الاسرار" کښې فرمایلي دي چه عبد الله بن زید بن اسلم له خپل والد (پلار) څخه روایت کړی دی چه د رسول الله ﷺ له صحابه وو څخه لسو کسانو له قرائت خلف الامام څخه په ډېرې سختۍ سره ممانعت کاوه. (چه د هغو نومونه دا دي) حضرت ابو بکر صدي، عمر بن الخطاب، عثمان بن عفان، علي بن ابي طالب، عبد الرحمن بن عوف، سعد بن ابي وقاص، عبد الله بن مسعود، زید بن ثابت، عبد الله بن عمر، عبد الله بن عباس رضی الله تعالی عنهم اجمعین آه. تر دې وروسته علامه عیني د ګڼ شمیر صحابه وو اقوال د کتابونو او اسنادو په حوالې سره بیان کړي دي کومو لره چه مونږ پخپلو دلائلو کښې مخکښې بیان کړي دي.

علامه ابن تیمیه پخپل کتاب "تنوع العبادات" کښې فرمایلي دي چه "سلفو په عامه توګه قرائت خلف الامام مکروه ګڼلی دی په داسې حال کښې ه امام په جهر سره قرائت کوي او اکثرو امامانو تر سورهٔ فاتحه وروسته اوږد سکوت نه کاوه (تر څو چه مقتدي سورهٔ فاتحه ولولي) په جهري لمونځونو کښې (په امام پسې) قرائت کوونکي ډېر کم وو او له دې څخه کتاب الله هم خلک منع کړي دي او د رسول الله ﷺ سنتو هم او جمهور سلف او خلفو هم له دې څخه ممانعت کوي. او د قرائت خلف الامام په صورت کښې د لمانځه په باطلیدو کښې اختلاف دی. ځینې علماء په جهري لمانځه کښې هم په مقتدي باندې قرائت خلف الامام واجب بولي او که چیرته قرائت و نه کړي نو د لمانځه په فاسدیدو کښې اختلاف دی. پس نزاع په دواړو خواوو کښې دی لیکن کوم خلک چه له قرائت خلف الامام څخه منع کوي له هغو سره جمهور سلف او خلف دي، کتاب الله هم او صحیح حدیثونه هم ورسره دي. او کوم خلک چه په دې حالت کښې په مقتدي باندې قرائت واجب بولي د هغو حدیثونه امامانو ضعیف ګرځولي. ابو داؤد دې لره روایت کړی دی او د ابو موسیٰ په حدیث کښې د رسول الله ﷺ ارشاد **(واذا قرأ فانصتوا)** (چه کله امام قرائت کوي نو چُپ شئ) ته امام احمد، اسحاق، امام مسلم او داسې نورو صحیح ویلي دي په خلاف د هغه حدیث کوم چه له حضرت عباده څخه روایت شوی دی. **(لا تفعلوا الا بأمّ القرآن)** چه په امام پسې نور څه مه وایئ پرته له سورهٔ

فاتحه څخه. دا په صحیح کښې نه دی شامل شوی او د دې ضعیف والی له څو وجوهاتو څخه ثابت دی. په اصل کښې دا د حضرت عباده قول دی. آه د رسول الله ﷺ ارشاد نه دی.

## د حنفیه وو په اهلِ حدیث باندې احسان (ښیګړه)

الحمد لله نن د چارشنبې په ورځ ۲۷ د ربیع الثاني کال ۱۳۸۰ هجري د تکمیل البرهان د رسالې ځواب پای ته ورسیده چه کتونکو ته به په ښه توګه اندازه ولګیږي چه د قرائت خلف الامام په مسئله کښې د امام ابو حنیفه رحمه الله د مسلک په کتاب الله. سنتِ صحیحه او د جمهور سلفو او خلف په اجماع سره تائید شوی دی او کوم اهلِ حدیث چه د مقتدي لمونځ په امام پسې د سورهٔ فاتحه د نه قرائت کولو له وجې باطل بولي له هغو سره هیڅ یو ښکاره دلیل نشته بلکه په امام پسې چه د قرائت کوونکو خلکو لمونځ هم وشي نو غنیمت دی. ځکه چه په قرآنکریم کښې، صحیحو احادیثو کښې مقتدي ته د قرآن د قرائت په وخت کښې د خاموشه اوسیدلو حکم دی، له قرائت څخه منع کړې شوی دی. او د اهلِ حدیثو د اصولو له مخې د نهی په مخالفت سره عمل باطلیږي اګر که د حنفیه وو په نزد نه باطلیږي. پس دوی باید د امام ابو حنیفه رحمه الله احسان ومني چه د قرائت خلف الامام له وجې د هغوی لمونځونو ته باطل یا فاسد نه وائي او که نه پخپل د اهلِ حدیث د اصولو مقتضی ده چه ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ آیت په مخالفت سره کوم چه نزول ئې د اجماع له مخې د قرائت خلف الامام په باره کښې شوی دی لکه څرنګه چه امام احمد بن حنبل فرمایلي دي. همدارنګ د صحیح حدیث (اذا قرأ فانصتوا) د خلاف ورزي له وجې کوم چه خاص د مقتدیانو په اړه راغلی دی چه کله امام قرائت کوي نو تاسو خاموشه و اوسئ. د اهلِ حدیثو لمونځونه باید باطل وبلل شي لکه څرنګه چه د یوم النحر (د قربانی یا د لوی اختر) ورځې روژې ته په همدې باندې باطل وائي چه د شارع نهی (ممانعت) د عمل د باطل والي موجب دی.

هیله ده چه د علم او پوهې خاوندان په دې نکتې باندې پوه شوي وي. الله تعالی دې مسلمانان له جاهلي عصبیت څخه وساتي او د سلفو د امامانو د عظمت او ادب کولو توفیق دې ور په برخه کړي او دا رساله دې د عوامو او خواصو په مخکښې مقبوله وګرځوي. آمین.

وآخر دعوٰنا ان الحمد لله رب العٰلمین وصلّی الله تعالٰی علٰی خیر خلقه سیدنا محمد وآله واصحابه اجمعین والحمد لله الذی بنعمته وبعزّته وجلاله تتم الصّٰلحٰت.

۲۷ ربیع الثانی ۱۳۸۰ ھجری

**تمت بالخیر**

**داحسن الفتاوی دویم جلد ختم شو ولله الحمد اولاً واخراً وظاهراً وباطناً**

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وعلی اله وصحبه وسلم اجمعین برحمتک یا ارحم الراحمین**

# د موضوعاتو فهرست

| عنوان | صفحه |
| --- | --- |

**تمت بالخير**

**تم فهرس الكتاب بعون الملک الوهاب**

**د احسن الفتاوی د دويم جلد فهرست ختم شو ولله الحمد اولاً واخراً**

**وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وعلى اله وصحبه وسلم اجمعين برحمتک يا ارحم الراحمين**

فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

# فتاوی فریدیه

پښتو ترجمه

از افادات

مفتی اعظم عارف بالله مولانا مفتی محمد فرید صاحب دامت برکاتهم

مترجم

مولوی نصرالله "منصور" تخاری

ناشر:

مکتبه فریدیه

محله جنگی. پشاور

# فتاویٰ
# دارالعلوم دیوبند

مدلله او مکمله

## فارسی

تالیف

حضرت مولانا مفتي عزیز الرحمٰن عثماني صاحب

حسب هدایت ونګراني

حضرت مولانا محمد طیب صاحب

ترتیب او حواشي

مولانا محمد ظفیر الدین صاحب

جدید اضافي تخریج

مولانا مفتي محمد صالح کاروړي

ناشر:

مکتبه فریدیه

محله جنګی۔ پشاور

# فتاویٰ حقانیہ

پښتو ترجمه

له افاداتو د

شیخ الحدیث حضرت مولانا عبدالحق صاحب رحمة الله علیه

څارنه او اهتمام

حضرت مولانا سمیع الحق صاحب مهتمم جامعه حقانیه

ترتیب: مفتی مختار الله حقانی

پښتو ژبا رونکی

مولوی قاری محمد فاروق ملنگ مهتمم معهد دار العلوم ابوهریرة ارگون

ناشر:

مکتبه فریدیه

محله جنگی. پشاور